د چپرندویه ټولنه (۱۲)

ازافادات پوهاند اکاډیمسن مرحوم عبدالشکور "رشاد"

# دافغانستان تاریخ

## له اصحابانو رض ترطالبانو

له ۲۴ هجري څخه تر ۲۰۱۵ میلادي پوري

ليکوال: ځانواک (مفتي زاده)

hedayatdarulelme.com،دارالکتب الإسلامية

ارشاد تعلیمي اونشراتي خپرندویه ټولنه کاسي روډ کوټه
0313-8904549



# دافغانستان تاریخ

## له راشده خلافته تر اسلامي امارته




لیکنه او ترتیب:

ځانواک «مفتي زاده»

# کتاب پیژندنه :

دکتاب نوم: **دافغانستان تاریخ** : له راشده خلافته تر اسلامي امارته

لیکوال : ځانواک «مفتي زاده»

سمون چاري: لیکوال

کمپوزچاري : ارشاد خپرندویه ټولنه مجاهد الرحمن اوانعام الله .

چاپ چاري : مکتبه دارلارشاد کاسی روډ کوټه

چاپ ځای : لاهور پاکستان

چاپ کال : ۲/۲/۲۰۱۳

چاپ شمیر: ۲۰۰۰ ټوکه .







دارشاد نشراتي او تعلیمي «خپرندویه ټولنه»

# ډالۍ !

هغو مسلمان او افغان سرشيدونكو غازيانو ليكوالانو او علمي څيرو ته چي دخپلواكۍ او دين پالني په سنګر كي يي خپل ځاني، قلمي اوژبني مبارزه تلپاتي ساتلي !



## ددې كتاب دليكلو اړتيا

دهيواد تاريخ مې له عثماني خلافت څخه راپيل كړي بيا تر اسلامي امارت پورې ،ځكه چې داوخت په هيواد كې دنبوي پيروانو «صحابه كرام رضي الله عنهم» لښكري داسلامي دعوت او فتوحاتو لړۍ دهيواد په ربښتني مسلمانانو ودانه كړي وه او په افغانستان كې داسلام لومړی پيل وو.

اواصلي علت يې همداوو چې داسلام تاريخ ترنوروتاريخورښتني ،له دروغ او اختلاف څخه خوندي دي.

دويم داچې افغانان دخپلواكۍ په ميدان كې تربل هرچا يوه منله سويې قبيله وه ،نو اسلامپالو پوهانو ددوي دسپيڅلي اروا،اوبريا خبرې تل اوريدلي چې كه دې قبيلي ته داسلام ځرك ورسول سي ،نوربښتياهم چې بيابه هيڅكله دبل دين اومذهب پيروي ونه كړي ،ځكه چې اسلام دخپلواكۍ دين دي اوخپلوپيروانو ته يې تل دازادۍ درس وركړي.

په پښتني كلتور او اسلامي دستوركې ډيركم فرق ليده كيدی چې يو څو بېلگې يې په لاندي ډول درته توضيح كول غواړو:

۱- ستر(پرده ) چې الهي امردي ، ۲ - پګړۍ چې نبوي سنت دي هداسی ۳ږيره. ۴څادر . ۵مستوره جامه چې الهی امراونبوي سنت دي .۶ حياء ۷پاک دامني ،۸ ريښتنولي،۹ ميلمه پالنه ،۱۰ دوعدې ساتنه ،۱۱ په مظلوم رحم ،۱۲ دظلم مخنوي .۱۳ صداقت ،۱۴ ننګ ، ۱۵پت ساتنه ، ۱۶غيرت ،۱۷ شجاعت ،۱۸ دخپلواكۍ اوازادۍ احترام .۱۹ دمشوري لپاره جرګه ياشوری كول چې دا اودې ته ورته ټول معروف اعمال دي اوهم بل لورې ته منفي اړخونه يامنكراعمال لكه «زنا،فسق ،دروغ ،حرام ،چل ،دوكه ، غدراوداسي نوربدګڼل» دا معروف اومنكراعمال كوم چې اسلام ورته په ښوامراوعمل كول ښودنه كړي اوله بدو څخه نهی فرمائلی دي هغه ټول په يوه طبعي ډول په افغاني ټولنه او كلتوركې هم هغه ډول ددوي عنعنه ،رواج اورسم ګرزيدلي دي چې دنړۍ په انساني ټولنه «عرب او عجم»كې يې خورا ځانګړي صفت بللای شو اوهمداعلت دي چې پښتانه دنړۍ په كچه ۹۷ . ٪۹۹ فصيد مسلمانان دي چې همدا امتياز د نړۍ په مذهبي اوبشري ټولنه كې يوازې پښتنوته حاصل دي اوپه دې اړه دعلامه حبيبی مرحوم يوه لنډه څيړنه دنوموني په ډول دده له اثارو څخه كتلای شئ .

په همدې تکل چې دپښتنو تاريخ اودهغه امتيازات دنوروا قوامو اوملتونو په پرتله خورا دپام وړ اولېکنه يې هم دومره اړينه وه ،ځکه چې تاريخ کې همېشه هغه څه لېکل کېږي چې ديو ملت باتورې مېړانه کلتور او مذهبي ځانګړتياوي ولري .
هو! که دافغانانو تاريخي مېړاني په کوم بل ملت کې شتون ولري ،نوړښتياهم چې دنشراتو اومطبوعاتو په ګڼون به يې هرپاڼه په ستاينه او ارزونه باندې رنګينه وه .
مادتاريخ دمطالعې په مهال داسي کوم تاريخ ونه ليدچي دافغانانو باتوری ،مېړانه اوخپلواکي يې نه وستائلي ،مګرهوديوه غلام په وائسطه به دخپلوکۍ ټول برم يوه شخص له لاس ورکړی واودغازيانوشهيدانو قربانۍ اوستړياوې به يې په ډيرکم قيمت ديرغلونو داستثمارپه خوله ورکړي وې .
**نتيجه :**
اوس به راشود پښتنودوره يزه تاريخ ته چي دوی دڅوند په هرپيرکې دنوروا قوامو څخه دتاريخ کومه ځانګړتيا خپله کړي ده .
دمثال په ډول له کومه چي دپښتنو هيواد داريان،باختر،خراسان او اوسني افغانستان په نوم داسياپه وچه کې يې مختلف جغرافيايي موقعتونه دچاروا کودواکمنۍ او کمزورۍ اوپياوړتياله امله ټاکلي دايې جوته کړي چي تل داسيا زړه بلل شوي اوتل هغه څوک به په اسياواکمني کولای شوای چي دکابل ،بلخ ،زابلستان ،بخارا ،قندهار،پکتياو... واکمنې به يې په واک کې وه.
په دې هيواد اودې ملت خورا لويې امپراطورۍ اويرغلونه راغلي ،خوبيرته يې شرميدلي ماته خوړلي ،دلته ډيرمشهورې امپراطوۍ هم په ګونډوشوي لکه د روستم ،جنګيز، انګريز،هندې مغل،چنائي مغل، روسان اواوسني مريکااو ورسره اوڅلوېښت نور هيوادونه چي دې کې کمونسټان ،عيسويان ،يهودان ، هندوان اويوشمېرنورملحدين اومرتدين هيوادونه شموليت لري کوم چي ځان دصليبي اتحاد سره ګډ بولي لکه ناټواوايساف چي يوه ګډه کفرې ټلواله ده .
خوملت ته زېری وړاندې کوم چي داصليبي امپراطوري به دزوال تياره ډيرژروريني ليکن چي کوم تخمونه يې کرلې دهغه سره به بيا ډيروخت لاس اوګريوان يوپه تيرودرې لسيزوکې يې مجاهد ،پير ،سيد ،خان ،معلم ،انجېنر قومندان اميراومامور دملت اوهيوادوالوپه وړاندې منفور اوغير منظور کړل يعني ددې اشخاصو شخصيت يې ترورواودې حدته ورسولوچي که اوس ددې اشخاصو نوم دهيوادهروګړی ته واخلي ،نودغوسي اوکرکې کربښي يې په تنده له ورايه ښکارې ،خواوس يواځې طالب اوعالم چي دهيواد ديني اوداسلامي نظام لپاره ځوانه سمبوليزه اودفاعي طبقه ده غواړي

بدنام اوداسلامي سیاست له درشل څخه یې لېرې وساتي ترڅوصلیبي زېښناکګرد خپلوسیاسي مذهبي ،اقتصادي اوټولنیزو اهدافوڅپاره په اسانۍ سره ورسیږي اوله همدې مرچل څخه دمسلمه امت اهداف ساړه اومړه کړي اوهم نړیوال اقتصادي اوپوځي بازارونه تر خپلې ولکې اوسلطې لاندې راولي .

**حل لاره :**

دتاریخ له مطالعې داسي جوتیږي چي زموږ واکمني څېري تل دپردو ترتاثیر لاندي اودخپلوبادري ملګرودغلطواوخودغرضومشوربښکارشوي دي.

یوبل اصل علت داهم دي چي زموږ هیواد کې ددیني عالم اومتعلم اوعصري معلم اومتعلم یونظراویوه رایه په درلودلو تقریباًاتیافصده مشکل حل کیدی شي ترڅوددیني علوموحق پلوي اوددیني ارزښتونودساتني حقوق محفوظ وي اوبلي خواته دعصري علوم په ویلوسره دملکي ضروریات مخه ډب نشي ،خوپه یوه اسلامي چاپیریال کې که داوسني تقریبا څلورلسیزوجګړوته نظروکړو ،نووینوچي یوې خواته دمکتب فارغین اوبل خوا ته داسلامي پوهنتون اودمدرسي زده کونکي سره په جګړه دي داجګړي که دغرب لخواچاراوړي وي اوکه دشرق لخواداکوم بزګر،موټروان ،دوکانداراونه کوم عام وګړي دې لاسپوڅی ته مخ کړیی، بلکي ټول دمکتب فارغین دي چي دمدرسي دیني هیلي ماتوي،ترڅو چي دمدرسي اومکتب سره کرکه اوروانه مبارزه پای ته نه وې رسیدلي نه به دکفرې ټلوالي دمداخلي مزي پره شي اونه به دپرمختللي ټکنالوجي په ترلاسه کولوباندي بریالي شوځکه دپردیوکمپیوټري نظام ،اوتماتیکورهبری توغندیواټمې زریاتواوچورلکوته هک پک اولاس تړلي اوبې وسه پاته یواویاهم تل دشرق اوغرب دناروا اویرغلیزو اوامرو او حکامو مأمورین اومستخدمین کورني وګړي وي .

نه تیرانګریزان خپله راغلي وه ،خودملامشک عالم اوعلمي جهادي اشخاصو وشړل اونه کمونسټان خپله راغلي و ،خوعلمي جهادي مشرانوپه فتاوي اوداولس رواني مبارې وشړل نه اوس امریکایان خپله راغلي ،خوطالبان یې په شړلوبوخت دي.نوره خبره نه اوږدوم ،دې کتاب کې مې دتاریخ له فلسفې وروسته په تکراري ډول داسلام له تاریخونوڅخه دافغان ملت جهادي برم علمي مقام اوغیرتي څېري راڅرګندي کړي اویوه مناسبه یادونه مې کړي په ډیر لنډاومختصر ډول مطالب راټول شوي چي ددې تاریخ ځانګړني په لاندي دي .

## ددې تاریخ ځانګړتیاوې :

☜ ۱ له اسلامي تاریخ څخه دهیود دتاریخ پیل
☜ ۲ دتاریخ دعلم مکمله فلسفه اوپیژندنه
☜ ۳ داسلام په سپیځلي تاریخ کې دافغانانو رول اوهیبت .
☜ ۴ دهیواد نابغه علمي سیاسي روحاني خپلواک امیران او جهادي شخصیتونه ته ځانګړې کتنه
☜ ۵ دهیواد په تاریخ کې منفوري ،منحوسي اوغلامي څیري په کوته کول .
☜ ۶ دافغانانو کلتور ،عناناتو او مشخصاتو ته واحده پاملرنه
☜ ۷ دافغانانو دخپلواکۍ اومقدسو جګړو برم
☜ ۸ افغانان په هرپیړۍ کې دنړیوال استعمار ماتونکي پیژندلو ثبوت
☜ ۹ دتاریخ له بیله ترپایه پورې دتاریخ تسلسل
☜ ۱۰ دافغاني پاچاهانو امیرانو اوجنګي مشرانو کارنامې
☜ ۱۱ دتاریخ واقعات ، خاطرات اوداسې نور...
☜ ۱۲ دهیواد جغرافیائي موقیعتونه اوسرحدي پولې
☜ ۱۳ دافغاني واکمنو اوپاچاهانو ژوندلیکونه اوپېښلیکونه
☜ ۱۴ دتاریخ پټ رازونه اوڅیري
☜ ۱۵ په تاریخ کې دهیواد دین اوملت ننګونه
☜ ۱۶ په تاریخ کې راتلونکو نسلونو ته عبرتونه اودرسونه

که ووایم چې دامې دهیواد دتاریخونو دمستندو پېښنو غورچڼ تاکلي اوتکي په تکي مې دهغو تورواصلي مطالب را اخېستي ؛ ترڅو دراتلونکي سیاسي ،ملي اومذهبي تګلارو مشعل وګرزي ،نوهم به لېرې نه وي ، نورهمداتاریخ ،خوقضاوت یې په تاسو اړه لري .

***

## د تاریخ علم او فلسفه

دتاریخ علم په اصطلاح کي هغه علم ته ویل کیږي چي د هغه په وسیله دنبیانو ﷺ، بادشاهانو فاتحینو او نورو مشهورو شخصیتونو تیرسوي حالات اوپه بیلابیلو وختونوکي ستري پیښي اودودونه معلوم کړل سي دتیري سوې زمانې اقتصاد اخلاق تمدن اونوروشیانو څخه دخبرتیاوسیله وګرزول سي .ځیني کسانودتاریخ تعریف په دې ډول کړی دی چي په ټولنیز ډول دانسان اوسیدلوته تمدن اوهمدغه انساني ټولني ته (مدینه) اوهغه مختلف حالات چي په فطري ډول ټولنه ورسره مخامخ کیږي تاریخي پیښي اودورستیوله اولنیوڅخه داوریدلوپیښنویوځای کولو اوخپلوورستنیوته دپنداونصحت په توګه پریښودلوته تاریخ ویل کیږي ځیني وایي چي د(تاریخ) ورستی برخه یې سرچپه کړي اوتاریخ یې ترې جوړکړی دی اودتاخیرمعنی ده لومړنیووختونوته له ورستنیووختوسره نسبت ورکول دمثال په ډول داوینا چي پلانی سلطنت اوپلانی جګړه په پلاني وخت کي پیښه ده ددغوټولو دمعلومولو پیل له همدې وخت څخه کیږي لنډه داچي په دې ډول دتاریخ په تعریف کي له رنګارنګ موشګافیو څخه کاراخستل سوی دی خودټولولنډیزهمهاغه دی چي ترټولوله مخه بیان کړل سوی دی پورته لنډیزکه یوڅه نورهم رالنډ کړل سي نوپه دې ډول باید وویل سي کوم حالات اوخبرونه چي دوخت په قیدسره ولیکل سي هغه ته تاریخ وایي.

### که په ماضی خبرنه شو ،نودمستقبل پیشګوئی (وړاندویونه)نه شوکولای

«چي دا دتاریخ اړتیاده»

تاریخ موږ دلویانوله حالاتوڅخه په خبرولوسره زموږ په زړونواودماغ کي یوبرکتناک جوش اوولوله پیداکوي به بشري فطرت کي یوه ځانګړي ډول تنده اوهیله پیداکیږي چي دهیوادونوسیاحت دباغونوسیل اودغرونواوبیدیاوسفرته یې تیاروي همدغه فطري هیله اوغوښتنه ده چي کوچنیان دمرغانوقیصو اوځوانان دطوطیانواوشاروګانوداستانونو اوریدلوته اماده کوي اوهمدغه هیله ده چي فاسئلو اهل الذکران کنتم لاتعلمون ( له باخبروخلګوڅخه پوښتنه وکړئ که تاسي په خپله نه پوهیږئ ) امرپه عملي کولوتاسي دتاریخي کتابونودمطالعې په لورمتوجه کوي همدغه فطري هیلي ته دپاملرني له مخ دفطرتونوخالق په آسماني کتابونوکي تاریخي پیښي بیان کړې دي بني اسرائیل

سترقوم وو چي تر نحن ابناء الله واحباؤه پوري يې وويل خو چي کله دلويانو له حالاتو څخه بې
خبره سول دذلت کندي ته ورپرېوتل له همدې امله الله ديابني اسرائيل اذکروا په ويناسره
هغوي بيابيامخاطب کړل او هغوي ته يې دخپلو لويانو حالات وريادکړل.

**﴿هغه ګټې چي دتاريخ په مطالعه کې رانغښتي دي﴾**

دتاريخ مطالعه حوصله لوړه وي انسان باهمته کوي نيکوته يې ليواله کوي اوله بدو څخه يې
منع کوي دتاريخ مطالعه دسړي پوهه اونظرپراخه وي لر ليدنه يې زياتېږي دصبر او احتياط
عادت يې پيداکيږي له زړه څخه يې رنځ اوغم لري کيږي او په خوشحالۍ بدليږي دتاريخ په
مطالعه کوونکيو کي حق ته دحق ويلو باطل ته دباطل په سترګو دکتلو قوت پرمختګ کوي
اودفريکړي اوفيصلې ځواک يې زياتيږي دتاريخ له مطالعې سره په انسان کي دصبراو
استقلال صفت پيداکيږي او په زړه اودماغ کي يې تل دتانديتوب اونمو کيفيت موجود وي
لنډه داچي تاريخ دزرونو واعظانويو واعظ اودپند اخستني يوه غوره نمونه ده دتاريخ له
مطالعې سره سړی تل خپل ځان درسولانو، وليانو، بادشاهانو سوبيااليو (فاتحينو) حکيمانو
، پوهانو اورسېدلو خلګو په مجلس کي موجودويني اوله دغوتولو معززينو څخه استفاده
کوي دلويو لويو بادشاهانو وزيرانو سرلښکرانو اوپوهان څخه چي کومي غلطۍ سوې وي له
هغو څخه بچ پاته کېدای سي بل هيڅ داسي علم نسته چي دهغه مطالعه انسان په دومره
خوښۍ اوخوشحالۍ سره پرته له کوم ډول سړيا وزعملای سي لکه څنګه چي دتاريخ مطالعه
جاري ساتلای سي

**﴿«تاريخ دپوځي اوجګړيزو مشکلاتو حل لاره ښيئ»﴾**

هرقدم چي له خپلو تاريخي حالاتو اوپخوانيو پيښو څخه په مکمل ډول باخبره وي دهغه قوم
امتيازات اوځانګړتياوي هم قيمتي پاته کيږي اودهغه قوم وګړي په کوم ډګر اومقابله کي
زړونه نه بايلي بلکي دهمت ملا تينګه تړي او خپل کارخپل اخيري هدف ته رسوي هغه سړی
چي دخپل پلار نيکه له حالاتو ناخبره وي دوخت په ميندلو سره خيانت کولای سي خوهغه
څوک چي په دې پوهيږي چي په پلاني وخت کي زمانيکه دلکونو پيسو پروانه وکړه اوخيانت
ته يې زړه ښه نه کړ اوعزت اونوميالي توب يې ترلاسه کړ. دهغه لپاره بياخيانت کول ګران
وي همدارنګه هغه څوک چي دخپل پلار نيکه له حالاتو څخه بې خبره وي دجنګه له ډګر څخه

تبنتېدلای او دتېښتي شرم پرځان منلای سي . خوشوک چي له دې څخه خبروي چي زماپلار نيکه په پلاني وخت کي ځان کرک ته ورکړ او دجګړې له ډګرڅخه يې مخ نه واړاوو اوشهرت اوعزت يې په برخه سو.هغه هيڅ کله تېښته نه سي کولای اوچي کله يې دتېښتي خيال په زړه کي راځي نودخپل پلارنيکه کارنامې يې دپښوځنځيرونه کېږي همدارنګه وفا،صداقت ،تعهد،پاک لمني ،حيا،سخاوت اونورنيک اخلاق اتکل کړي دلويانو له حالاتوڅخه خبرتيا په نړۍ کي زياتره امن اوپه قومونوکي دژوندانه روح پيداکولای سي غالباً پرهمدې خبره دغورکولوله امله زموږ دګاونډيوهيوادونواوسيدونکي قامونه چي په خپله کوم پرتمين تاريخ نه لري په فرضي افسانو اودرواغجنو ناولونوسره يې دخپل نوم دلوړوالي لپاره کارکړی دی اوددې يې هيڅ پروانه ده کړي چي موږ به درښتياويلوپه عدالت اودمورخينوپه مجلس کي څومره خوار اوذليل ګڼل کېږو.

**﴿تاريخ دانساني ټولني نسبي او شرافتي حثيت څرګندوي﴾**

څرنګه چي په تاريخ کي دښوخلګواوصاف اودبدوخلګوبدي ليګل کيږي په همدې خاطر ديوې بدذاته کورنۍ دسړي دتاريخ له علم سره ډېره کمه مينه کيدای سي شريفوقامونوته دخپلوپلرونواونيکونوکارنامې يادي وي چي دخپل شرافت دقائم ساتلولپاره د هغوي پيروي ضروري ګڼي رذيل قامونه دزمانې په اوږدوکي دخپلولويانوکارنامې هم هيره وي دکومي کورنۍ ياقوم پلارنيکه چي په الهي بندګۍ ښې ځوانۍ علم اوهنرپرتم اودبدبه کي ځانګړی امتياز ترلاسه کړی وي اوهغه يې بالکل هيرکړی نه وي نوهغه چي دخپلونيکونولويي لويي کارنامې بيا ياده وي بياهم په هغه کي عزم اوهمت راپيدا کيدای سي خوپه رذيلوقومونوکي دغه کارنه سي کيدای همداعلت دی چي دتاريخ پوهني مينه وال زياتره شريف القوم عالی النسبه دلويانو اوپوهانو زامن اونيکان خلګ وي دکومي بې نسبه کورنۍ کوم غړی ياله الله ﷻ څخه منکر دهري انسان اويابه بې زړه توب کي مشهورسړی هيڅکله يوغوره مورخ اودتاريخ ام نه دی تيرسوی.

## مؤرخ باید څوک وي ؟

غوره مؤرخ هغه وي چې دسالمي اسلامي عقیدې څښتن وي چي هرڅه لیکي هغه واقعي بیان وي نه کومه خبره پټه کړي اونه کومه غلطه خبره له ځانه غټه کړي چیري چي دناپوهه خلګو دتیندک خوړلو اوپه غلطۍ کي داخته کیدلوخطره وي هلته دپیښي په باب له خپل لوري تشریح کول اوپه حقیقت پوهول روادي دمؤرخ لپاره ضروري ده چي هغه نه دچاچاپلوسي وکړي اونه له چاسره دښمني وساتي دمؤرخ لیکنه باید ساده عام فهمه اوبې ریاوي دتکلفاتو اوقافیه جوړوني په حتمي ګڼلو کي دتاریخ لیکلو هدف اکثره پاته کیږي اوهمدا لامل دی چي کوم تاریخونه په نظم یاشعرسره لیکل سوي دي هغه په عمومي توګه له اعتباره لویدلي ګڼل کیږي دمؤرخ لپاره ضروري ده چي هغه په امانت اودیانت کي ممتازوي په ربښتیاویلو اونیکو اعمالو کي ځانګړی امتیاز ولري له درواغوډیرلري اوله بې ځایه اوعبث ویناڅخه کرکه اونفرت ولري دتاریخ په لیکلواوترتیب کي مؤرخ له زیاتو مشکلاتو څیړنو اوستړیاووسره مخامخ کیږي خوبیایې هم اصل حقیقت ته رسیدل باوري نه وي له نجوم ، جغرافیه ،تمدن پوهني ، ادبیاتو اوپرنورو علمودضروري خبرتیا ترڅنګ باید مؤرخ ذهین نکته سنج مصنف مزاجه اودلیکني په ژبه ښه ادیب اوپوهیدونکی وي چي دخپل ضمیر خبره په آسانۍ سره بیان کړای سي له دې ټولو خبروسره ځیني مشکلات هم سته چي دهغوحل تقریباً ناممکن دی. لکه په یوه صحنه ( تیاتر ) کي دیوسړي دګډون حال راوي روایت کړی دی اوس له دغه روایت څخه بې شمیره نتائج اخستل کیدای سي اوویل کیدای نه سي چي کومه نتیجه به یې صحیح وي اوکه نه .

هغه داده چي که کوم څوک دسیل لپاره کوم ښار یانندارتون ته لاړشي ،نوبیا دخپل تګ عوامل اولاملونه په مختلفو طریقو وښي مثلا : ۱ددې لپاره تللي وم چي کوم نااشناکتاب ولټوم . ۲ یا ددې لپاره تللي وم چي دکوم چا سره ددې ځای دملاقی کیدو غوښتنه درلوده . ۳ یاددې لپاره چي دکوم چاسره مې حقیقي مینه درلوده غوښتل مې هغه هیله پوره کړم. ۴ یاددې لپاره تللی وم چي ماخفیه دنده درلوده چي خپل اصل هدف ترسره کړم . ۵ اویاهیڅ نه وو غوښتل مې دداسي چاسره ووینم چي زما دزړه تسکین په وشي . اوداسي نورعلتونه ...

یعني یو لیکوال باید وکولای شي چې د خپلې موخې اهداف په څورنګ وښيي، خو هسې هم نه چې خپل مطلب په دروغو څرګند کړي بلکي یو حقیقتي اړخ یا ښه باید ولري.

لنډه داچي په دې ډول له یوه روایت څخه په سلګونو نتیجې اخستل کیدای سي بیا به د کومي یوې نتیجې د صحت لپاره له نورو وسائلو څخه تائید تر لاسه کولو ته اړتیاوي په دغو تائدي احتمالاتو کي هم دغه ډول بیلا بیل احتمالات رامنځته کیدای سي که مؤرخ مصنف نه وي او د کومي نتیجې پر طرف له اوله سره د هغه زړه تمایل ولري نو د خپل مخالف دلائل ډیر په آساني او بې پروایي سره له نظره غور زولای سي او له نتیجې سره موافق دلائل په لټولو لټولو کي راپیدا کولای سي او په دې ډول پخپله ګمراهي سره د نورو د بې لاري توب هڅه کوي

## تاریخ باید څنګه ولولو او څه ترې زده کړو؟

څرنګه چي تاریخ ترتیبول او د تاریخ کتاب لیکل بې شانه ګران او مشکل کار دی همدا ډول د تاریخ مطالعه کول او له هغې مکمله استفاده کول هم آسان کار نه دی د تاریخ لوستونکیو ته په کار ده چي د تارخ مطالعه د پند دزده کړي وسیله وګڼي د پخوانیو خلکو د بدو اعمالو له بدو نتائجو په خبرتیا سره ځان له بدو چارو څخه وساتي او د نیکو کارونو له نیکو نتائجو څخه په خبرتیا سره د نیکو کارونو سرته رسولو ته ټینګه اراده وکړي کوم داسي سړي ته بدویل یا ښکنځل کول چي د دې دنیا له سیلونو څخه رخصت سوی وي له ځوانمردۍ څخه لري کار دی هو! له پخوانیو خلکو سره د محبت څرګندونه او د هغوي لپاره د خیر دعا کول کومه بده خبره نه ده د هیوادونو، ښارونو، غرونو، بیدیاوو، سیل ځایونو، بازارونو سیل کول او د تاریخي کتابونو مطالعه کول یو له بل سره زیات مشابهت لري فرق یې یوازي همدومره دی چې د هیوادونو او ښارونو سیاح چي د خپل ژوند له سیر او سیاحت کومه تجربه حاصلولای سي د تاریخي کتابونو لوستونکي او مطالعه کوونکي د خپلي یوې ورځي یا یوې هفتې له مطالعې څخه تر دې څو چنده زیاته تجربه تر لاسه کولای سي د تاریخي کتابونو مطالعه کوونکی چې هر څومره په بې ځایه تعصب اخته وي په همهاغه اندازه له تاریخي کتابونو څخه کمه ګټه تر لاسه کولای سي

## د تاريخ سرچيني اوماخذونه

په عمومي ډول دتاريخ مأخذونه پردرې برخوويشل کيږي ليکل سوي آثار له ليکل سويوآثاروڅخه مراد هغه ټول ليکل سوي شيان دي لکه کتابونه، يادښتونه، ددفاترو دوسيې، امرونه، پريکړي، اسناد، فرمانونه،منقوله آثار له منقوله آثاروڅخه مراد دخلګو خبري، اواجتماعي يادښتونه دي لکه قيصې، اشعار، متلونه، لرغوني آثار، له قديمه آثاروڅخه مراد دپخوانی زمانې نښي نښانې دي لکه ويجاړ ښارونه،کلاګانې،کورونه، پخوانی ودانی،ليکل سوي کتيبې دډبروعکسونه، دتيري زمانې وسلې، سکې،لوښي خو له دې درې ټولوډولونوڅخه ګټه اخستل اوتاريخ ورڅخه ترتيبول کوم آسان کارنه دی له عالي ذهن،څيرکتيا،کار،عزم،شوق اوبصيرت پرته داټول وسائل هيڅ دي پردې سربيره دقامونوځانګړي دودونه،ځانګړي خويونه اوکړه وړه،ځانګړي رنګونه اوشکل اوصورت اوجغرافيوي حالات هم ترډيره حده دمؤرخ لپاره مرستندوئ ثابتيدای سي .

## دتاريخ ډولونه

دبيلابيلو اعتباراتوله مخي تاريخ څوډوله کيدای سي لکه دکميت لمخي په دوه ډوله عام اوخاص عام تاريخ هغه دی چي دټولي نړی دوګړو حالات پکي وليکل سي اوخاص تاريخ هغه دی چي په هغه کي ديوه قوم يايوهيواد يايوې کورنی دسلطنت حالات وليکل سي اود کيفيت په لحاظ هم تاريخ پردوه قسمه دی روايتي اودرايتي

ا) روايتي تاريخ هغه ته وايي چي راوي خپل ځان دمشاهدې (ليدني) پربنسټ ليکلی وي اودهغه پيښي دپيښېدو په باب دمنلوړ اوباوري اسناد مؤرخ ته په لاس ورغلي وي اويامؤرخ په مستقيم ډول هغه پيښه ليدلي وي دغه ډول تاريخونه ترټولو کټور اودمنلو وړ ګڼل کيږي اوپه هغه کي په اټکلونو پسي نيلی زغلول اونامعلوموخبروته دربښتياجامې اغوستل له هڅي څخه سرې خلاص وي بلکي ددغو تاريخونو سره که فهم اوعقل تکر وکړي نواصلاح کيدای سي

ب) درايتي تاريخ هغه تاريخ ته ويل کيږي چي يوازي دپخوانيو آثارو اودنقلي اوعقلي اټکلونو (قياسونو) پراساس ترتيب سوی وي اودهغه وخت دمؤرخ اوراوي وينا دهغې په

باب نه سي ترلاسه کیدای لکه دپخواني مصر پخواني عراق اوایران تاریخ چي اوس لیکل سوی دی له دغو تاریخونو څخه ډیري ګټي ترلاسه کیدای سي خو باور علم ورڅخه په هیڅ ډول نه سي حاصلیدای.

## د تاریخي درې «۳» زمانې یا پړاونه

ځینو مؤرخینو تاریخ پردرې زمانو ویشلی دی قرون اولی[1] (اولنی پیړۍ) قرون وسطی[1] (منځنی پیړۍ) اوقرون متاخره (وروستنی پیړۍ) په لومړنیوپیړیو (قرون اولی[1]) کي دمخلوقاتو له پیدایښت څخه واخله د رومیانو دسلطنت ترپایه پوري زمانه شامله ده.
په منځنیوپیړیو (قرون وسطی[1]) کي د رومي سلطنت له پایه څخه واخله دفلسطین ترفتحې پوري زمانه چي کله دغه ښار دسلطان محمد ثاني عثماني په لاسونو فتحه سو شامله ده دنړۍ دسترو پیښو څخه دنورو پیښو دزمانو پته لګیږي لکه دآدم علیه السلام له پیدایښته څخه دومره کلونه وروسته یادنوح علیه السلام له توپان څخه دومره کلونه لمخه یادعیسی[1] علیه السلام پیدایښت یابکرماجیت یاآنحضرت ﷺ له مکې مکرمې څخه مدینې منورې ته دهجرت کولو یادکوم بادشاه دتخت ناستي له زمانې څخه کلونه شمیرل کیږي په اوسني وخت کي عیسوي اوهجري سنې زیاتي دود دي.

## داسلامي تاریخ حیثیت

دنړۍ په ټولو قامونو اوادیانوکي یوازي اسلام یوداسي دین دی اومسلمانان یوازینی قام دی چي تاریخ یې له پیله تراوسه په مکمل ډول موجود اوساتلی دی. اودهمدې قام دتاریخ په کومه برخه اویا زمانه کي چاته دهیڅ شک اوشبهې ځای نه پاته کیږي. مسلمانانو دآنحضرت ﷺ له زمانې څخه واخله تراوسه پوري تیرسوي حالات اوپیښي لیکلي اوساتلي دي اوپه دې کارکي یې له هیڅ ډول لټی څخه کارنه دی اخستی نومسلمانان په حقه دویاړني وړدي. چي هغوي داسلام مکمل تاریخ دهم مهالو مؤرخینو اوعیني شاهدانو له ګواهي څخه ترتیب کولای سي. اوبیادهمدغه هم مهالو مؤرخینواوباوري روایت کوونکیو دپره لپسې توب (تواتر) درجه هم ښودلای سي. لنډه داچي همدا مسلمانان یوازنی قوم دی چي خپل مستند اومکمل تاریخ لري اودنړۍ یوقام هم داسي نه دی چي له مسلمانانوسره په دې لړکي سیالي وکړي. مسلمانو مؤرخینو تردې حده له احتیاط څخه کار اخستی دی چي دهري پیښي

څرنګوالی یې کټ مټ لیکلی اوپه مطلق ډول یې خپل نظرنه دی لیکلی ځکه چي په دې ډول دا اندېښنه راولاړېدای سوه . چي دمؤرخ فکر یادمؤرخ غوښتنه دي دتاریخ مطالعه کوونکي اغیزمن کړي اودپېښي ربښتیني اغیزه دي خپله آزادي له لاسه ورکړي اولوستونکي دي دځانګړي نظر تقلید کوونکي سي .

داسلامي تاریخ دعظمت اوستر توب درناوی هغه مهال لا پسي په زړهٔ کي ځای نیسي چي کله دې ته کتل کېږي چي داسلامي تاریخ هره برخه غواړي ددرایت په اصولوېې وتله اودعقلي علومو په معیار اومقیاس یې پیمانه کړه په هیڅ ځای کي یې کوته اوتیاره ګوت نه ښکاري .

هغه څه چي تاریخ ترې جوړېږي

دبابل اونینوا کنډري اودنجد په شګلنو دښتوکي دعاد اورام ځلي دمصر اهرامونه اودبامیانو دبتانوپه لېدو انسان حیرانېږي اوددغو حیرانوونکیو ځایونو دجوړوونکیو دحالاتو دمعلومولو هیله دانسان په زړه کي راپیداکېږي خلګو دبابلیانو دحالاتو دلیکلو هڅه کړې ده اودخپل کمزوري نظرپه اساس یې زیات شمیر روایتونه راټول کړي دي .

حیرانونکي حروف اوله مصري نښانو له عبارتونو څخه داهرامونو دجوړونکیو حالات ترتیب کیدای سي .دژند ،اوستا ،دسفرنګ قوانین، دبابیل اوسنۍ صحیفې ،بالمیکي رامیان اومهابهارت داسي کتابونه دي چي یوڅه صحیح اوغلط حالات ورڅخه معلومیدای سي .دهري یوې ژبي محاورې ،متلونه،ډبریني وسلې،داوسپني سامانونه،دسپینوزرو ،سرو زرو، بونزو ( زیړ ) اونورو ګانې ( زیورات ) ډبرین غمي ،دمصرساتل( مومیایي ) سوي جسدونه ،داشوک پیښي ،دایلوراڅمڅي ،دسارنات بوتان،وسانچې،داصطخر( دلمبلو حوضونه ) کنډري، درستم تخت،اودچین دېوال داټول ددلچسپۍ څخه خالي نه دي .که څه هم له دغوشیانو څخه دهغه وخت دټولي نړۍ حالات نه روښانه کېږي خوبیاهم ځای پرځای تته اوڅرګنده تاریخي رڼا ښکاري.دهندیانو درواغ ربښتیاافسانې ،دمصریانو پخوانۍ کتیبې،دچینایانوزاړه روایات ،دایرانیانو تاریخي کنډري ،دیونانیانو لیکني ،په ځانګړي توګه دهیرودتس تصنیف ،اسرائیلي روایات،دعربي اطلاق ،دغه ټولي مجموعې دتاریخ ضروري اولومړنۍ برخي دي .

## دتارخ لړۍ له کومه ځايه پيلېږي ؟

درومیانو اویونانیانو له دوران څخه په ځانګړي توګه اودسکندر اعظم له فتوحاتو څخه دتارخ هغه برخه پیل کېږي چي دنړۍ داکثرو هیوادو حالات يې په داسي ډول زموږ پروړاندي رامخته کړل چي دتاریخي لړۍ دکښ کیدلو نوبت يې ډېر لږ په منځ کي راځي اوپه عمومي ډول له همدې ځایه دتارخي زمانو لړۍ پیل کېږي دیونان،ایران،اوروم دحالاتو له مطالعه کولو چي څنګه دتاریخ دمینه والو تنده ماتېږي په همدې وخت کي هندوستان ته دسړي قهراوغصه راځي چي په دغه تاریخي زمانه کي هم په هندوستان کي تیاره خپره وه ددې ځای بې پروا خلکو تل دنړۍ والو مؤرخینوزړونه زخمي کړي دي چي دوئ تل فرضي خبروته دربښتیا جامه اغوستي ده اوربښتیا يې هیڅکله صحیح نه دې اوربدلي ددغه آباد اوخړوب هیواد په مقابل کي یوبل شګلن هیواد عربي هیواد دی چي دروایتوپه صحت دحافظي په قوت دنسبونو دسلسلې په محفوظ ساتلو اودپیښنو په کښ مټ بیانولو کي دهندوستان ضد دی اوله همدې امله د هغوي دجاهلیت ادیان هم په تاریخي شتمنۍ کي یوارزښتناک شی ګڼل کېږي .

## دتاریخ ربښتوني پیلامه

اوس نوقرآن کریم فرقان حمید راںازلېږي عرب په ټوله نړۍ کي خپرېږي ټول تمدنونه عربي تمدن په وړاندي دهباءً منثوراً په څیر ثابتېږي اوپه ربښتني توګه تاریخ پیل کېږي .داحادیثو روایت ته پاملرنه اوداسماء الرجال فن درامنځته کیدلو له سترکاراوله غوره نظم اوادارې څخه که تېرسو بیاهم په مسلمانانو کي په سوونو لاخه چي په زرونو مؤرخین داسي پیداکېږي . چي له هغو څخه هریو دتاریخ په تدوین کي داسي ځلانده چاري سرته رسولي دي .چي انسان ورته حیران پاته کیږي . دتمدن کوم اړخ اوډژوندانه کومه داسي څانګه به پیدا نه سي چي مسلمانانو پرې تاریخ لیکلی نه وي دتاریخ بدن اوروح صحیح روایت دی اوداومسلمانانو په دومره دقت سره قائم ساتلی دی چي اوس له مسلمانانو پرته بل څوک يې دمثال په توګه نه سي وړاندي کولای دنورو قومونو اوهیوادونو دتاریخونو په ترتیب کولو کي هم مسلمانانو خپل بې دریغه استعدادونه پرکاراچولي دي.

دتاریخ فن دعلم ترمرتبې رسولوکارهم دمسلمانانوددقت مرهون منت دی اودتاریخي اصولوپه تدوین کولو کي به دتل لپاره دابن خلدون نوم دمؤرخینو په منځ کي په درناوي

اواحترام سره يادېږي له کوم وخت څخه چي پر مسلمانانو دتنزل اوغربت تياري راخپرې سوي دي اوپه مسلمانانو مؤرخينو کي هغه لومړنۍ تياري اوچټکتيا لږه سوې ده د هغوي شاګردان يعني اروپايي مؤرخين تريوه حده ددغه کمي په پوره کولو کي مشغول دي.

## سلطنت د تاريخ په بهير کې

انسان ته دنورو حيواناتو په پرتله داغوره والی په برخه دی. چي نور حيوانات په خپل توان کي محدود ساتل سوي دی اوپه پيدا وښتي توګه هغوي ته دارتيا وړسامان له سعی اوکوښښ څخه پرته ورکړل سوی دی خوانسان ته موقع ورکړل سوې ده .چي هرڅومره هڅه اوکوښښ کوي هم هغومره به په خپل مخکي دپرمختګ ډګر پراخ پيدا کړي.دغه مدعی په بله وينا داسي ويل کيدای سي چي انسان په هروخت کي دسفر په حالت کي اوله ټيټ څخه دلوړ په لور دحرکت لپاره پيدا کړل سوی دی.په انسانانو کي چي هرانسان ډېر واټن ووهي يا داسي بايد وويل سي چي زيات لوړوالي ته ورسېږي څرنګه چي هغه له خپل ځان پرته نورهم جنسي ورسته ياټيټ ګوري.که څه هم هغه په حقيقت کي کامل نه وي خوپه نسبي توګه نوردهغه په مقابل ناقص اوورسته وي اوڅرنګه چي ددغه نسبتاً کامل لپاره تل دپرمختګ ډګرنورهم پاته وي.له دې امله هغه سره له خپل نسبي کمال ځان نيمګړی ګڼي په نورو ټکوکي داسي ويل کيدای سي چي دانسان په فطرت کي بندګي يعني رښتنی پرمختګ اوفرمانبرداري ايښودل سوي ده .«وَمَاخَلَقتُ الجِنَّ وَالِانسَ الا لِيَعبُدُونَ»( ماپيريان اوانسانان له دې پرته دبل څه کار لپاره نه دي پيدا کړي چي هغوي زما بندګي وکړي ) کوم انسان چي ترټولو لوړ اوله مخه ښکاري څرنګه چي هغه يومجازي اونسبي تصوير لري په همدې خاطر عام انسان له خپلو فطري غوښتنو څخه مجبوردی چي دهغه په وړاندي دفرمان منني سرټيټ کړي اوهمدغه دسلطنت اوبادشاهي فلسفه اوله همدې څخه سرې په هغه مقوله ښه پوهېدای سي چي ( پادشاه مجازي الله ﷻ وي ) داخبره بايد هيره نه کړل سي چي بادشاه ياحاکم نسبتی کامل وي نه حقيقي ځکه چي حقيقي کمال په کوم موجود کي پيدا کېږي هغه به مطلق وي محدود به نه وي اومحيط به وي محاط به نه وي اومنفرد به وی متعدد به نه وي باقي به وی فاني به نه وي اوواجب به وي ممکن اونور څه به نه وی اودهمدغه واجب الوجود ذات نوم الله ﷻ دی چي له هرکمي هرعيب اوهري بدی څخه پاک دی اوپه ټولو نيکو اوکامله صفاتو متصف دی

اوهمدغه الهي ذات حقیقي بادشاه حقیقی نافذ الفرمان اوحقیقي حاکم دی لنډه داچي څرنګه چي انسان په هرحالت کي دخپل ځان دنیمګړي لیدلو فطرت لري له دې امله فرمانبرداري اواطاعت هم دانسان فطري دی اودهمدې فطرت پرخلاف کولوڅخه حقیقي فرمانروا منع کړی دی. لکه څنګه چي فرمايي:

(یاایهاالذین آمنوا اطیعوا الله واطیعوا الرسول واولی الامر منکم). الایة.

(ای مؤمنانو دالله ﷻ ،اودهغه د رسول ﷺ اودهغه کسانو اطاعت وکړی چي لتاسو څخه دامرخاوندان وي ) مجازي نافذالفرمان یابادشاه هغه کیدای سي چي دنور په مقابل کي کمال لري نوهریو صاحب کمال سړی له خپل ځان څخه ټیټ خلګ له خپل فطرت سره سم دځان فرمانبر دار اومنونکي لیدل غواړي اودادهغه فطري غوښتنه ده.خوڅرنګه چي په انسان کي دخپل فطرت پرخلاف کولو اوخپلوقوتونو ته دپرمختګ ورکولو پرځای دتنزل اوځوړتیا استعداد هم سته ددې لپاره داهم ضروري ده چي داسي هم ولیدل سي چي یوانسان په یو وخت کي له نورو څخه ډیر نیمګړی اوورروسته وي.

اویاداچي هغه دخپلي نیمګړتیا او وروسته والی په حالت کي دخپل فطرت پرخلاف دهغه شي هیله وکړي چي په هیڅ ډول دهغه حق نه دی بلکه دیوه کامل انسان حق دی همدا علت دی چي دحکومتونو اوبادشاهانو ترمنځ تل کشمکش اولوړ اوځوړ لیدل کیږي دنافذ الفرمان کیدلو دوه ستر ډولونه دي یوروحاني اودوهم جسماني یاداسي باید وویل سي یونبوت اوبل سلطنت هغه کمالات چي له مادي سلطنت اوحکومت سره اړیکي لر ي چي دحکومت اوفرمانبر داري لاملا کیږي اوتراوسه لیدل سوي دي دهغویادونه دطالوت اوداود علیه السلام په باد شاهیو کي په دې ډول ده وقال لهم نبیهم ان الله قدبعث لکم الطالوت ملکا ( د هغوي نبي هغوي ته وویل چي الله ﷻ ستاسي لپاره طالوت بادشاه ګرزولی دی ) بنې اسرائیلوچي دطالوت دبادشاهي حال واورید اعتراض یې وکړ نوجواب ورکړل سو:

قال ان الله اصطفاه علیکم وزاده بسطة فی العلم والجسم

(الله تعالیٰ پرتاسو همهاغه غوره کړی دی اوهغه ته یې روحي اوجسمي دواړه ډوله پراخ اهلیت وربخښلی دی ) اوبیا دداود علیه السلام په باب فرمايي وقتلَ داودُ جالوتَ وآتاه اللهُ الملکَ والحکمةَ

وعلمه ممايشاء (اوداوود عليه السلام جالوت وواژو اوالله جل جلاله هغه ته سلطنت اوحکمت ورپه برخه کو) ترکومه ځايه چي دتاريخ له مطالعې څخه همدا څرګندېږي چي کوم سړي ته دقوي اعصاب اوپه علمي اوبدني توګه لوړ والی ورپه برخه سوی هغه په سملاسي ډول دهغه قوم دبادشاه اوفرمانروا په توګه منل سوی دی له اوس څخه درې زره کاله لمخه جسماني قوت اوپهلواني اوزړ ورتوب دحکومت اوبادشاهي لپاره ضروري شی ګڼل کيدی چي دماغي قوت هم ورسره يوضروري شی وو له دې ورسته چي په تدريج سره په انساني نسل کي ورو ورو نورصفات پيداکيدل په همهاغه اندازه دبادشاهانو په صفاتو اوشرائطوکي زياتوالی راغی لنډه داچي په نړۍ کي تل دبادشاهانو مفهوم دغوره اوارزښتناکو انسانانو په حيث منل سوي دي اوفتنې اوفسادونه اوغلاوي اوډاکې هغه مهال راپيداسوي دي چي کله غير مستحق اوناوړه کسان دبادشاهي پرتخت ناست دي له دې کلي څخه په هيڅ ځای کي استثنا نه پيداکيږي.

اودې حقيقت پرخلاف هيڅکله بله خبره نه سي ثابيتدای. څرنګه چي هرانسان په خپل فطرت اوپيدايښت کي يوډول حقوق اومرتبه لري په همدې خاطرچي دترلاسه سويو صفاتو سعی اوکوښښ له نتائجو څخه کوم غوره والی رامنځته کيدای سي همدغه انسان ته دحکومت اوبادشاهۍ مقام ورکولای سي وان ليس للانسان الا ماسعیٰ هر ستر انسان دخپلونيکو صفاتوله امله دخپلي کورنۍ دغړيو حاکم اوفرمانروا دی دهرکلي ملک دخپل کلي حاکم اوفرمانروا دی اودا دبشري کهول دابتدائي حکومتونو اوسلطنتونو نمونې دي چي اوس يې هم موږ وينو اوګورو اوهيڅ ډول خامي اوخاليګاه پکي نه سو راايستلای هو! که څه شي ته نقصان اوکمی ويل کيدای سي هغه داچي دکورنۍ په غړوکي ناپوهه اوناوړه سړي ته دواکوالۍ واک ورکړل سوی وي او د ولس ملک سپين ږيری اومشر دهغه اولس غوره سړی نه وي.

## شخصیت او جمهوریت

که له یوې خوا انساني نسل اشرف المخلوقات او دکائناتو خادم ۱ ی.له بلي خوا دهغه په فطرت کي داخبره داخله ده.چي هغه په خپل ژوند کي کومه غوره او ځواکمنه هستي دمقتدا په توګه مني.او همدغه دفطرت غوښتنه ده چي هغه دالهي توحید پرلوري رهبري کوي اوله ټولو باطلو معبودانو څخه یې بې لاري کوي اودیو الله بندګۍ اوعبادت ته یې تیاره وي په شیطاني چلوټو کي ترټولو لویه چلوټه داوه چي انسان دحکومت او سلطنت لپاره پوهه اونیک صفات هیرکړل او میراث او نسبي اړیکي دحکومت او بادشاهۍ لپاره حتی شرطونه وګڼل سول.

اونتیجه یې داسوه چي هغه کسان چي دحکومت او بادشاهۍ لپاره اهل نه وو یوازي دپادشاه دزوئ ولی له امله دپادشاهي دحقدارو خلګو دخوارئ اورسوایي موقع په لاس ورغله دبشري کهول دغه غلطي په نړۍ کي ستري ستري ګډوډئ اوجنګونه رامنځ ته کړل اوپروړاندي یې دحکومت او سلطنت بې ساري نمونه وړاندي کړه اوبشري ټولنو ته یې وویل چي دپادشاهي مسئولیتونه څه وي اودهغه دواک او اختیار بریدونه کوم دي له هغوي ورسته درسول اکرم ﷺ غوره روزل سوې ډلي یعني صحابه کرامو رضي الله عنهم دهغه له ښوونې سره سم بهترین افراد یعني ذحکومت او فرمانبروایي وړانسان وټاکه او په عملي ډول د اول وار لپاره دغه شیطاني جادو مات سو. چي دحکومت لپاره وراثت شرط دی . حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ورسته دحضرت عمر رضي الله عنه ټاکنه هم دروا استحقاق او هغو صحیحو اصولو پراساس وسوه . له دې ورسته که څه هم دحضرت عثمان رضي الله عنه ټاکنه وراثت اونسب داړیکوله خیال ساتلو پر ته وسوه . خو دمسلمانانو په ځیني وګړیو کي ددغه ټاکني له امله ګونګوسې موجودي وي او پخپله حضرت عثمان رضي الله عنه په قبیله کې داسي وګړي وه چي دنسلي نظریې خاوندان و. له همدې امله دهغه دخلافت زمانه له فتنې څخه خالي پاتي نه سوه. نوکیدای سي چي ووایو چي حضرت محمد ﷺ څرنګه چي درسول په حیث تر ۲۳ کالوپوري دخپل ژوندانه نمونه دبشر دژوندانه دسمون لپاره وړاندي کړه همدارنګه یې له یوهجري کاله څخه واخله تر ۲۳ هجري پوري یعني ۲۳ کاله دسلطنت او حکومت نمونه دنړۍ خلکوته وروښودله . څرنګه چي دآنحضرت ﷺ دژوندانه ۲۳ کاله دبشر لپاره داقتدا وړ دي .

همدغسي دآنحضرت ﷺ مدني ژوند دحضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه خلافت اوعمر فاروق رضي الله عنه ټول ۲۳ کلونه دنړۍ دواکوالو لپاره دتقلید اوپیروي وړدي له راشده خلافت څخه ورسته بشري کمزوریو اوشیطاني چلوټو بیا دوراثت اړیکي دسلطنت دلاسته راوړلو لپاره ضروري وګڼلې اوحکومت اوسلطنت ددې پرځای چي دمستحقو اوحقدارو وګړیو په برخه وای. دمخصوصو کورنیو حق وګڼل سو.اودلایقوحاکمانو ورسته دهغوي نالایقه زامن دحکومتونو پرتخت کښېناستل اوله دغو نالایقو څخه دحکومت تخت دپاکولو لپاره پرخلکو ستر ستر زحمتونه اوتکالیف تېرسول .بالاخره له دغه مشکلاتو څخه تنګ راغلل .خلکو دجمهوریت سیوري ته ځانونه وسپارل. چي همدا اوس په فرانسه،امریکا اونورو زیاترو هیوادونو کي لیدل کیږي اوزموږ مسلمانوهیوادو سره یې هم پرهمدې نظام باندې شخړه روانه ده لکه څنګه چي نن داسلامي امارت پرځای باطله اوناروا غربي ډیموکراسي راڅخه غواړي . حال دادی لکه څرنګه میراثي حکومتونه دبشري ټولنو لپاره عذاب وو. همدغسي دغه جمهوریتونه هم دبشرلپاره ګټور اوبرکتي نه سي کېدای . له بشري فطرت سره سم اوهرډول ګټور اوبرکتناک دحکومت هغه طرزدی. چي نمونه یې دهجري سنې له پیله هغه درویشت کلنه دوره ده اوهغه دشخصي اوجمهوري حکومتونو یومنځنی حالت دی.

## جمهوري سلطنت

په جمهوري سلطنت کي د درې یاپنځه کلونو لپاره یازیات تردې یوعام سړی دعمومي خلکو له خوا حاکم ټاکل کیږي.چي دجمهور رئیس یاپریزیډنټ په نامه سره یادیږي. دغه جمهور رئیس ته هغه ټول اختیارات حاصل نه وي. چي دبشر دیوه مهربان سلطان لپاره یې اړتیا وي. په ځینو معمولي چارو کي هم جمهور رئیس مجبور وي اودخپلي هیلي اوخواهش پرخلاف به کار کوي. ګواکي چي دحکومت کوم اصلي مرکز نه وي اودسلطنت چاري وېشل سوي اودهیواد ټولو وګړیوپوري اړه لري. په څرکند ډول دغه حکومت ډېر زړه وړونکی اوښکلی ښکاري اوملت څرنګه چي پرخپل ځان پخپله دحکومت کولو وخت پیداکوي اودجبر اواستبداد دځنځیرونو په ماتولو خوښ ښکاره کیږي.خوهغوي خپل ځانته ډېر څه زیان هم رسوي.بشري شرافت دبې بندو باره اومکملي آزادۍ پرخلاف واقع سوی دی.همدا علت دی چي په فرانسې اوامریکا او هغوهیوادونو کي چي جمهوریت قائم دی.هلته

روحانيت چي مذهب يې قائموي بالكل تباه اوبرباد اوله منځه تلونکی ښکاري.دروحانيت اومذاهبو ښوول سوي غوره اخلاق په يوداسي هيواد كي قائم نه سي پاتي كيداى.چيري چي دجمهوريت سيلاب موجونه وهي. دجمهوريت نظام انسان دداسي بی بندوباره آزادی پرلاره روانول غواړي چي انسان دخداى پېژندني اوخداى پرستي افكار ترډېره پوري قائم نه سي ساتلاى.دسوچه جمهوري نظام ترټولو قوي اوځواكمن تحريک دهريت اوبې ديني ده.لكه څرنګه چي په شګلنو دښتوكي فصلونه راشنه كيږي. ماهی له اوبو څخه دباندي ژوندی نه سي پاته كيداى.انسان په تياره ځاى اوكثيفه هواكي تندرست نه سي پاتي كيداى.همدا رنګه په سوچه جمهوري حكومت كي مذهبي افكار، مذهبي بنديزونه اومذهبي عبادات پرمختګ نه سي كولاى اوكوم الهي مذهب ترډېره پوري ژوندی نه سي پاتي كيداى. دمذهب اصلي اصول پابندي اوفرمانبرداري ده اودرښتني مذهب پيروي دبشري فطرت صحيح جذبه ژوندۍ ساتي .چي هري غوره اودرناوي وړ هستي ته دي غوره مقام وركړاى سي اودهغه درناوی دي وكړاى سي اوڅرنګه چي الله ﷻ ترهرڅه غوره اودرښتني كمال څښتن دی .په همدي خاطرباید دهغه په حضوركي سرپه سجده اودسبحان ربی الاعلی اقراردي وكړاى سي.په نړۍ كي هريو نبي هريو رسول اوهريو هادي دغه رواغوښتنه كړې ده . چي ټول انسانان دي زما احكام ومني اوزما فرمانبرداري دي پرځاى كړي اوله دې حقيقت څخه انكارنه سي كيداى.چي دهغو رسولانو ،نبيانو، هاديانو اورهبرانو پيروي برياليتوبونه پيداكړي دي اود همدغه پيروۍ په نتيجه كي بشر د ذلت اورسوايۍ له تيارو څخه راوتلی اودلوړاوي اوعروج ترپوړيو رسيدلی دی . نوهر شی اوهرنظام اوحكومت چي ددغه روښانه تګلاري په مخ كي خنډ وي اوانسان ته له هريوه بنديز څخه دآزادۍ اوبی بندوبارۍ ترغيب وركوي .هغه په نتيجه كي هيڅكله دبشر لپاره ګټورنه سي ثابتيداى .په دنيا كي هريو پلارله خپل زوی څخه دفرمانبردارۍ هيله لري اودزوی لپاره همدا ګټوردی .چي دخپل پلار خبره ومني .هر استاد له خپلو شاګردانو څخه دفرمانبردارۍ آرزو لري اودشاګردانو لپاره هم ګټوره ده .چي هغوي داستاد خبره ومني .هريو پير له خپلو مريدانو څخه دپيروۍ هيله لري اوښايي دمريدانو ګټه يې هم په همدې كي وي.چي دخپل پير خبره ومني .هريو ليډر او رهبر له خپلو پيروانو څخه دنظم اوپيروۍ توقع لري اودهغوي لپاره همدا ګټوره ده چي هغوي دنظم اوفرمانبردارۍ

خيال وساتي .هريو سر لښکر دجنګ په ډګر کي له سپاهيانو څخه دځپلو احکامو دعملي کولو هيله لري اودسپاهيانو لپاره همدا ګټوره ده چي هغوي دځپل سر لښکر له څه ماڅه پرته فرمانبرداري وکړي .دجمهوريت مجموعي اغيز پرټولنه داکيږي چي پلار دځپل زوی،شاګر د داستاد ،مريد دځپل پير، ملت دليډر اوسپاهي دځپل سر لښکر داوامرو منګه دځپل ځان لپاره زحمت اويو دروند بار احساسوي. او ورو ورو دغه ټول شيان له منځه ځي اوانسان ددهريت په لور متوجه کيږي. چي هغه دانسانيت له مقامه باسي اودحيوانيت سطحي ته يې راټيټوي.څرنګه چي دجمهوريت مقام دمذهب پرخلاف واقع سوی دی.په همدې خاطر چي څومره مذهبي جذبې ته زيان رسيږي په همهاغه اندازه امن اوامان اوراحت اواطمنان له هيواد اوقوم څخه فنا کيږي .ځکه چي رښتيني مدنيت اورښتني امن اوسکون يوازي دمذهب له شته والي سره په نړۍ کي رامنځ ته کيدای سي.په دې لړ کي حکومتونه اوسلطنتونه ټل ناکام پاته سوي دي.په کورونو کي ديو ځايوالي پر وخت ،په بيدياوو ،دښتو، لارو اونورو ځايونو کي انسان تل دحکومت له سطحي څخه آزادوي.په دغسي ځايونوکي يوازي مذهب انسان دلوټ مار،وژني ،اوغلاوو څخه بچ ساتلای سي خوحکومت يې نه سي ساتلای.که پرمخ دځمکي ټول اوسيدونکي انسانان بې مذهبه سي .نودځمکي مخ به دوژلو،وينوتويولو ،لوټ مار،غلا،زنا،درواغو،دوکې اونورو بدکاريو څخه ډک سي اودځپلو اسيدونکولپاره به جهنم وګرزي.داروپا اوامريکا په جمهوريتونکي موږ يواداسي شی هم نه وينو چي دهغه غوښتنه په رښتيا سره زموږ په زړه کي راولاړه سي. په هغو هيوادونو کي بی ديني زياته پيداکيږي.په هماغه هيوادوکي وعده خلافي، بې وفايي، خپل چاري، دروغ ويل، دوکه وركول اونوري بدي چاري دخلکو ورځنی معمول اوچلن دی.په جمهوري هيوادو کي هيڅکله کوم ناپليون ،قيصرويليم، جوليس سيزر،تيمورلنګ،هنی بال،سليمان قانونی، شيرشاه سوري، محمودغزنوي،اورنګ زيب عالم ګير هيڅکه نه سي پيدا کېدای اوکه پيدا سي نوژوندي نه سي پاتي کيدای.دامين الامت حضرت عبيده بن جراح ؓ ،سيف الله خالدبن وليدؓ ، طارق بن زياد اومحمد بن قاسم اونورالدين زنګي اوصلاح الدين ايوبي رحمه الله عليهم پيداکيدل خو ډيره ستره خبره ده.دبشر دغوليدنو اوبې همتيو داترهرڅه بدډوله اوستر مثال دی.چي موږ اوس هم زياتره مسلمانان داروپا اوامريکا دجمهوريتونو هيله من وينو.چي

ګردسره داسلامي ښو ونو پرخلاف دبشر لپاره ډير خطرناک شي دی. دمسلمانانو دافکارو بدلون دهغوي دبې زړه توب اوبې همتۍ. نتيجه ده اودغه بې زړه توب اوبې همتي په هغوي کي دقرآن او حديث څخه دناخبرتيا له امله پيداسوې ده.

## ميراثي اوشخصي سلطنت

کله چي کوم سړی دسلطنت دتخت څښتن اودحکومت دتاج واک وال کيږي. نودنسب اووينې اړيکي اودفطري ميني غوښتنه هغوي مجبوروي. چي هغه ددې لپاره هڅه اوکوښښ وکړي چي ترهغه وروسته دهمده په شان يې زوی دحکومت او مملکت واکوال وي. خودادهغه غلطي وي. ځکه چي پادشاهي ملکيت نه دی. بلکي دايو امانت وو چي خلکو ورته سپارلی وو. نودی څه حق لري چي دملت مال خپلو وارثانوته وسپاري. امانت تل بايد خپلو وارثانوته وسپارل سي په همدي خاطرله هغه پادشاه ورسته چاته دپادشاهي سپارل دقوم اوملت کاردی. نه دهغه بادشاه. خوڅرنګه چي پادشاه ياخليفه ياحکمران دټول ملت دلويو لويو ځواکونو واکوال دی. نودهغه له دغه خيانت څخه دمنع کولو اوله دغه غلط اوناروا څخه دځان ساتلو لپاره داسي لوړ همت، قوي ارادې، ځواکمن زړه اولويي حوصلې ته اړتياده. چي اسلام يې په خپل هريو منونکي کي پيداکول غواړي. کومه چي الهي هداياتو او حضرت محمد ﷺ په صحابه کرامو ﷺ کي پيداکړې وه. کله چي مسلمانانوله اسلامي زده کړو څخه مخ واړاوو. نتيجه يې داسوه چي دهغوي په هغه تير لوړ همت قوي ايرادې اوپراخي حوصلې کي کمښت پيښ سو چي اسلام پکي پيداکړی وو اوهغوي خپل حاکمان له دغه خيانت څخه نه کړل منع. بلکه دبې همتۍ له امله دخپلو حاکمانو په دغه خيانت راضي سول. بالاخره دشخصي اوميراثي پادشاهۍ بد دود چي دراشده خلافت په نيکمرغه دوران کي له منځه تللی وو. په مسلمانانو کي دود سو. اوددغه بد دود بدي نتيجې مسلمانانو څوکرته وليدې. دوراثت او وليعهدۍ ناوړه دود زياتره وختونه داسي نالايق اوناپوهه کسان دمسلمانانو واکوال کړل چي هغوي ته بايد دډيرو لږو نيکانو خلکو په مجلس کي هم ځای نه دی ورکړل سوی. بې شکه دمسلمانانو بايد يو نيک اوپوه سړی خليفه ياحکمران سوی وای اوهغه بايد دمسلمانانو غوره اوخوښ وای اودمسلمانانو اکثريت هغه ټاکلی وي.

دکوم سړي خليفه يا پادشاه په کورکي زيږدنه هيڅکله ددې چاري لپاره حتمې خبره نه ده چي هغه دي دحکومت وړتياهم ولري. که دغه دوراثت دود په مسلمانانوکي رواج سوی نه وای اوسلطنت چاري دراشده خلاف په څير ساتل سوې وای. نواوس به داسلامي حکومت اومسلمانانو دغه حال نه وو.چي موږ يې په خپلو سترګووينو خوهمدابه دالله ﷻ اراده وه اوقضا اوقدر ليکني ترسره سوې+.مسلمانان که له پيل څخه ددغه کار مخالف وو اودحکو مت دچارو په ساتنه کي يې دهڅو اوکوښښونو کمی نه وي کړی. که څه هم هغوي به ددې کار لپاره په اول سرکي زياتي قرباني ورکړې وي.خوبيابه په کوم حاکم کي داجرأت نه پاته کېدو چي هغه دي له خپل ځان څخه ورسته دخپل زوي دولی العهد ټاکلو اوپادشاه کولو جرئت وکړي.دحضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه له يوه څخه زيات زامن ددې وړ ووچي هغوي حکمراني وکوي اودحکومت چاري سمبال کړي.خوهغه ته په مسلمانانو کي حضرت عمر رضي الله عنه سړی ښکاره سو اودهماغه لپاره يې مسلمانانو ته سپارښتنه وکړه.دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه زوي حضرت عبدالله رضي الله عنه په يقيني ډول ددې وړ وو چي دمسلمانانو خليفه دي سي.خوڅرنګه چي حضرت عمر رضي الله عنه ددغه بد اوناروا دود له بېخه ايستلو غوښتونکی وو.په همدې خاطرهغه حضرت عبدالله رضي الله عنه ته ددې په خاطر چي دخلافت وړنه ووبلکه يوازي په دې خاطر چي دميراثي حکومت دود له منځه ولاړسي.په ځانګړي توګه وصيت وکړ.چي عبدالله بن عمر رضي الله عنه دي هيڅکله خليفه نه ټاکل کيږي.دخلکو ترټولوزياته ناپوهي اونابينائي داده چي هغوي دشخصي حکومت بدي ويني.خوددغو نقصاناتو اوکميو اصلي لاملونه لټوي.بلکه په عمومي ډول دشخصي حکومت دمخالفت له امله دجمهوريت ستاينه کوي.څومره بدی چي په شخصي حکومت کي موږته په نظر راځي.دهغوټولو بنسټ دادی چي شخصي حکومت دميراث له مخي منځته راځي.اودپادشاه ياحاکم دټاکني حق له خلکو اخستل سوی دی.نودعقل غوښتنه داده چي موږ اصلي منبع يعني ميراثي دود دحکومت په چارو کي مداخلې ته پرې نږدو اوترپلار ورسته دهغه زوي که ‌هغه دملت په ټولو وګړيو کي لائق او پوه نه وي.هيڅکله دخپل حاکم په حيث ونه منو اوکه بياهم دبادشاه زوي ترټولو دحکومت وړوي دخپل واک اوملت له منظوری ورسته دخپل حاکم په حيث ومنو.داکومه پوهه ده چي له يوې غلطی څخه دبچ کيدلو لپاره بله همهاغه سي غلطي وکړو.په شخصي

حکومت کي پادشاه یا حاکم ته دزیاتو ظلمونو اوبدو چارو دسرته رسولو وخت دملت دبې زړه توب اوبې همتۍ له امله په لاس ورځي.دبزدلۍ اوکم همتۍ له امله چي کوم اطاعت اومننه کیږي په دې کي اوپه هغه اطاعت اوفرمانبردارۍ کي چي داستحقاق اومسؤلیت پېژندني له مخي کیږي. لکه دځمکي او آسمان دومره فرق دی.ښایي دغه خبره په دې ډول ذهن کي کیني چي دحضرت عمرفاروق رضي الله عنه ځیني والیانو به ویل چي موږ ته داسي ښکاري چي دحضرت عمرفاروق رضي الله عنه یو لاس زموږ دلاندنۍ ژامي لاندي اوبل لاس یې دبالا ژامي له پاسه دی.که موږ لږ څه بې لاري اختیار کړو نو حضرت عمرفاروق رضي الله عنه به زموږ دواړي ژامي څیري کړي. دحضرت عمرفاروق رضي الله عنه امر حضرت خالد رضي الله عنه ته رسیږي اوهغه دپوځ داعلیٰ قمندان پرځای یوعسکر اومجاهد کیږي.او دحضرت خالد رضي الله عنه په څیر سوبمن قوماندان هیڅ بې هیڅه دغه امر عملي کوي.خو اوس بلي خواته وګورۍ چي پرحضرت عمر فاروق رضي الله عنه دمنبر پر سرانتقاد کیږي اویو معمولي سړی دهغه دامامت اودیانت امتحان اخلي.یوه ښځه دمهرونو په باب دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه وینا اوري.په سملاسي ډول انتقاد کوي اودوخت خلیفه دمنبر پرسر اقرار کوي چي دمدینې میرمني هم ماله خپلي غلطۍ څخه خبرولای سي.اوس غور وکړۍ چي داڅه ډول فرمان مننه ده.چي دحضرت عمرفاروق رضي الله عنه کیږي.بلي خواته هغه فرمان مننه وګورۍ چي په دې آخري زمانه کي دمغلو شاهانو په دربارونو اوهیواد کي کیدله.نه یوازي په پنجاب ،سند،دکن،بنګال اونورو آیالتونوکي بلکي لاپه اګره اله آباد اوډیلي کي هم شاهي احکام چا نه منل.

## شخصي جمهوري حکومت

اسلام چي نړۍ کي څه ډول حکومت کول غوښتل اوکومه نمونه یې چي په صدر اسلام کي وړاندي کړل سوې ده.هغه د(ځانګړي جمهوري حکومت)په نامه یادیږي.داسلامي خلافت حکومتي نظام باید دسوچه جمهوري اوسوچه شخصي حکومتونو ترمنځ وګڼل سي. دخلیفه یاشاهنشاه یاحاکم په ټاکنه کي باید دمسلمانانو دهر پاټکي وګړي درای څرګندونه وکړي. دحکومت اوخلافت دحقدار اوپه مسلمانانو کي دغوره سړي په ټاکلو کي هغه ټولي لاري چاري غوره کول روادي، ترکومه ځایه پوري چي امکان لري. په ملت کي غوره ترین سړی

وټاکل سي دکوم اساسي قانون یانوي تګلارې دجوړولو لپاره مسلمانان هیڅ اړتیا نه لري ځکه چي قرآن مجید اونبوي سنت له هغوي سره موجود دي .له همدې امله دزیات غوره سړي ټاکنه هم دمسلمانانو لپاره کوم ګران کارنه دی کوم سړی چي له قرآن اوحدیث څخه باخبره اودهغه ژوند له قرآن اوحدیث سره تر نورو زیات برابروي. همداغه ترټولوزیات ددې حقداردی چي دمسلمانانو حاکم وټاکل سي. دقرآن اوحدیث له لاربنودنو سره سم دهیواد اوملت روانول اودالله ﷻ اورسول اکرم ﷺ داحکامو نافذول دمسلمانانو حاکمانو ځانګړی کاردی. مسلمانان پرخپل حاکم که هغه دخدای ﷻ اونبی ﷺ داحکامو مخالفت وکړي فوراً انتقاد کولای سي خودهغه دهرحکم دعملي کول چي دخدای ﷻ اورسول اکرم ﷺ داحکامو مخالف نه وي دهر مسلمان مسئولیت دی چي ضروري یې وګڼي اودهیڅ ډول بغاوت اوسرکشۍ خیال ورڅخه په زړه کي هم نه راولي.
دمسلمانانو حاکم که دخدای ﷻ اوحضرت محمد ﷺ داحکامو دمخالفت لار غوره کوي نو په سملاسي ډول له کاره لري کیدای سي . خوکه هغه خپل مسئولیتونه دالله ﷻ اورسول اکرم ﷺ له احکامو سره سم دهیواد اوملت په ګټه چلوي نوتردې سترحماقت به بل کوم وي؟ چي یو تجربه کار اوملت اوهیواد ته ګټور او ارزښتناک سړی دي یوازي له دې امله له کاره لري کړل سي اودنوي سړي دټاکني زحمت ګالنه دي پرځان ومنل سي چي ترده لمخه خلیفه یاحکمران پنځه یادرې کلونه موده پوره سوې ده دمسلمانانو خلیفه په حقیقت کي دهغوي خادم څوکیدار او امین وي نوچي یوخادم امین یاپاسبان خپل مسئولیتونه په صحیح توګه سرته رسوي موږ ولي هغه له خپل کاره څخه لري کړو اوپه نوي ازمیښت کي ځانونه اخته کړو، مسلمانان له خپل خلیفه څخه کوم قانون جوړول نه غواړي مسلمانان خلیفه ته په خپلو پیسو دعیش ونوش موقع اوشرائط هم نه برابروي دمسلمانانو خلیفه په ډېره معتدله اومنځکړې لاره له شتمنو خلکو څخه په مناسبه اندازه مال اودولت راجمع کوي اوهغه پرغریبانو مسکینانو یتیمانو اومحتاجو خلکو په عادلانه توګه مصرفه وي . دمسلمانانو دسلطنت خزانه چي دټول ملت مشترک مال دی.دهمداغو دښېکړې لپاره لګوي.
نه داچي دمسلمانانو خلیفه یاپادشاه هغه خپل ځانګړی ملکیت وګڼي اوچي په خپل اختیار څه وغواړي هغه وکړي څرنګه چي په اسلامي حکومت کي له شتمنو څخه یو مناسب ټیکس

اخستل کېږي او محتاجانو ته ورکول کیږي په همدې خاطر په ملت کي دشتمنو اوکار گرانو ترمنځ هغه اړوپیچ نه پیداکیږي چي اوس یې بازار په ګرده غربي نړۍ کي ګرم دی، دمسلمانانو خلیفه دهغوي څوکیدار اوپیره دارهم وي اودهغوي سرپرست اومربي هم ،هغه دمسلمانانو پلار هم وي اودهغوي پیر او استاد هم وي اودهغوي شاهنشاه هم،که کومه مهمه چاره پیښه سي،لکه پریوه هیواد حمله کول یاله کوم قوم سره جګړه کول وي،له چاسره صلح کول وي اوکه دچادمرستي لپاره پوځ لېږل وي،لنډه داچي دمسلمانانو اودهغوي دهیواد دساتني لپاره چي هره اغیزمنه لاره چاره غوره کول په کار وي،په دغه ـسي ټولو مهمو چارو کي خلیفه له مسلمانانوسره خاماخا مشوره کوي،ځکه چي قرآن کریم همدغسي امر کړی دی،خودمشورې هدف به دانه وي چي عام وګړي دي دخپلو رایو په اکثریت دخپل هیواد دخلیفه نظر ټال کړي اوهغه دي دخپلي خوښي پرخلاف کار سرته رسولو ته اماده کړي،بلکي ددغي مشورې هدف به یوازي همداوي چي له خلیفه سره دیوه نظر په ورکولو کي مرسته وکولای سي یعني خلیفه دټولو نظریات واوري له موافقو اومخالفو نظریاتو څخه خبر سي اوپه پای کي یوه غوره رایه وټاکي اوپرهغې عمل کول پیل کړي.

وَشَاوِرْهُمْ فِی الْأَمْرِ فَاِذَا عَزَمْتَ فَتَوَکَّلْ عَلَی اللهِ اِنَّ اللهَ یُحِبُّ الْمُتَوَکِّلِیْن

( اوپه کارونو کي هغوته هم په مشوره کي برخه ورکړه بیاچي ستا اراده پرکومه رایه ټینګه سي،نوپر الله جل جلاله توکل وکړه دالله جل جلاله هغه خلګ خوښېږي چي دهماغه په ډاډینه کارکوي).
پورته یادکړل سوی نظام چي اسلام یې قائمول غواړي په راشده خلافت کي یې نمونه پیداکېږي،تر راشده خلافت ورسته دمسلمانانو حکومتي چاري په عمومي ډول په شخصي میراثي سلطنت واوښتې،خوداسلام زده کړو ښیکړي اواسلامي اخلاقو څرکونه په زیاترو هیوادواوکورنیوپه حکومتونوکي څرکندیدلې اوپه مجموعي ډول چي مسلمانانو څنګه حکومتونه وکړل،هغومره ښه اودستاینې وړ حکومتونه دنورو قامونو نه دي په برخه سوي ،خواوس وخت کې یې طالبانو داسلامي حکومت بېلګه وښودله لیکن روزې مونه شوه ، جمهوري حکومت چي مثالونه یې په اروپا او امریکا کي لیدل کېږي،هیڅکله دهغه نظام مقابله نه سي کولای،چي اسلام یې په نړۍ کي قائمول غواړي.

## دتاريخ پيليزه نقطه

په عام ډول مسلمانو مؤرخينو خپل کتابونه له آدم عليه السلام څخه لاځه چي ځينو يې دزمکي او آسمانونو له پيدا ايښت څخه پيل کړي دي،زه خپل افغاني تاريخ د حضرت محمد ﷺ له پيروانو راشده خلافتونو څخه پيل کوم،ځکه چي تر اسلام لمخه حالات له شک او اشتباه څخه خالي نه دي اودهغه له زماني لمخه تاريخ ليکني ته کومه خاصه پاملرنه هم نه ده سوې،همدا رنګه دنبي ﷺ له زمانې څخه داسلامي تاريخ پيلامه هم شمارل کېږي،ځکه چي په عامه پيژندګلوي کي رسول اکرم ﷺ ته داسلام بنسټ ايښوونکی اودهغه امت ته اهل اسلام ويل کېږي اوکه نه نودابو البشر حضرت آدم عليه السلام له زمانې څخه اسلام په نړۍ کي موجود او را روان دی.

## دتاريخ پيل څه وخت اوڅه ډول وشو ،

علامه بدرالدين عيني رحمه الله ليکي : چې کله په زمکه باندي دانسانانو ابادي په زياتيدو شوه نودتاريخ ضرورت محسوس شو،په لمړيو کې دحضرت آدم عليه السلام مزکي ته له راکښته کيدلو څخه تاريخ شمارل شروع شو، بيادحضرت نوح عليه السلام له طوفان څخه دتاريخ پيل وشو،بيادابراهيم عليه السلام د اورته لويدلو څخه تاريخ پيل شو، بيادیوسف عليه السلام په مصرکې له وزير کيدلو څخه ،بيادموسی عليه السلام له مصر څخه دوتلو ، بيادحضرت داؤدعليه السلام له وخت څخه ،اوبيادسليمان عليه السلام څخه ، اوبياله حضرت عيسي عليه السلام څخه دتاريخ پيل اوابتداء وشوه ، اوله دي وروسته هرقوم دخپلي علاقي مهمه اوستره پيښنه دخپل تاريخ لپاره ټاکله ، دمثال په ډول داحمر قوم دتبايعه پيښه ، دغسان قوم دسد سکندر، دصنعاء خلکو په حبشه باندي ديرغل وخت دتاريخ ابتداء ټاکلي وه ،علامه عيني رحمه الله ليکي : لکه څرنګه چې هرقوم دخپل تاريخ دپيل دارمدارپه قومي واقعاتو اوخصوصياتو باندي بناء کړی ؤ ،همداسي عربو هم دتاريخ لپاره ستری ستري واقعي اوپيښي بنياد اواساس ايښی ؤ ، ترټولو لمړی دبسوس دجګړي [حرب البسوس] (داهغه مشهورجنګ دی چې دبکربن وائل اوبني ذهل په مينځ کې ديوې اوبني له کبله څلويښت کاله پوري روان ؤ ،) څخه دتاريخ ابتداء وشوه ، له دي وروسته دداحس جګړه (چې محض په آس ځغلونه کې په لمړيتوب سره دبني عبس اوبني ذبيان په مينځ کې ترنيمايي

صدی پوري روانه وه ) وشوه ، دجنگونو دنور زيات تفصيل لپاره العقدالفريد جلد ۳ صفحه ۷۴،او ابن الاثير ۳۸۴ ، وګورئ ،

بيادغبراء له جنګ څخه اوبيادذي قار له جګړی اوبيادفجارله جګړي څخه دتاريخ ابتداء اوپيل وشو ،اوله دي وروسته درسول الله صلی الله عليه وسلم دنيکه ګانو څخه دکعب بن لؤی له يوي واقعي څخه دکلونو اوتاريخ شمارل پيل شول،بيادااصحاب الفيل له پېښي څخه آن تردي چې دعام الفيل اصطلاح په دوی کې رواج وموندل ، عمدة القاري ج17 ص66 ليکن دومره خبره واضح ده چې درومیانو اويونانيانو په دورکې خصوصادسکندراعظم له فتوحاتو څخه دتاريخ هغه برخه شروع شوي چې دنړۍ داکثرو هيوادونوحالات يې داسي دنياته وړاندي کړل چې دهغې سلسلي ختميدلو نوبت ډيرکم موجودؤ اوپه عام ډول باندي له همدي ځايه دزماني دتاريخ ابتداء بلله کيږي،

### داسلامي (هجري ) تاريخ پيل په دې ډول شوي:

رسول الله صلی الله عليه وسلم دصفرالمظفرپه ۲۷ له مکي مکرمي څخه هجرت وکړ په غارثورکي يې قيام وکړ، دربيع الاول په لمړی ورځ له غارثور څخه رسول الله صلی الله عليه وسلم اودهغه ملګری حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه روان شول ، اودربيع الاول په اتمه نيټه قباء ته ورسيدل ، اودربيع الاول په ۱۲ باندي دجمعي مبارکي په ورځ ، (د ۶۲۲ميلادي کال دستمبر۲۷ ) باندي مديني منوري ته ورسيدل، څنګه چې دهجري اسلامي کال شروع له ربيع الاول څخه کيدله ، نوله دي کبله صحابه کرامو له ربيع الاول څخه حساب شروع کړی ؤ ،ليکن صحابه کرامو ديوې يوې مياشتي اودؤ دؤ مياشتو په فاصله سره تاريخ معلومول،د رسول الله صلی الله عليه وسلم اوابوبکر صديق رضی الله عنه پوره زمانه همداسي تيره شوه ، بيافاروق اعظم رضی الله عنه دغه مسئله په مستقل ډول باندي حل کړه ، ددي تاريخي حقيقت اشاره مولاناابوالکلام ازاد په خپل کتاب رسول رحمت کې کړي ده ، په هرحال داسلامي تاريخ فيصله په مستقل ډول باندي دهجرت په ۱۷ اولسم کال دجمادی الاولی دچهارشنبي په ورځ وشوه ،

دحضرت عمر رضی الله عنه دخلافت په زمانه کې ابوموسی اشعري رضی الله عنه دعراق اوکوفي والي ؤ یوځل هغه حضرت عمر رضی الله عنه ته دیوه خط په ترڅ کې ولیکل چې ستاسو له لوري چې مورته کوم هدایات اواحکام راځي په هغه کې تاریخ نه وي نوځکه دا نه معلومیږي چې داد کوم تاریخ حکم نامه ده ، چې له کبله یې کله ناکله په هغه باندي دعمل کولو مشکل پېښیږي ،

نو په دي خبره باندي دغور کولو لپاره حضرت عمر رضی الله عنه دشوری مجلس را ووغوښت اوستر سترصحابه کرام یې راغونډ کړل چې په هغوی کې حضرت عثمان ، حضرت علی رضی الله عنهماهم شامل ؤ ، دابحث شروع شو چې دکال ابتداء اوپیل بایدله کوم ځایه وشي ، حضرت علی رضی الله عنه دهجرت رایه ورکړه اوپه همدي باندي دټولو اتفاق شو ،

## دتاریخ اوجغرافیې ترمنځ اړیکي

دجغرافیې له تاریخ سره په یقیني توګه ډیري قوي اړیکي دي.له همدې امله چې په اوسنۍ زمانه کي داروپایانو په تقلید کوم تاریخونه لیکل سوي دي.له هغوسره جغرافیه هم یوځای کړل سوې ده دحضرت محمدﷺ سیرت لیکونکو هم دعربي هیواد جغرافیه دوضاحت غوښتونکو مطالبو سره ضروري ګڼلې ده. خوځرنګه چي زه غواړم دهیواد مختصر تاریخ داسلامی ارزښتنو په پام کې لرولوسره ولیکم .په همدې خاطر که زه دخپل کتاب کومه ځانګړې برخه دجغرافیې لپاره مخصوصه کړم .نوبیامجبور یم چي دټولي نړۍ جغرافیه ولیکم.خوزه یواځې دیوه هیواد تاریخ لیکل غواړم .ددغه لنډیز په نظر کي نیولو له امله ډېره ګرانه ده.په همدې اساس زه له دغه نیک ګمان څخه ګټه اخیستل غواړم چي ددغه کتاب لوستونکي به خاماخا دهیواد اوڅه ناڅه دنړۍ له جغرافیې څخه خبر وي اودهیواداوهمسایه ملکونونقشې به هم له دوي سره موجودي وي.یابه یې هغوي پخپله واخلي.خوبیاهم زما اراده ده چي داړتیا پروخت ځای پر ځای دي دهیوادونو او ایالاتونو نقشې په دغه کتاب کي شاملې کړای سي. اوددې کتاب په لیکلوکې مي زیاتره له اسلامي تاریخوڅخه هم ګټه اخستل ضروري وګڼل ولي چي هغوي داحادیثو کتابونه دعام تاریخ پرکتابونومعتمد م

اومستنددي . اوپه هغواسلامی تاریخونوکې او په کتابونوکي له طبری ،الکامل،ابن اثیر،مسعودی،ابوالضاء،ابن خلدون،تاریخ الخلفاء دسیو طي اونورو څخه په خپله اندازه ګټه اخستل سوې ده اوپه دې ډول مي دتاریخ ښه لنډیز راټول کړی دی. دعثماني خلافت او دعباسي خلافت دضعف اوځوړتیا دزمانې له پیل کیدو سره چي په کومو اسلامي هیوادونوکي سلطنتونه قائم سوی دهغوی ټولو لیکنه ګرانه وځکه زمامطلب دلته هم یوائې ګران هیواد افغانستان دي .ځای پرځای مي دعیسوي مؤرخینو حوالي هم ورکړې دي اودهغوي لیکني مي هم رانقل کړې دي.خو هغه یوازي دمدعی داثبات لپاره په عمومي ډول زما عقیده داده چي دعیسویانو لیکل سوي تاریخونه دمسلمانانو مؤرخینو په مقابل کي دډېري ټيټي مرتبې دي.اوموږ باید دخپل زړه دتسکین ادپیښني دربښتنولي لپاره هیڅلکه دهغوي لوري ته پاملرنه ونه کړو.

بل مې دهیواد دنامتوتاریخ لیکونکولکه : علامه حبیبی ،استاد بینوا ،استادرفیع،او داسی نورو تاریخ لیکونکي مستندتوکي راټول کړي اوبیامې هغه ټکي په ټکی بې له کوم تغیرراوړي ،ځکه زه خومؤرخ نه یم صرف دومره بایدووایم چي دافغانستان تاریخ مې په یوه اسلامي بڼه یااسلامي ارزښتنوسره یوځای کړي یامې اسلامي رنګ او ویاړونه ورسره په برم کې نیول .

الحمدلله مسلمانان مؤرخین ترډېره حده له دې عیب څخه بچ پاتي دي اودهمدې لپاره هغوي دصحیح ګواه په حیث له موږ سره ډیره مرسته کولای سي.

## داسلامي کال شروع له محرم الحرام څخه ولي وشوه ؟

له دی څخه وروسته دمیاشتو په هکله مشبوره وشوه ، حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه درجب المرجب رایه ورکړه ، ځکه چې دادشهرالحرام اولنی میاشت ده ، حضرت طلحه رضی الله عنه درمضان المبارک رایه ورکړه ، بعض نورو حضراتو دربیع الاول رایه ورکړه ، حضرت عثمان رضی الله عنه اوحضرت علی کرم الله وجهه دمحرم الحرام رایه ورکړه ، همدارایه فاروق اعظم حضرت عمر رضی الله عنه خوښه اوتایید کړه .

## داسلامي تاریخ لپاره دهجرت دامتیاز لاملونه :

له هجرته وروسته مدینه منوره دمسلمانانو لپاره یومستحکم مرکزحیثیت پیداکړ، مسلمانانو ته په ازادي سره دعباداتوکولو اورسول الله صلی الله علیه وسلم ته دتګ راتګ زمینه مساعده شوه ، اهل اسلام نښبتا دسکو ن اوارام ساه واخسته ، داسلامي طرز ژوندتیرولو پلوشي وغوړیدي ، داسلام داقتصادي اومعاشي پروګرامونو له پاره عملي لاري چاري هواري شوي، داسلامي تعلیماتو دنشراوخپراوي لپاره پاک چاپیریال رامینځ ته شو ، یواسلامي حکومت قائم شو چې سرپرستي یې رسو ل الله صلی الله علیه وسلم کوله ، داسلام ددغه ظاهري اوباطني شان اوشوکت ته په کتلو سره له هجرت څخه داسلامي کال پیل وشو،

## دتاریخ سرچنی اودهغه ګټي :

دتاریخ سرچنې یا مأخذ عموماپه درو برخو ویشل شوی دی :

**مضبوط اثار:** یعني ټول لیکل شوي شیان ، لکه کتابونه ، یادداشتونه ، ددفترو نو کاغذان ، زړي فیصلی ، دستاویزات اوداسي نور،

**منقوله اثار:** یعني په ژبه جاري عامي کیسي ، شعرونه ، متلونه ، اوداسي نور،

**لرغوني اثار :** یعني دپخواني زماني نښاني ، دمثال په ډول دښارونو خرابي ،کندوالي ،قلاګاني ، مکانات ، کتبي ، تصویرونه اوداسي نور، دتاریخ فایدوته په کتلو سره علامه ابن خلدون لیکي : چې تاریخ یوداسي شیئ اویوداسي فن دی چې ډیري زیاتي فایدي

اوبهترینې پایلو باندي مشتمل دی ، اودتاریخ علم موږته دمخکینیو خلکو اخلاق ، عادات ، حالات، دانبیاء کرامو پاک سیرتونه اودپادشاهانودحکومتونواودهغوی له سیاستونوسره اشناکوي، ددي لپاره که کوم ځوک دیني یادنیوي معاملاتوکې په هغوی کې دچاپیروي کوي نو کولی شي ،[مقدمة ابن خلدون]

دتاریخ مقصد اوفایدي بیانولو اړوندمولانامحمدمیان دتاریخ اسلام لیکوال لیکي : چې کوم حالات په موجوده زمانه کې روان دي دهغه له تیرشویو حالاتوسره په مقایسه کولو سره نتیجي ته رسیدل اوپه هغه باندي عمل کول دتاریخ مقصددی ،

**دتقویم (جنتري) تحقیق اودهغې ضرورت :**

دتیري زماني واقعات اوحادثات اونورو دساتلو لپاره اوپه راتلونکي زمانه کې دکاروبار ، پور لین دین اونورودتاریخ معلومولو لپاره کلیزه ، جنتري یاتقویم ډیر اړین دی ، ځکه چې له جنتري پرته نه دماضي تاریخ معلومیدلی شي اونه دمستقبل دتاریخ تعین کیدلی شي .

**دجنتري قسمونه :**

ښکاره خبره ده چې په دنیاکې څوډوله جنتریاني چلیږي ، چې دهغوی دارمدار په درو شیانو باندي دی ، لمر ، سپوږمۍ ، ستوري ، نو ځکه بنیادي جنتریاني درې داني دي، شمسي ، قمري ، اونجومي ، بیاشمسي جنتري په درې ډوله ده ، یوه عیسوي ، چې په انګلیسي کې ورته میلادي هم ویل کیږي ، دهمه ، بکرمي ، چې په هندي سره هم مشهوره ده ،

دریيم فصلي تاریخ دی ، له دي څخه پرته نوري جنتریاني اوکلیزې هم شته لکه رومي تاریخ ، الهي تاریخ ،

## عیسوي تاریخ :

عیسوي تاریخ چې په انګلیسي کې ورته میلادي هم ویل کیږي یولمریز تاریخ دی ، داتاریخ دحضرت عیسی علیه السلام له پیدایښت څخه رواج موندلی ، یادنصاري ؤ دباطل ګمان چې ګویادوی حضرت عیسی علیه السلام په دارځړولی شروع کیږي، ددي پیل دجنوري له میاشتي اوپای یې ددسمبر میاشت ده ،

## هندي تاريخ :

هندي كال ته بسنت ويل كيږي ، ددي تاريخ دوهم نوم بكرمي دى ، چې دمياشتو نومونه يې په دي ډول دى ، چيت ، بيساک، جيټهه ،اساړهه ،ساون ،بهادوڼ،کنوار،کاتک ،اګهن ،پوس ،ماګه ، پهاګن، ويل كيږي چې داكال له هجرت څخه تقريبا٦٣٧ كاله مخكي اوله عيسوي تاريخ څخه ٥٧كاله مخكي دګجرات په کاټياوار سيمه کې رواج ؤ ،

دفصلي تاريخ ، په بنيادي ډول باندي شمسى كال دى ، داكال داكبربادشاه په زمانه کې دمال ګزاري دوصولولو اونورو دفتري انتظاماتو لپاره جوړکړى شوى ؤ ،

نجومي جنتري دشاكها په نوم سره شهرت لري ، چې دمياشتو نومونه يې په دي ډول دي ، حمل ، ثور ، جوزا ،سرطان ، اسد ، سنبله ، ميزان ، عقرب ، قوس ، جدى ، دلو ، حوت ،چې په پښتوکې يې دغه نومونه دي : ورى ، غويى ، غبرګولى ، چنګاښ ،زمرى ، وږى ، تله ، لړم ، ليندۍ ، مرغومې ، سلواغه ، كب.

## رومي ، اسكندري اوالهي تاريخونه :

رومي تاريخ داسكندرله زماني څخه رواج دى چې په كال ١٩٧٥ء کې ٢٢٨٦ء لمريز كلونه تيرشوي دي ، ددي دوهم نوم تاريخ اسكندر دى دا٢٨٢١ قبل المسيح څخه شروع كيږي ،

درومي تاريخ مياشتي (چې پيل يې له مهرجان يعني كاتک څخه كيږي ) دادي، تشرين اول ، تشرين آخر،كانون اول ، كانون آخر،شباط،اذار،نيسان ،ابار،حزيران،تموز،اب،ايلول،درومیانو کال ١-۴-٣۶۵ ورځي وي، تشرين آخر ، نيسان ، حزيران ، اوايلول دغه څلورمياشتي ٣٠ ورځي وي پاتي ټولي ٣١ ورځي وي، پرته له شباط نه چې ٢٨ ورځي ده ، اوهرڅلورم كال ٢٩ ورځی وی،دتاريخ الهي : مياشتي په دي ډول دي ، فروردين ، اردي ، بهشت ، خورداد ، تير ،امرداد ،شهرپو ، مهر،آبان ذي ، بهمن ، اسفندار، داكليزه داكبربادشاه دجلوس په تاريخ يعني ٣ ربيع الثاني ٩٩٢ هجري څخه شروع شو ، په دي کې حقيقتًا لمريز كال وي.

## سپوږمیز تاریخ :

دسپوږمیز تاریخ ابتداء له محرم الحرام څخه کیږي ، دا اسلامي تاریخ دی چې ترنورو ټولو جنتریانو اوتاریخونو په هرلحاظ ممتازاو ښه دی ، چې دمیاشتو نومان یې دادي ، محرم الحرام ، صفر ، ربیع الاول ، ربیع الثاني ، جمادی الاولی ، جمادی الثاني ، رجب ، شعبان ، رمضان ، شوال ، ذوی القعدة ، ذوي الحجة ،چې په پښتو کې یې دغه نومونه دي : محرم ، صفر ، لمړی خور ، دوهمه خور ، دریمه خور ، څلورمه خور ، دخدای تعالی میاشت ، برات ، روژه ، کمکی اختر ، میانه ، لوی اختر ،

## په لمریز اوسپوږمیز کال کې فرق :

باید پوه شو چې لمریز کال درې سوه پنځه شپیته ۳۶۵ اوڅلورمه دورځې وي ، په څلورکاله کې یوه ورځ زیاتیږي ، نوپه هرڅلورم کال کې کال ۳۶۶ ورځې کیږي ، ترسپوږمیز کال په لمریز کال کې لس ورځې یوویشت ساعته زیاتوب وي ،

## دقمري «سپوږمیز» تاریخ ګټې ،

په مروجه جنتریانوکې چې کومې فایدې اوګټې په سپوږمیز یعني اسلامي جنتري کې دي هغه په کوم بل تقویم یاجنتري کې نشته ، اونه به پیداشي ، ځکه چې دکائناتو رب جل جلاله دورځني کاروبار ،لین دین ، داساني اوسهولت لپاره دسپوږمۍ نظام داسې جوړکړی چې هرانسان یې په هره علاقه کې په اساني سره دتاریخ تعین کولی شي ،مثلا دلویدیزپه طرف کې کله سپوږمۍ نرۍ په نظرراشي نو هرانسان ، که عالم وي که جاهل ، ښاري وي اوکه کلیوال هریو دامعلومولی شي چې نن دمیاشتې لمړنی تاریخ دی ، همداراز چې کله سپوږمۍ بلکل مکمله وي نوله دې څخه دڅوارلسم تاریخ تعین کیدلی شي ،همداراز که سپوږمۍ دختیز له لوري باریکه اونرمه راوخیژي نومعلومیږي چې اوویشتم یا أته ویشتم تاریخ دی ، دغه ډول ورځ په ورځ باندې دسپوږمۍ صورت په ښکاره ډول بدلیږي چې له کبله یې هرانسان په معمولي پوهه سره دتاریخ تعین کولی شي ، په خلاف له لمریز تقویم اوجنتري چې له هغه څخه دتاریخو نو صحیح درک نه معلومیږي ، مثلا که دډیسمبر پنځلس تاریخ وي نولمرته په کتلو سره هیڅوک دانه شي معلومولی چې نن دمیاشتې پنځلسم دی اونه دهغه په هیئت اوصورت کې کوم ښکاوه بدلون راځي،چې یوڅوک یې په لیدلو سره دتاریخ تعین وکړي، همداراز دشمسي تاریخ په آلات رصدیه اودریاضي په قاعدو باندې موقوف دی ، چې هرڅوک یې په اساني سره نه شي معلومولی،نوله دي کبله الله تعالی داحکامو اوعباداتو مدارپه سپوږمیزحساب باندې کیښود ، الله تعالی فرمایي : یسئلونک عن الاهلة قل هی مواقیت للناس والحج (البقره:189)

## په قرآن کریم کې دقمري میاشتو یادونه :

دقمري یا سپوږمیز کال دمیاشتو ذکرپه قرآن کریم کې صراحة موجوددی، لکه شهررمضان الذي.... په دې ایت کې دسپوږمیزکال درمضان دمیاشتې په ښکاره ډول یادونه شوې ، اویاهم ضمنا ذکردی ، لکه الحج اشهرمعلومات ، په دې آیت کې له اشهرالحج څخه مراد ، شوال ، ذوالقعدة اوذوالحجة دي، په یوبل آیت کې داسلامي کال دټولو میاشتو یادونه ضمنا راغلي ده ، لکه الله جل جلاله چې فرمایي: ان عدة الشهور عندالله اثنا عشر شهرا،ژباړه: بیشکه دمیاشتو شمیردالله جل جلاله په نزدباندې دوولس میاشتې دي ، په دې آیت کې چې دکومودوولسو میاشتو یادونه شوې له هغه څخه مراددسپوږمیزکال میاشتې دي ، ددې دلیل هم همدغه آیت دی ، په دې ډول چې په دې آیت کې کومې څلورمیاشتې دادب لپاره خاص کړل شوي دي هغه ذوالقعده ، ذوالحجة محرم اورجب دي ، چې ورته اشهرالحرم ویل هم ویل کیږي ، چې دغه څلورمیاشتې قمري میاشتې دي نوهغه پاتي اتو میاشتوڅخه به هم یقیناقمري میاشتې مرادوي،له دغه آیت څخه داهم معلومه شوه چې دقمري میاشتوترتیب اودهغوی نومونه چې په اسلام کې مشهوراومعلوم دي دادانسانانو له خواڅخه جوړشوي اصطلاحات نه دي، بلکه الله رب العزة چې په کومه ورځ زمکه اوآسمان پیداکړي له هغې ورځې یې همداترتیب اودانومونه دي ، له هرې میاشتې سره خاص خاص احکام متعین شوي چې دهغه تعبیرپه دین قیم سره شوی دی، نوقمري جنتري دالله تعالی یوخوښ اسلامي تقویم اوجنتري ده ،

## څوپوښتنې اودهغوی ځوابونه :

بعض خلک داوایي چې قمري حساب یقیني نه ده ځکه چې میاشت کله دنه ویشت شپووي کله دیرش وي ، نوددې جواب دادی چې دمیاشتې لیدلو یقیني تاریخ نه شي متعین کیدلی ، لیکن دااعتراض په روانه میاشت کې نه شي کیدلی ځکه چې دهغې تعین دمیاشتو په لیدلوسره شوی دی ، البتة دراتلونکي میاشتې په هکله اندیښنه موجوده ده ، مګردهغې تعین هم په ورځوشمارلو سره کیدلی شي،دمثال په ډول دشوال اتمه په کال ۱۴۳۲هجري کې دجمعې په ورځ وه ، نو له جمعې څخه دتاریخ تعین وشو ،دوهمه خبره داده چې په عملي ډول سره دمیاشتې لیدل دمذهبي مناسباتو لپاره ضروري ده دعام حساب لپاره ضروري نه ده ، هغه په حسابي طریقه سره هم متعین کیدلی شي.

په ټوله نړۍ کې دمیاشتي طلوع په یوه ورځ نه کیږي بلکه په مینځني ختیځ کې تر برصغیر یوه یادوي ورځي مخکې میاشت لیدله کیږي ، نوپه عربي هیوادونو افغانستان پاکستان بنګله دیش اونوروسیمو دتاریخونو فرق راځي نومذهبي تقریبات به دکومو خلکوپه تاریخ باندي لمانځل کیږي، که دهرځای خپل میاشت لید معتبرکړل شي نو عبادت په یوه وخت نه شي اداء کیدلی ؟ ددي خبري جواب دادی چې دعبادت لپاره دهرځای خپل روئیت یعني میاشت لید معتبردی ، ځکه اسلام یونړیوال دین دی دټولوانسانانولپاره دهرځای اودټولو زمانولپاره دی نوپه ټوله نړۍ کې په یوه وخت عبادات اداء کول ممکن نه دي.

دمثال په توګه : دمکي مکرمي دسهار داذان په مهال په اندونیزیا کې دسهار لمونځ کول ممکن نه دي ، همداډول دمکي مکرمي دمطلع مطابق په آستریلیا کې اخترجوړول ممکن نه دي ، نودمسجد حرام لمونځ به په خپل وخت اداء کیږي او داندونیزیالمونځ به په خپل وخت اوزموږ دهیواد لمونځ په په خپل وخت کې اداء کیږي، اوپه لیري ختیځ په هیوادونو کې به اختراونورعبادات دخپل مطلع مطابق اداء کیږي، اوداخبره کوم دنقص اونیمګړتیاخبره هم نه ده ، دافرق دعیسایانو اوهندوانو چې عبادات یې په شمسي کال باندي دي هم شته ، دمثال په ډول هغه مهال چې په ویټي کې دکرسمس ژنګوله غږیږي ترهغه تقریبا یوولس ساعته مخکې دسخالین په ټاپو کې دکرسمس عبادت شوی وي.

اوکوم مهال چې دهندوستان په بنارس کې دبسنګ پنجمي اعلان کیږي په خاص هغه ساعت په ماریشس کې نه کیږي اوداسي نور، نوداخبره تقریباپه یوه وخت کې دهیڅ چالپاره ممکنه نه ده ، په سپوږمیزهجري کال کې داخبره داعتراض په ډول وړاندي کول صحیح نه دي ، اصل خبره داده چې دهجري تقویم یاجنتري په غوره کولو کې چې دکومو باریکیو اوپریشانیو یادونه کیږي هغه ټول حسي واهمات دي ، اوبله لویه وجه په اسلامي هیوادونو کې داسلامي تقویم یاجنتري عدم نفاذ دی ، ځکه خوټول له دغه اسلامي نظام څخه اجنبیت محسوسوي که دغه اسلامي تاریخ نافذشي نوپه تجربه اودوخت په تیریدلو سره به ټول شبهات اوشکوک ختم شي ، په عربي هیوادونو خصوصاپه سعودي عرب کې چیري چې اسلامي تقویم نافذدی هلته دجنتري یاحساب کتاب کې کله هم ابهام نه دی پیداشوی ، اوچاته کوم مشکل اوسوال هم نه پیداکیږي.

دشمسي اوقمري تاریخ متعلق اخرۍ اومهمه خبره دمفتي محمدشفیع رحمه الله په دي خبره سره کوو، هغه لیکي : ددي دامعنی نه ده چې شمسي تاریخ استعمالولو ناجائزدي ، بلکه هغه ته

اختياردى، يوځوک خوبه لمونځ ، روژه ، زکات ، عدة اوداسي نورعبادات دقمري حساب مطابق کوي، مګرپه تجارت اوکاروبار کې ورته اختياردى که شمسي کال استعمالوي اوکه قمري تاريخ ، شرط دادى چې په ټوليز ډول به په مسلمانانوکې سپوږميزحساب جاري وي ، ترڅو درمضان ، حج اونوروااوقات معلوم وي، داسي نه وي چې له جنوري فروري ياحمل ثور څخه پرته هيڅ ورته معلوم نه وي، فقهاء دقمري حساب جاري ساتل دمسلمانانو په ذمه فرض کفاية بللي ، هو په دي کې شک نشته چې دانبياء کرامو اودرسول الله صلى الله عليه وسلم سنت اودخلفاء راشدينو رضى الله عنهم اجمعين طريقه ده ، نوددي اتباع دبرکت اوثواب سبب دى ،خوشمېرېې حرام بولي اووجه يې داګڼي چې له کفارو سره مشابهت دي.

(۲)دويم څپرکی

# داسلام په لومړيو کې
# افغانستان داسلامي علومو ځانګووه
## (دتاريخونو غورچاڼ)

په څلورمه هجري پيړۍ کې بلخي سامانيانو په ماورالنهر کې حکومت کاوه اود آمو څخه دې خواسيمې بلخ ، هرات ، مرو ،اونيشاپور هم د آل سامان په پاچاهي کې شامل و .خو سيمه ايز حاکمان لکه فريغونيان په جوز جان کې،لودي حکمرانان په ملتان ،پښتانه دسليمان په غرونو، د روه او بانيجور کورنۍ په تخار ستان ،شاران په غرستان ،دشيران پاتې شونې په باميان ، دکوشاني پاتې شوني لويکان په غزنه اوګرديز ،دصفاري پاتې شونې په سيستان اوهلمند، دکابل شاهانو اولاده دکابل سيند په غاړو، داندراب حاکمان دهندوکش په غرونو ،سوريان په غور ،دمحتاج کورنۍ په چغانيان اوسيمجوريان په نيشاپور ،طوس اوهرات کې په خپلواکه او نيم خپلواکه توګه حکومت کاوه اودمنځنۍ اسيا خلک په دې ډول ملوک الطوايفي حکومتونو کې سرګردانه اودکړاو نه ډک ژوند تېراوه.
ددې سيميزو اميرانو دډلې څخه ،سبکتګين دجو قرابجکم زوی چې نوی مسلمان اوزړه ور سړی و، په ۳۶۶ ق دشعبان په ۲۷ نيټه دغزني په شاهي تخت کېناست اودسند دسين څخه يې تر ری اوآمو څخه يې د عرب بحيرې ترغاړو حکومت وکړ اوکله چې په ۳۸۷ لمريز کال کې مړ شو، دده زوی سلطان محمود يې پر ځای کېناست اودهغه وخت داسلامي نړۍ په دې ختيځه برخه کې يې ديوې لويې پاچاهي بنسټ کېښود اوډېر سيمه ايز اميران اوحاکمان يې له منځه يوړل .په دې وخت کې اسلامي خلافت دوه مهم مرکزونه درلودل چې يويې په قاهره کې دمصر داسماعيلي فاطميانو قدرت اوبل يې په بغداد کې دآل عباس کورنۍ وه . که څه هم دادواړه کورنۍ له آره اصيل هاشميان اودنبوت دکورنۍ څخه و، خودمصر فاطميان چې نيغ په نيغه حسني فاطمي اوعلوي و،د(معصوم امامت ) دعقيدې په بنسټ ځان په حقه ګاڼه، همدا ډول په اسلامي نړۍ کې دامير المؤ منين علي

(رض) نوره اولاده هم وه چې دآل عباس حکومت ئې روانه ګڼه اودامامت اوخلافت دمقام لاسته راوړلو لپاره يې هڅې کولې.

څنګه چې د سامانیانو دقوت له نړېدو څخه وروسته دخراسان سیاسي قدرت په عملي توګه په غزنه اودسلطان محمو د په دربارکې ځای پر ځای شو، نو دقاهرې اوبغدادد خلافت دواړو مرکزونو کوښښ کاوه چې دې ستر سیاسي قوت څخه ګټه پوره کړي او یا يې لږترلږه خپل دښمن ونه ګرځوي نو دې دواړو دغزني دربار ته دسفیرانو په لیږلو پیل وکړ.

سلطان محمود دخپلو خلکو دفکري اوروحي څرنګوالي اودخپلې پاچاهي دګټو دساتنې لپاره نه غوښتل چې داسماعیلي لرې پرتو فاطمیانو روحي اومادي تسلط ته په خپل هیواد کې لاره ورکړي، نو کله چې ټول خراسان ده ته تسلیم شو او ساماني عبد الملک ماته وخوړه، نو دالقادر بالله عباسي خلیفه دربارته يې لیک واستوه اود بغداد دربار څخه يې یمین الدولې اوامین المله محمود لقبونه لاس ته راوړل اودهغه را استول شوي قیمتي جامې يې دبلخ په عام دربارکې واغوستلې( ۳۸۹ لمریز) خو کله چې په ۴۰۳ لمریز دمصر دعزیزمصر الحکیم فاطمي استازي د(تاهرتي) په نامه دمحمود دربارته راغی نو دګریزي په وینا ،دغه استازی يې خپل حضور ته ونه مانه اوامر يې وکړ چې هغه حسن بن مسلم علوي ته وسپاري اوحسن دبست په ښار کې ددغه قاهري سر پرې کړ (زین الاخبار۱۸۱مخ )

دمحمود دپاچاهي په سیمه کې دوه اسلامي ډلو اکثریت درلوده چې یوه يې داهل سنت حنفي مذهب ډله وه چې یوعلمي اوفکري مرکز يې په بلخ کې و اوبله يې دشیعه ګانو دآل محمد اثناعشري ډله چې دخراسان اوعراق په اکثره ښارونو کې يې ژوند کاوه اودوئ داسماعیلیانو سره دامامت دمسئلې په اړه مخالفت وکړځکه چې دوئ امام جعفرصادق ( ۱۴۸ کې ومړ )له ده څخه وروسته دده زوی امام موسی کاظم( ۱۸۳ لمریز) اوم امام ګڼه خو اسماعیلیانو دامام جعفر صادق بل زوی یعني اسماعیل معصوم امام باله.

سلطان محمود چې دمصري اسماعیلیانو اوبغداد خلیفه ګانو-سیالي دسر په سترګو لیده نوددې لپاره چې خپلې ګټې دبغداد دخلافت په سیوري کې خوندي کړي اوهم خپل اثنا عشري رعیت خوشاله وساتي نو دقاهرې ددربار او دهغه لارویو په مقابل کې يې کلک سیاست غوره کړ. تردې چې ویل به ئې (( ما په ټو له نړۍ کې دعباسیانو په ملاتړ دقرمطیانو دمذهب په ضد هوډ کړی او هر ځای يې چې پیدا کړم په دار يې خیژوم ))( بیهقي ۲۰۸ مخ )

دا سیاست چې محمود غوره کړ ی و دهغه دمړینې څخه وروسته دهغه زوی مسعود هم په ډیره سختئ دوام ورکړ او آن چه دخپل دربار مخالفین یې دقرمطیت او (باطنیت ) په تور له منځه یوړل او پخپله مسعود دسلطان محمود لوی وزیر امیر حسنک میکالي نیشاپوري چې دبیهقي په قول (پدریان ) و اودمحمود دپاچاهي په وخت کې ترې شهزاده مسعود خپه شوی و دقرمطي ،په تور په بلخ کې په دار وځړاوه او دا په داسې حال کې چې سلطان محمود پخپله دحسنک په باره کې ویلي و ((دا ما روزلی دی او زما دزامنو او ورونو سره برابردی که دا قرمطی وی زه هم قرمطي یم ))
(بیهقي ۲۰۸مخ )

ښائ ووایو چې د سیستان او د عقبا د تاریخ له مخې د سلطان محمود پلار سبکتګین) کرامي) مذهبه و او لکه څنګه چې ابن خلکان د ( مغیت الخلق امام الحرمین عبدالمالک جوینی معاصر سلطان )کتاب له مخې حنفي مذهبه بولي چې بیا دېږندل شوي فقه پوه قفال مروزي په هڅه ، شافعي مذهبه شو ، نو په داسې حال کې نه ښایي چې ووایو چې غزنوي پاچاهان دمذهبي تعصوبونوڅخه پاک او یا ئې د سیاسي ګټو په خاطر ددغه جذباتو څخه استفاده نه وه کړې او له همدې کبله شقاضي منهاج سراج جوزجاني دسبکتګین په باره کې وائي ((دهغه په وخت کې لوی، لوی کارونه وشول او د( باطنیه فساد ) عقیده دخراسان څخه ورکه شوه ))

څلور مه هجري پیړی ددغه سیاسي اوفکري بحرانونو څخه متا ثره وه اولکه څنګه چې لیدل کیږي ، کله چې داحنف بن قیس تمیمي په مشري دعربو فاتحو لښکرو دآمو سهیلي برخې تر تخارستان پورې ونیولي ( طبري ۴۴۲\۳ اوابن اثیر۱۶\۳ ) نو په دغه وخت کې د چینې زایر هیون تسنګ په وینا دبلخ نو بهار دبودائي دین مرکز اومسلمانانو وکولی شول چې دغه عبادت ځایونه له منځه یوسي او بلخ دلښکرو دورتګ اود اسلامي فکر دروزلو مرکز جوړ کړي اوهمدې حالت دراتلونکي پنځه پېړیو پورې دوام درلود . مونږ ګورو چه اسلامي علوم لکه تفسیر، حدیث ،فقه ، تصوف ،کلام اوداسې نور هلته وښوول شول او د( قبی الاسلام) یا( فضایل بلخ ) دلیکوال په وینا دابنار(بلخ ) ددار الفقا هه اودار الاجتهاد په نوم یادیږي . په دې پنځه پیړیو کې ډیر دیني کسان او دعربو عالمان په بلخ کې وینو او په همدې ډول بلخي شخصیتونه دحجاز ،کوفې ، بصرې، بغداد اونورو علمي اوفقهي مرکزونو په ډله کې لیدل کیږي چې بیائې دغه علوم بلخ او خراسان ته لیږدولي دي دمثال په ډول ابومطیع بلخي د (۱۰۴المریز کې ومړ ) هغه څوک دی چې د ابو حنیفه په خدمت کې اودفقهې اوفتوا په برخه کې دې درجې ته رسیدلی و چې ابو حنیفه) رح) پخپل حضور کې هغه دفتوا په ورکولو وګماره ، او امام مالک بن انس به و یل چې بلخ کې داسې قاضي شته چې دانبیاوځای

ناستی دی ( فضایل بلخ ۱۷۷ مخ ) او ان چې قاضي ابو یو سف دامام ابو حنیفه دفقهې ملګری و دتهولو څخه لوی عالم دی ویلي چې (دابي بطیخ بلخي څخه لوی فقه پوه نشته ))اوپه همدې ډول قاضي یحیا بن اکثیم ( ۲۴۲\۱۵۹ المریز ( دبلخ دعلماو په باره کې ویلي دي ((په هیڅ ښار کې داسې عالمان نشته لکه په بلخ کې چې دي. )) فضایل ۲۴ مخ ).
دبلخ زیاترو علماو دعلم دپلټنې لپاره اسلامي علمي مرکزونو ته په تګ راتګ کې و لکه بلخي عمر بن هارون چې دسترو فقهاو اومحدثینو څخه دی اودعلم په بحر نومول شوی دی چې په ( ۱۹۶ه)په داسې حال کې چې دعلم په هڅه بصرې ته تللی و اوهلته ومړ(۱۹۳مخ فضایل )
اوقاضي القضات ابوعلي حسن وخشي چې مصریانو اوعراقیانو ته د حدیثو دزده کړې لپاره تللی اوپه (۲۷۱المریز ) مړشو .همدارنګه متحا په اصفهان کې لوی محدث اوصوفي و (۴۰۰مخ فضایل( ښائ ووایو چې نه یواځې دبلخ وګړو به دعلم دزده کړې لپاره دابو حنیفه (رح ) خدمت کاوه او د هر علم په مدرسو کې شامل و بلکه ښځو هم دغه شان سفرونه کړي دي لکه مهدعلیه دمشهور بلخي شیخ احمد خضرویه ښځه چې په (۲۳۰ لمریز ) کې یې دعلم دزده کړې لپاره سفر وکړ او د فضایل لیکوال ددې په اړه وایې چې د شیخ احمد خضرویه ښځې دصالح بن عبد الله څخه دتفسیر دکتاب روایت کړی اووائي چې خپل جایداد ئي په ۹۷زره درهمه وپلورل او حج یې وکړ اوچې دحج نه فارغه شوه نو علم ته یې مخه کړه اوه کاله یې دعلم زده کړه وکړه احادیث یې واوریدل اوبیابلخ ته راغله )
فضایل ۲۷۲مخ) دبلخ زیاتره علمان دتابیعینو اوتبع تابعینو اوبیاوروسته داحادیثو دروایت کونکو او په فقه کې داجتهاد مقام درلودونکي و او په همدې ډول طوسي یوه مدرسه په دې ښار کې پرانیستله چې حسن و خشي قاضي القضات پکې دحدیثو سبق ورکاوۀ او ان چې دبلخ خاص او عام وګړي اغلباً فقه پوه او دینداره و او عوامو ته به یې په دري ژبه درس وایه چې ګټه ترې واخلي ( فضایل ۴۸ مخ ) پدې ډول که مونږ دبلخ دحدیث ،تفسیر ، فقهي اوتصوف دلویو لیکوالانو نومونه واخلو نو لوی کتاب به ترې جوړشي خو دمثال په ډول ، دکلام ، فلسفې ، ریاضي، تفسیر او تصوف دعلومو لو مړي مؤلفین چې دبلخ و ، یا یې دې مکتب سره اړه درلوده _ دابوزید احمد بن سهیل ( ۲۳۵ - ۳۲۲ لمریز ) چې فیلسوف، سیاست پوه، مؤرخ او جغرافیه پوه و او(۲۵) کتابونه یې په شریعت ، فلسفه ،نجوم ،ریاضي او په قرآني اوکلام په علمونو کې لیکلي، نوم واخلو چې یو کتاب ئې د(مناقب بلخ) په نامه هم درلوده ( فضایل اومعجم الادباء)
دپخوانیو مفسرینو په ډله کې بلخي مقاتل بن سلیمان هم و چې دبلخ په جامع جومات کې ئې دتفسیر کلام او احادیثو ښوونه کوله او امام شافعي دده په اړه ویلي :(( الناس کلهم عیال علی مقاتل فی

التفسیر)) ( فضایل ۱۰۸مخ ) اودده د تفسیر یوه خطي نسخه اوس هم داستانبول په توپ قاپو کتابتون کې شته . کله چې په عربي هیوادونو کې قدرت داموېانو په لاس کې و نو خراسان خلکو د آل نبوت حمایت کاوه .د دویمې هجري پېړۍ په نیماي کې د ابومسلم خراساني دله په همدې فکر منځ ته راغله او دنبوت دکورنۍ څخه یې دامام ابراهیم بن محمد بن علي بن عبدالله بن عباس ملاتړ کاوه او دده پلویانو هم په خراسان کې تګ را تګ کاوه اوتل به یې ویل چې د خراسان څخه به د آل نبوت په پلوي تور بیرغونه اوچتیږي . تر هغې په کوفه کې دابومسلم حفص سلیمان خالد همداني کور دآل محمد دشیعانو پناه ګاه وګرځیده اوابومسلم هم خپل لښکر دخراسان څخه کوفې ته واستاوه اودامام ابراهیم ورور سفاح ئې دکوفې په جامع جومات کې خلیفه وټاکه اوپه ۱۳۲ لمریز کال کې یې د هغه بیعت وکړ ( الفخري ۱۲۸ –زین الخبار ) اوله همدې کبله یې ابو سلمه دآل محمد وزیر او ابو مسلم دآل محمد دامین په نامه یادوه ( زین الاخبار ) که څه هم داموېانو تسلط دخراسانیانو په مرسته چې دآل محمد مینه وال وله منځه لاړ خو آل عباس هم دخپلې کورنۍ دګټو دساتلو په خاطر آل نبوت ته مخه ورنه کړه اوهغوئ ئې خپل رقیبان وګڼل اوله همدې کبله دآل محمد ډیروګړي خراسان ته راغلل تر څو دخراسان دشیعګانو په مرسته دآل عباس له شره خلاص شي .

دعباسیانو په و خت کې دابوحنیفه (رح) مذهب په خراسان اوماورالنهر کې پوره راوج شو او بلخ دحنفي فقهې یو مهم مرکز وګرځیده ، خو لکه څنګه چې پخواني حنفیانو ،حضرت امیر المؤ منین علي (رض) دنبوي برکتونو مبداء او دپوهې مر جع ګڼله اودبلخیانو فقه دهماغې رڼې چینې څخه اوبه اخیستې وې نو له دې کبله ئې دآل محمد اواصحابو سره ځانګړې مینه درلودله .

په دریېمه اوڅلورمه پېړۍ اودهغې څخه مخکې دحنفي مذ هب خراسانیانو فکري وضع دغور وړ ده _ که حنفي فقهې مکتب په کوفه کې د ابوحنیفه (رح) داستاد یعنې حماد بن ابو سلیمان په ( ۱۲۰ لمریز ومړ) څخه ابراهیم نخعي (۱۹۵لمریز ومړ) اوعامر بن شراحیل شعبي ( ۱۴۰ لمریز ومړ ) ته رسیږي او دې دوه استادانو دهغه چا څخه استفاده کړې چې دعلم دمخکښ حضرت امام علي بن ابي طالب رض داصحا بو څخه و لکه شریح کندي (۸۷لمریز ومړ) او علقمه بن قیس نخعي ( ۶۲لمریز ومړ ) اومسروق بن اجدع همداني ( ۶۲ لمریز ومړ اوسود بن یزید نخعي (۹۵ لمریزومړ ) اوبیا همدغه فکري اوفقهي مدرسه دمشهور اصحابي عبدالله ابن مسعود سره اړیکې لري ( صحي الاسلام ۱۸۰\۲ ) چې هغه هم دحضرت علي (رض (دعلم څخه برخمن ګڼل شوی دی _ اوبیا دمشکوۍ شریف دلیکوال په وینا امام ابوحیفه (رح (دامام جعفر صادق څخه دحدیث روایت کړی دی چې پدې ډول دامام صیب دمدرسې دحدیث روایتونه حضرت امام محمد باقر او دهغه اسلافو

ته رسيږي ( مناقب ابو حنيفه دملا علي قاري هروي تاليف ) ۵۴۵مخ) پدې ډول كه مونږ داهل سنت دځلورګونو مذهبونو او ان دتفسير ،عربي اونحوې مبداء ولټو نو بيايې هم ريښه حضرت علي ( رض) ته رسيږي ) فخرالاسلام ( ۲۷۶) اوله همدې كبله ده چې ابو حنيفه (رح) په هغه اختلافونو كې چې دعلويانو اوعباسيانو په منځ كې پيدا شوي و، دآل محمد پلوي و او كله چې ابراهيم دحضرت امام حسن (رح) كړوسى دمنصور عباسي خليفه پر ضد شورش وكړ نو امام صيب دهغه ملګرتيا و كړه . همد رنګه كله چې منصور دوه جعلي ليكونه داعمش او ابو حنيفه په نامه وليكل نو اعمش هغه وشكول اوبيايې پسونو ته واچول خو ابو حنيفه هغه ښكل كړ او ځواب يې وليكه اودامو ضوع لامل شوه چې دابو حنيفه اوعباسي خليفه په منځ كې كينه پيداشي اوله همدې كبله ابو حنيفه ووهل شو زنداني شو اودځينو په قول په زندان كې زهرور كړل شو اومړ شو .

كه څه هم د ابوحنيفه ( رح ) لار په فقه اوحديث كې ا وهغې څخه داحكامو راويستل اوپه راى اوقياس عمل كول هاغسي ندي، لكه څنګه كې جعفري اواثناعشري علماو خپله كړې ده ، خو دحنيفي علماو عقيدت ، په خاص ډول بلخ كې تل دامير المؤمنين علي) رض) او د هغه د اولاد په پلوي و او زيات درناوى يې كيده ،

دابو جعفر محمد هندواني مشهور فقه پوه اوحديثو روايت كونكى چې دكوچني ابو حنيفه لقب يې اخيستى و وايې : (كله چې دعلم په زده كړه شو. لومړى دستر علم دنه درلودلو له كبله ډېر خپه و ، خو كله چې يې يوه شپه امير المومنين علي (رض) په خوب كې وليده نو خپلې دوه ګوتې يې په خوله كې ننه ايستې اوبيايې ده (ابو جعفر ) ته دعا وكړه ، نوكال تير شوى نه و چې دعلم په ګانه ښايسته شو ( فضايل ۳۶۳مخ) ابو اسحاق محمد بن ابراهيم مستملي دبلخ دپخوانيو محدثينو څخه دى چې دصحيح بخاري دخاوند محمد بن اسماعيل ملګرى و او د بلخ دعلمانو (۱۴) معجم الكبير كتابونه يې ليكلي دي (فضايل ۱۸۸مخ) .په خراسان او دهغه په ودانو ښارونو كې حسيني ساداتو اوعلويانو كورنۍ په ډېر قدر اواحترام كې ژوند كاوه اوپه سياست ،قضا، فقه اوداسلامي علومو په خپرولو كې يې لوى لاس درلوده. دمثال په توګه دبلخ د مخورو اومشرانو كورنۍ د ابو عبدالله اعرج چې دحضرت علي (رض) داولادې څخه و چې دناصرالدين ثمرقند په خبره ډيره لويه كورنۍ يې درلوده ، اولوى امام سيدالساداى محمد بن حسين حسيني ضياءالدين صدرالدين الطلبيه ددغې كورنۍ څخه دبلخ رئيس اومشر و (۲۳۷ه ومړ) او دده زوى محمد هم دخراسان درئيس او نقيب النقباء لقب اخيستى و . اودده بل مشر ورو تاج الدين حسن هم دخراسان او دآل رسول مشر و او پخپله لوى امام ددوى پلار زيات احاديث روايت كړي دي ( فضايل بلخ ۴۲۴- ۴۲۵ مخ )

دبلخ د سیدانو څخه د محمد بن حسن نعمت الله نوم اخستی و چې شیخ صدوق ابن بابویه د ۲۸۱ ه څخه مخکې یې هغه په بلخ کې لیدلی و چې دهغه په غوښتنه ئې دشیعه څلورګوني اصول لیکلي و، دبلخ دفقهې او حدیث د مدرسې ترون دآل محمد سره آن دویمې پیړۍ او د ابوحنیفه په ژوند کې هم موجود و په دې معنا چې بلخي مشهور محدث، فقه پوه او مفسر مقاتل بن سلیمان به تل د ابوحنیفه ښیګڼې بیانولي (فضایل ۱۰۶ مخ) په داسې حال کې چې همدا سړی دشیخ طوسي په خبره د امام محمد باقر د ملګرو له ډلې څخه و.

دریمه اسلامي پیړۍ په خراسان کې دتسنن او حنفي مذهب درواجولو او غځیدلو پیړۍ ده ځکه چې ساماني غزنوي اوسلجوقي پاچاهان په دې پیړیو کې دتسنن او حنفي مذهب ډیر زیات لیوال اوپلویان و اوبلخ دحنفي فقهې دفکري فعالیتونو لوی مرکز و، لکه شیخ طوسي چې ۲۳کاله دځوانۍ عمر په خراسان کې و نو دفقهې اوتفکر منشاء یې هم دهمدې ځای څخه وه او حتماً یې په فقه، کلام، او حنفیانو دفقه، کلام او حدیثو نو په کتابونو کې مطالعه درلوده اوهمدا خراساني معلومات یې بیا په بغداد کې دشیخ مفید او سید مرتضیٰ څخه بشپړ کړل اوهم ګورو چې محمد بن عمر بن عبدالعزیز په (۳۴۰ لمریز) او دده استاد محمد بن مسعود په (۳۲۰ لمریز) کې دامامیه دلویو فقهاو او محدیثونو په توګه دبلخ مربوط په یو بل مکتب یعني ثمرقند کې ژوند کاوۀ چې دکشي معرفۍ الاخبار کتاب او دعیاشي دوسوه جلده کتابونه یې دخراسان دپخوانی امامیانو، حدیثو او فقې دمنابعو څخه شمېرل کیږي چې د فقې دتحقیق یو مرکز یې همدا بلخ و .د بلخ فقهي مدرسه چې دابوحنیفه په زده کړو ښاده وه، دعلم دمقتدا امیرالمؤمنین علي (رض) او د آل محمد د امامانو سره ترون لري.

نوله دې کبله دآل محمد سړي او کورنۍ په ټو ل خراسان کې تل په عزت او درناوۍ ژوند کړی او زیارتونه یې په بلخ، هرات اونورو ځایونو کې تر اوسه دخلکو داحترام او تګ راتګ مرجع ده او آن چې دیحیٰ بن یزید بن علي بن امام حسین زیارت وداني چې ۱۲۵لمریز کې دبلخ په جوز جان کې دسلم بن اخوز په لاس ووژل شو دغزنویانو دپیر کتابونو او لیکنو ته ورته ده.

چې هغې باندې داهل بیت دپلویانو نو مونه کښل شوي دي او دا زیارت تر اوسه دآل محمد ددغه مظلوم شخصیت په خاطر لکه پخوا په احترام اودرناوی پاتې شوی دی اوهمدغسې دعبد الرحمٰن بن معاویه بن عبدالله بن جعفر طیار بن ابو طالب (مقتو ل۱۲۹لمریز) قبر هم تر اوسه په هرات کې دخلکو د زیارت اودرناوی مرجع ده چې په (۷۰۶لمریز) کې ملک غیاث الدین محمد کرت دهرات پاچا یې په مزارباندې ګنبزه جوړه کړې ده، دحنفي فقهې د دورو دتقسیم په اړه باید ووایو چې دبلخ

او حنفيه فقهي مدرسه دپنځمې پيړۍ په لومړنۍ نيمايي کې دمسايلو داجتها د په درېيم پوړ پورې اړه لري او داجتهاد دوره يې تيره کړې وه او د اهل سنت د پخوانيو علماو له خوا په لمړۍ او دويمه دوره کې دفقې کتابونه ليکل شوي دي.

لکه دامام ابوحنيفه داصحابو او ابي حنيفه او ابن ابي ليلیٰ قاضي ابو يوسف کتاب او ( اختلاف الفقها عامه) داحمد بن محمد کتاب ،او همدغسې داحمد بن غزنوي کتابونه( الرضةفي اختلاف العلما) کتاب او دعمر بن اسحاق غزنوي تاليف( زبدة الاحکام في اختلاف الائمه ) کتاب او همد غسې نومورې يو بل کتاب د(العزة المنيفة في ترجيح مذهب ابي حنيفه )په نامه هم لري .

چې ددې کتابو نو څخه دفقهې دترويج او ترتيب په برخه کې د غزني دعلمانو هڅې پوره څرگندېږي

## دبلخ په مدرسه کي تصوف:

په خراسان کې دبلخ دفقهې مدرسې اوهغې پورې اړوندو کسانو يوه ځانگړتيا داده چې دهماغه دويمې پيړۍ دپيل څخه دبلخ زياتره مفسرين ، محديثين او فقها داسلامي زاهدانو د ډلې څخه و چې له همدې سببه يې په بغداد او خراسان کې دتصوف مکتبونو سر اړيکې درلودې . دهغه ۷۰ کسانو بلخي مشايخو څخه چې صفي الدين واعظي بلخي يې په ۶۱۰ لمريز دفضايل په کتاب کې يادونه کړې ده اکثره يې فقه پوهان او زاهدان دي چې پخپله زمانه کې دزاهد اوتقویٰ دمروجه مکتبونو سره يې اړيکې درلودلې اوحتی ددې طايفې لومړني کسان لکه ابراهيم بن ادهم بلخي ،شقيق بن ابراهيم بلخي حاتم بن اصم بلخي ،احمد خضرويه بلخي او محمد وراق ترمذي په هغه وخت کې چې لا تصوفي مکتبونه دخپل وروستي مفهوم په توگه نه و پيداشوي . دپخوانيو صوفيانو د ډلې څخه پېژندل کيدل د اوليا په تذکر و لکه( طبقات الصوفيه سملي وانصاري هروي) او( حليی الاولياء اصفهاني (کې ځای لري.

دتصوف په ټولو طريقتونو کې دپخوا زمانې څخه تر اوسه دملامتيه او اهل فتوت په شمول د پندار ،لباس ، خرقې ، مقامات او احوال په برخه کې ځان دآل محمد امامانواو امير المومنين علي (رض ) ته رسوي نو پدې لحاظ دروحي ،باطني او اشرافي بکتونو له نظره دتصوف په واسطه دنبوت دکورنۍ امامانوسره پوره پيوستون لري. اوکلابادي د صوفي مرلفانو ،امام زين العابدين علي بن حسين (۹۴لمريزومړ) دصوفيه لوي بنسټ ايښودونکو څخه بولي اوهمدغه کلا بادي اونور عالمان

لکه ابونعیم اصفهاني) حلیه۳\۸۱ ) عطار(تذکره۲\۲۶۶) ابن حجر (صوایق محرقه ۱۹۹) کې دلمړني صوفیانو په روایت امام محمد باقر دتصوف بنسټ اېښودونکی بولي.

او ابن بابویه شیخ صدوق قمي) ۳۸۰ه ومړ) کله چې طریقه ،سخا ، لباس اومناسک تشریح کوي نو ددغه ډول ځوانمرده صوفیانو طریقه (لافتی الاعلي ) ته رسوي (معاني الاخبار ۳۹)دبلخ پخوانی اولمړنی شیخان دآل نبوت دعلم څخه رڼاخیستې لکه شفیق بلخي دامام کاظم څخه طریقت اخیستی(طریق الحقایق ۲\۱۹۳) ابراهیم ادهم بلخي دویس قرني په واسطه دعلم پیشوا علي (رض) ته رسیږي) طبقات سلمي ۴۴۲) او احمد خضروپه خراسان دځوانمردانو څخه وچې (لافتی الاعلي ) نې شعارو ، اوهم دبلخ دټولونه پخوانی مفسر عالم اومحدث او زاهد ضحاک بن مزاحم (۱۰۵ه بلخ کې ومړ) د ماسینیون په وینا د تفسیر د مخکښانو څخه دی چې د عراق اوکوفې دآئمه وڅخه متاثرو.

د بلخ دتصوف فکري مدرسه د هر راز مذهبي تعصبونو څخه پاکه وه او په همدې بناو چې سپېڅلی ضمیره او زړور انسان مولانا جلال الدین محمد بلخي دبلخ څخه ظهور وکړ.

دریيم څپرکی

# دخراسان (اوسني افغانستان) پېښې داسلام په تاریخ کې

## (۱۰۶ هـ ق)

### (یوځغلنده نظر)

دپورتني لند مطلب څخه وروسته دافغانستان او پښتنو په اړه یو بل مطلب هم خورا دپام وړدي په چې دتاریخ مهم رکن بلل کیږي ، په پورتني مطلب کې موصرف داجوت، کړه چې پښتنو داسلام او اسلامي علوموڅومره نړیوال حیثیت اومقام ګټلي ،خودلته راځوچې په دې اړه داسلام تاریخ کوم یادونه اوڅرګندونه کړي ده .

هغه لېکي چې په ۱۰۶هـ ق کال مسلم بن سعید د جهاد په اراده یو ډېر ستر لښکر برابر کړ او د بخارا او فرغانې په لوري ولاړ، باغیانو ته یې سزاګاني ورکړې، د چین خاقان د فرغانې له خلکو سره مرسته وکړه، او له خاقان سره د مسلم څو کرتي خونړۍ جګړې پېښي سوې، په پای کې خاقان ماتې وخوړه او د ترکانو ډېر لوی، لوی سرداران مسلمانانو ونیول، په همدې کال هشام بن عبدالملک د کوفې والي خالد بن عبدالله ته خط ولیکه، چې مسلم بن سعید د خاسان له ولایت څخه عزل کړه او د هغه پر ځای خپل ورور اسد بن عبدالله قسري د خراسان د والي په توګه ولېږه، په دې ډول خالد خپل ورور اسد ته د خراسان د ولایت مکتوب ورکړ او ویې لېږه او مسلم بن سعید ورته په ډېره خوبنۍ د خراسان حکومت وسپاره، خالد بن عبدالله چې کله خپل ورور اسد بن عبدالله د خراسان د والي په توګه واستاوه، له هغه سره یې عبدالرحمن بن نعیم د خپل ورور د مرستیال په توګه لېږلی ؤ.

اسد بن عبدالله د خراسان حکومت د ترلاسه کولو سره د هرات د غرونو یعني غور پر سیمو حمله وکړه، په دغه ځای کې مسلمانانو ته زیات غنیمتونه په لاس ورغلل، په دغو جنګونو کې نصربن سیار او مسلم بن احور زیات شهرت وګاټه، اسد بن عبدالله څو ورځي وروسته د داسې اخلاقو څرګندونه وکړه، چې خلک څین خفه او په وېره کې سول، نصر بن سیار یې سل دُرې و واهه، د عبدالرحیم بن نعیم سر یې وخرایه، او دغه کسان یې خپل ورور خالد بن عبدالله ته ور ولېږل چې دوی ما د وژني توطئه کې ګډون درلود ، همدا رنګه یې د خراسان خلکو ته بد رد ویل او ډېره بده رویه یې ورسره کوله، له دغو خبرو څخه هشام بن عبدالملک خبر سو ، نو هغه له دمشق څخه خالد بن عبدالله ته ولیکل چې اسد بن عبدالله د خراسان له امارت څخه لیري کړه، بیا یې پخپله په مستقیم ډول اشرس

بن عبدالله مسلمي د خراسان والي وټاکه او خالد يې ځيني خبر کړ، اشرس چې خراسان ته ورسېدی دخپلې ښېګې روېې او ښو اخلاقو له امله يې د خراسان خلک خوشحاله کړل، اشرس په ۱۱۰هـ ق کال کې ابوالصيداء، صالح بن ظریف او ربيع بن عمران تيمي د سمرقند او ماوراء النهر په لور د دې لپاره ولېږل، چې هلته ولاړ سي، خلکو ته د اسلام ښېګړي ور وښيي او د شرک له بديو څخه يې خبر کړي، سمي لاري ته يې را وبولي، په دغه سيمه کې به هره ورځ بغاوتونه کېدل او اسلامي حکومت په کې د توري په زور قايم ؤ، اشرس د دغه کار غوره علاج دا وګاڼه چې بايد دغه وګړي د اسلام سپېڅلي دين څخه خبر او مسلمانان کړای سي، نو په هغوی کې چې څومره عيبونه دي هغه به پخپله له منځه ولاړ سي، او د اسلامي حکومت لپاره به کومه خطره نه پاتې کېږي، په دې ډول د دغه اسلامي بلني نتيجه دا سوه چې خلک په اسلام کې ډلې، ډلې داخل سول، د سرقند په سيمه کې حسن بن عمرطه د ماليې مسئوول په توګه مقرر وو.

کله چې خلک په اسلام کې داخل سول، نو د جزيې په پيسو کي چې له ذميانو څخه اخيستل کېدلې کمبود واقع سو، حسن بن عمرطه يې شکايت د خراسان والي اشرس بن عبدالله اسلمي ته وکړ، اشرس بن عبدالله ورته په ځواب کې وليکل چې: ښايي زياترهر خلک د جزيې د نه ورکولو له امله مسلمانان سوي وي او له زړه څخه يې اسلام منلی نه وي، په دې خاطر ته يې وګوره چې چا ځان سنت کړی وي او لمونځونه ادا کوي، نو هغه ته جزيه وبخښه او که نه نو که څه، هم هغوی ځانونو ته مسلمانان وايي؛ له هغوی څخه جزيه واخله، که څه هم اشرس غه کار نه خوښاوه، خو د خالد او هشام همدا خوښه وه، چې له نويو مسلمانانو سره دې سخته رويه وکړای سي، د اشرس له خوا څخه د دغه ځواب په را رسېدو حسن بن عمرطه پر دغه امر عمل کول ځکه وځنډول، چې دغه کار دا اسلامي شريعت سره برابر نه ؤ، اشرس بن عبدالله حسن بن عمرطه د ماليې له چارو څخه ليري کړ.

هاني ابن هاني يې مؤظف کړ او د سمرقند حکومت او د لښکرو قوماندانې يې ورته وسپارله، هاني ابن هاني چې سمرقند ته ورسېدی له نوي مسلمانو سوو خلکو څخه يې جزيه اخيستل پيل کړل، دغه نوي مسلمانانو له جزيې ورکولو او هاني يې له جزيې اخيستلو څخه منع کړ، هاني اشرس ته ليک واستاوه چې دغه وګړي مسلمانان سوي دي، جوماتونه يې هم ودان کړي دي، له دوی څخه جزيه څنګه اخيستل کېدای سي، د دې په ځواب کې هاني ته امر وسو، چې ته له هغو خلکو څخه چې جزيه يې ورکوله جزيه واخله، که څه هم هغوی مسلمانان سوي وي.

د دغه حالت په ليدلو ابوالصيداء د نويو مسلمانو سوو خلکو يوه اوه زره کسيزه ډله له ځان سره کړه او له سمرقند څخه يو څه واټن دباندي ديره سو، او ځان يې د مقابلې لپاره تيار کړ، څرنګه چې له ابوالصيداء سره د مخالفت لپاره معقول لامل موجود و، په همدې خاطر زيات شمېر مسلمان

قوماندانان د سمرقند د حاکم پوغ څخه له ابو الصيداء سره د نوي مسلمانانو د ملاتړ لپاره ولاړې، اشرس چي دغه حالت وليدی حسن بن عمرطه يې د سمرقند له حکومت څخه عزل کړ او محشر بن مزاحم سلمي يې مؤظف کړ، محشر بن مزاحم چي سمرقند ته ورسېدی، ابو الصيداء او د هغه ملگري قوماندانان يې د سولي په بهانه را وغوښتل او بنديان يې کړل، او اشرس ته يې ور ولېږل، دغو مسلمانانو له ابو الصيداء وروسته ابو فاطمه خپل مشر وټاکه، بالاخره محشر بن مزاحم مجبور سو او له يويو مسلمانو سوو خلکو سره يې د جزيې بخښلو وعده وکړه، او کهل چي د هغوی ډله خپره سوه او اتفاق يې له منځه ولاړ، نو په تدريج سره يې پر هغوی مشکلات راوستل پيل کړل، او له ډول ډول ذلت او رسوايي سره يې مخامخ کړل، چي په نتيجه کي يې دغه نوي مسلمان سوي وگړي بيا مرتد او باغيان سول، له سره بيا مقابلې ته تيار سول، له خاقان څخه يې مرسته وغوښته، خاقان د خپل يوه ځواکمن پوغ سره راغی او له مسلمانانو سره د جنگونو يوه نوي لړۍ پيل سوه، اشرس پخپله د مقابلې لپاره راغی، له دواړو لورو څخه ښه زړور توبونه ښکاره سول، زيات شمېر مسلمانانو او ترکان د تورو خوارک سول، په پای کي د دغه خونړۍ جنگ فيصله په سوله وسوه.

دلته بايد هغه کسان چي وايي اسلام د توري په زور خپور سوی، يو څه غور او فکر وکړئ چي مسلمانانو د توري په زور اسلام خپور کړ او که د هغوی ځيني ناپوهو حاکمانو د توري په زور اسلام د خپراوي مخنيوی وکړ.

په ۱۱۱هـ ق کال هشام بن عبدالملک اشرس بن عبدالله په داسي حال کي د خراسان له ولايت څخه ليري کړ، چي ترکان او سمرقنديانو سره په جگړه بوخت ؤ، او د هغه پر ځای يې جنيد بن عبدالرحمن بن عمر بن حرث بن خارجه بن سنان بن ابي حارثه مريی وټاکه، جنيد چي کله د خراسان مرکزي ښار مروې ته ورسېدی، نو هلته يې د اشرس پر ځای د هغه مرستيال خطاب بن محرز سلمي وليدی، په مروه کي يې يوه ورځ تېره کړه د ماوراء النهر په لور روان سو، اخطب يې له ځان سره واخيست او محشر بن مزاحم سلمي يې په مرو کي خپل مرستيال پرېښود، له اشرس سره يو ځای يې پر خاقان د بخارا پر خلکو بری ترلاسه کړ، د ۱۱۱هـ ق کال په وروستيو ورځو کي مروې ته راستون سو، مروې ته چي راغی قطن بن قتيبه بن مسلم يې د بخارا، وليد بن قيعقاع عبسي يې د هرات او مسلم بن عبدالرحمن يې د بلخ د ولايتونو حاکمان وټاکل، خو څو ورځي وروسته يې مسلم بن عبدالرحمن عزل کړ، يحيٰی بن صبيعه يې د بلخ حاکم وټاکه.

جنيد په ۱۱۲هـ ق کال د تخارستان د باغيانو د ټکولو او سزا ورکلو لپاره عماره بن حريم له اتلس زره لښکر سره له يوې خوا څخه او ابراهيم بن بشام يې د لس زره لښکر سره د بلي خوا څخه ولېږل او پخپله يې هم د تخار په لور د تللو عزم وکړ، ترکان چي کله له دغه حالت څخه خبر سول، نو هغوی

خاقان خپل سر لښکر وټاکه او له یوه ستر لښکر سره یې پر سمرقند حمله وکړه هغه مهال د سمرقند والي سوره بن الجبرو و هغه جنید د ته خبر واستاوه چې خاقان له یوه ځواکمن لښکر سره د سمرقند په لور حرکت راکړی دی، زما د مرستي لپاره ډېر ژر پوځ را ولېږئ، محشر بن مزاحم او نورو جنید ته مشوره ورکړه چې تاسي باید د ثمرقند په لور لږ تر لږه له پنځوس زره لښکر سره ولاړ سئ، ځکه چې له ترکانو سره مقابله اسانه نه ده، دا مهال ټول پوځ خور وور سوی دی، له تاسي سره ډېر لږ کسان پاتې دي، دغسي حالاتو کي تاسي د ثمرقند اراده ونه کړئ، جنید یو سوړ اسویلی وکړ وې ویل دا څنګه کېدای سي، چې زما ورور سوره بن الجبرو دې هلته له مشکلاتو سره مخامخ وي او زه دې دلته د پنځوس زره لښکر راټولېدلو په هیله ناست یم، دا یې و ویل او د ثمرقند په لور روان سو، خاقان او ترکان چې کله خبر سول، چې جنید پخپله دد ثمرقند په لور روان دی، نو هغوی لږ شمېر کسان د ثمرقند کلابندی ته پرېښودل او پخپله یې د جنید مخه ونیوله، په لاره کي جګړه ونښته، جنید او د هغه لږ شمېر ملګرو داسي مړانه وښوده، چې ترکان یې هک حیران او وارخطا کړل، له مسلمانانو څخه هم ډېر نومیالي قوماندانان شهیدان سول، خو د ترکانو له سرو څخه خو انبارونه جوړ سول، د ترکانو د پوځ شمېر ډېر زیات ؤ، جنید د یوه غره په لمن کي سنګرونه ونیول او خاقان د هغه لښکر یې څو کرتي پرشا وتنباوه، او تېښتي ته یې اړ کړل، بالاخره د جنید د لښکر قوماندانانو هغه ته مشوره ورکړه، چې سورت بن الجبرو ته دې پیغام ولېږل سي، چې موږ له تاسي څخه یوازي د دوه پړاوو پر فاصله په جګړه کي اخته یو، ته همت وکړه، له ثمرقند څخه رابهر سه او د نېر پر غارو غارو سفر وکړه او ځان تر موږ را ورسوه، او د بل لوري څخه پر ترکانو حلمه وکړه، سورت بن الجبرو له ثمرقند څخه رابهر سو، خو د کومي لاري په باب چې ورته لار ښودنه سوې وه، پر هغه لاره رانغی، پر بله لاره راغی، کله چې ترکانو ته نږدې را ورسېدی، د ترکانو په لښکرو کي راګیر سو، او په جګړه کي یې یات شمېر ترکان په ډېره مېړانه و وژل او په دې ډول جنید ته کومه مرسته راونه رسېده، بالاخره مسلمانانو داسي مېړنۍ حملې وکړې چې خاقان او ترکان یې تېښتتي ته اړ کړل او سمرقند ته ننوتل.

له دې ځایه یې یوه چټک قاصد ته مفصل حالات لیکلي ورکړل، او د هشام بن عبد الملک په لور یې واستاوه، هشام بن عبد الملک له دمشق څخه د کوفې او بصرې حاکمانو ته امر وکړ چې لس، لس زره پوځ ددې له دواړو ځایونو څخه د جنید د مرستي لپاره ولاړ سي او جنید ته یې امر وکړ، چې ته په جهاد کي مشغول اوسه، ه شل زره پوځ، دېرش زره نېزې او دېرش زره تتوري ستاسي د مرستي لپاره دکوفې او بصرې څخه درلېږم، د خلیفه هشام دغه پیغام په ثمرقند کي جنید ته ورسېدی، جنید په ثمرقند کي هستوګن ؤ، چې څو ورځي وروسته ورته خبر راغی، خاقان چې د مسلمانانو له مقابلې څخه یې تېښته کړې وه، بیا یې پوځونه راټول کړل او پر بخارا یې د حملې اراده کړې ده، د بخارا

حکومت قطن بن قتیبه ته سپارل سوی ؤ، له جنید سره اندېښنه پیدا سوه چې هسې نه چې قطن په بخارا کې له هغه حالت سره مخامخ سي لکه "سوره" چې په ثمرقند کې ورسره مخامخ سوی ؤ، عثمان بن عبدالله یې له څلور سوه سپرو سره په ثمرقند کې پرېښود، او د هغه لپاره یې د خوراک څښاک او جنګ جګړې مکمل سامان پرېښود او پخپله یې ښځې، ماشومان او ضروري وسایل له ځان سره واخیستل او د ثمرقند څخه د بخارا په لور زوان سو، طو اویس نومي ځای ته نږدې په "مینیه" نومي ځای کې د روژې په لومړی ورځ ۱۱۲هـ ق کال د خاقان له لښکرو سره مخامخ سو، د خاقان لښکرو ماتي وخوړه او جنید چې په خپل مخ کې لاره یې خطره ولیدله، د بخارا په لور یې خپل سفر پیل کړ.

په لاره کې یې یو ځل بیا له ترکانو سره جګړه پېښه سوه په دې جګړه کې هم مسلمانانو برې وموندی، تردې وروسته جنید بخارا ته ننووت او په همدې ځای کې د کوفې او بصرې پوځونه هم ورته را ورسېدل.

جنید ترکانو ته پرله پسې ماتي ورکړې، او په خراسان کې یې هري څواته امن و امان قایم کړ، جنید چې کله د خراسان له لوري داده سو، نو هغه په ۱۱۶هـ ق کال کې له فاضله بنت یزید بن مهلب سره نکاح وکړه، د هشام بن عبدالملک د مهلب له کورنۍ سره سخته دښمني وه، د دغه خبر له اورېدو سره هغه ډېر په غوسه سو، او جنید یې د خراسان له ولایت څخه لیري کړ او د هغه پر ځای یې عاصم بن عبدالله بن یزید هلالي د خراسان د والي په توګه ولېږی، له دمشق څخه عاصم د خراسان په لور روان سو او هلته په خراسان کې د جنید د استسقا نارغي سخته سوه، په کومه ورځ چې عاصم مروې ته ورسېدی، په همدې ورځ د هغه تر را رسېدو دمخه جنید وفات سوی ؤ، عاصم چې خراسان ته ورسېدی، د جنید عاملین یې لري کړل او خپل یې وټاکل.

## حضرت بن شریح

په ۱۰۰هـ ق کال کې چې حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله د خلافت زمانه وه، عباسیانو د خپل خلافت لپاره د امویانو پر خلاف د پټو کوښښونو او سازشونو لړۍ پیل کړې وه، دغه هڅې په ډېر احتیاط او پوهه پرمخ رواني وې، د آنحضرت ﷺ ځیني احادیث به په ځانګړې توګه خپرول کېدل، ځیني روایتونه د مصلحت په خاطر هم وضع کړای سوي وو، په ځینو روایاتو کې ځیني جملې هم ور زیاتي سوي وې، چې هدف یې ځیني دا و چې اسلامي خلافت به خامخا د عباسیانو لاس ته ورځي، او ډېر ژر به دغه کار کېږي، سربېره پردې د بني هاشمو د خلافت حقدار ګڼل او د امویانو پر خلافت په زوره او ناروا قبضه کول، چې څرنګه دمخه د نورو انقلابي ډلو لپاره د یوې څواکمني وسلې په توګه استعمالیدل، په همدې خاطر له دغو خبرو څخه ښه ګټه واخیستل سوه، د دغه کار لپاره خاص، خاص

کسان تاکل سوي وو، امویانو د خپل حکومت او واکوالی په گومان دغو خبرو ته څه پاملرنه نه کوله، او نه یې د مخنیوي لپاره کومه لاره چاره خوښول ضروري گڼل، او نه یې د دغه ډول توطئو لټول خوښول.

فاطمیانو او علویانو هم له عباسیانو سره سم د دغه ډول هڅو او کوښښونو لړۍ دمخه پیل کړې وه، او دغه ټولې چارې په عمومي ډول په خراسان کې ترسره کېدلې، ځکه چې د همدې خراسان اوبه او هوا د دغه ډول توطئو د پرمختګ لپاره موزونه وه، په خراسان کې د ازد د ټومیالی قبیلې سردار حرث بن شرح په ځانگړې توگه پر علویانو او فاطمیانو عاشق ؤ، له دې امله هغه په ۱۱۶هـ ق کال کې توري جامې واغوستې او خلکو ته یې د کتاب او سنت او د "امام رضا" د بیعت بلنه ورکړه، ځان یې فاریاب ته ورساوه او دغه کار یې پیل کړ، څلور زره جنگیالي ځیني راټول سول، د دغه لښکر سره یې د بلخ په لور حرکت وکړ، هغه مهال په بلخ کې نصربن سیار حاکم ؤ، هغه یې له لس زره پوځ سره مقابله وکړه، خو ماته یې وخوړه، حرث بن شریح چې بلخ ونیوی، سلیمان بن عبدالله یې په بلخ کې خپل نماینده پرېښود د جوزجان "جورجان" په لوري روان سو، په ډېره آسانۍ سره یې جوزجان هم ونیوی او بیا یې د مروې په لور مخه وکړه، په مروه کې عاصم بن عبدالله خلک راټول کړل او د حرث له لښکرو سره یې مقابله کول غوښتل، خو دلته هم لا دمخه له خلکو سره د لیک رالیک لړۍ روانه وه.

د حرث بن شریح ډله شپېته زرو ته رسېدلې وه، چې په کې د "ازد" او تمیم نومیالي مشران او د فاریاب او تالقان ټول شتمن شامل وو، له دې خوا څخه عاصم بن عبدالله هم د مقابلې لپاره خپل ټول کوښښونه په کار واچول، حرث بن شریح له خورا زړور توب سره پر مروه حمله وکړه، خو په داسي حال کې چې جگړه روانه وه، د ازد او تمیم څلور زره کسان ځیني جدا سول او له عاصم بن عبدالله سره یو ځای سول، چې په نتیجه کې یې د حرث بن شریح د ملگرو د جرئت او زړورتوب جذبه یو څه راکمه کړه، خو ډېره زوروره جگړه وسوه، په نتیجه کې یې حرث بن شریح په شا تللو ته اړ سو، او عاصم بن عبدالله بن حازم هغه تعقیب نه کړ، عاصم چې د رهبان نومي کلي ته ورسېدل خپله خیمه یې ودروله او ټول تال درې زره سپاره ځیني راټول سول، حرث بن شریح ځیني وروسته بیا خپل ځان او لښکر منظم کړ او په خراسان کې یې د نورو سیمو نیولو ته په چټکتیا سره دوام ورکړ.

هشام بن عبدالملک چې له دغو حالاتو څخه خبر سو، له عاصم څخه یې ځواب وغوښته، عاصم ورته ولیکل، څرنگه چې خراسان مستقیماً په دمشق یعني د خلافت له مرکز سره تړلی دی، له دې امله د خبرونو په رسولو او د اړتیا پر وخت د رستې په را رسېدلو کې له ځنډ څخه کار اخیستل کېږي، غوره دا ده لکه څنگه چې پخوا د خراسان ایالت د عراق ترلاس لاندي ؤ، هماغسي دي اوس هم د عراق پوري وتړل سي، ترڅو له کوفې او بصرې څخه ژر مرسته را ورېږي، هشام بن عبدالملک خو

دغه نظر خوښ کړ، مګر عاصم بن عبدالله یې د خراسان له ولایت څخه لیري کړ، او د عراق والي خالد بن عبدالله قسري ته یې ولیکل چي ته خپل ورور اسد بن عبدالله بیا د خراسان د والي په توګه ولېږه.

عاصم بن عبدالله چي کله د خپلو عزل کېدو څخه خبر سو، نو له حرث بن شریح سره یې سوله وکړه او ورته وې ویل چي راسه چي زه او ته دواړه، هشام بن عبدالملک ته یو تبیېغي لیک ولیکو، او پر کتاب او سنت د عمل کولو بلنه ورکړو، که هغه انکار وکړي نو دواړه په ګډه او په یو اتفاق د هغه پر خلاف حملې وکړو خو دغه سوله تر زیاتي مودې پر خپل حال پاتې نه سسوه او څه نتیجه یې ورنه کړه د دواړو ترمنځ پر څه خبره اختلاف پیدا سو او جګړې ته ورسېدی.

په دغه جګړه کي حرث ماتي وخوړه او د هغه زیاتره ملګري عاصم ونیول او وې وژل او دغه سوبه یې د هشام د خوشی وسیله جوړول غوښتل، خو اسد بن عبدالله د ولایت له مکتوب سره نږدې را رسېدلی ؤ، هغه له راتګ سره غاصم ونیوی، دا د ۱۷۷هـ ق کال پېښه وه، اسد بن عبدالله د خراسان د ایالت د چارو له سمبالولو سره سم له حرث بن شریح څخه د خراسان د ښارونو په نیولو پیل وکړ، بلخ یې ځیني ونیوی او د ترمذ عزم یې وکړ، لنډه دا چي اسد بن عبدالله پرله پسې دوه کاله د حرث بن شریح او ترکانو سره په جګړه کي اخته ؤ، د حرث بن شریح حالت ډېر کمزوری سوی ؤ، او هغه په د خپلو ملګرو سره یو ځای بل ځای پناه اخیستله، په ۱۱۹هـ ق کال کي خاقان او بدر تورخان د اسلامي لښکرو سره په مقابله کي و وژل سول، او د اسد بن عبدالله د سوبو لړۍ له خراسان څخه تر لوېدیځ چینه پوري ورسېده.

په ۱۱۲هـ ق کال د ربیع الاول په میاشت کي اسد بن عبدالله قسري په بلخ کي وفات سو، د مړیني پر وخت یې جعفر بن حنظله نهروانیي پر خپل ځای وټاکه چي څلور میاشتي یې د امارت چاري سرته ورسولې او له هغه وروسه د رجب په میاشت کي نصر بن سیار د خراسان والي وټاکل سو، په همدې کال یعني ۱۲۰هـ ق کي د عراق د والي خالد بن عبدالله له لاسه د هغه مخالفینو هشام بن عبدالملک ته شکایت وکړ، هشان بن عبدالملک د عراق له ولایت څخه خالد بن عبدالله لیري کړ او د هغه پر ځای یې یوسف بن عمر ثقفي ته د عراق د ولایت مکتوب ورکړ، یوسف بن عمر ثقفي یوې خواته عابد او زاهد ؤ، خو بلي خواته وژونکي او احمق هم ؤ.

نصر بن سیار چي د خراسان حکومت په خپل لاس کي واخیست تر ټولو لومړنی یې د دې خبري هڅه وکړه، وچي له نوو مسلمانانو څخه د جزیې اخیستلو ناروا دود له منځه یوسي، په دې ډول هغه د خپل حکومت په دوران کي له نویو مسلمانو سوو خلکو څخه جزیه اخیستل بند کړل، چي اغېز یې په سملاسي ډول پیل سو او په ترکانو کي اسلام منل ډېر په چټکتیا سره پیل سول.

**د حضر او آرمینیا ښارونه**

هشام بن عبدالملک له خوا جراح بن عبدالله حکمي د آرمینیا والي ټاکل سوی ؤ، په ۱۱۱هـ ق کال جراح حکمي د تفلیس له لاري د جهاد په حالت کي د ترکستان هیواد ته ورننه و وت او د هغه ځای مشهور ښار بیضا یې فتحه کړ او بریالی او فاتح راستون سو، په ۱۱۲هـ ق کال کي ترکانو خپل پوځونه منظم کړل او په یو اتفاق سره یې د مسلمانانو پر ښارونو یرغل ور ووړ، جراح بن عبدالله حکمي یې د مقابلې لپاره ور و وت، په "مدح ارد بیل" نومي ځای کي دواړه لښکري سره مخامخ سوې د مسلمانانو شمېر ډېر لږ ؤ، جراح حکمي د جګړې په ډګر کي په شهادت ورسېدی، د جراح بن عبدالله حکمي د شهادت له امله د ترکاو حوصلې ډېري لوړي سوې او د خپل بریالیتوب په خوښه او جذبه کي تر موصل پوري نږدې راو رسېدل.

دغه خبر د خلافت مرکز دمشق ته ورسېدی، هشام بن عبدالملک سعید حریشي را وغوښت او ورته وې ویل چي: وګوره جراح د ترکاو په مقابل کي ماتي وخوړه وتښتېدی، سعید و ویل چي: جراح په زړه کي د خدای وېره د ماتي خوړلو او تېښتي څخه زیاته ده، هغه د ترکانو په مقبل کي د تېښتي ملامتیا منلای نه سي، سعید حریشي و ویل چي: تاس ما یوازي له څلوېښت کسانو سره هغه لوري ته ولېږي او هره ورځ څلوېښت کسان راپسې را استوي، همدا رنګه یو عمومي امر د هغه لوري حاکمان او والیانو ته ولېږی، چي هغوی د اړتیا پر وخت زما سره مرسته وکړي.

هشام دغه وړاندیز ومانه او عید له څلوېښتو کسانو سره روان سو، په لاره کي ورته د جراح حکمي ملګري په مخه راغلل چي په ډېر خراب حالت کي را روان وو، هغوی هم د سید حریي له ځان سره ستانه کړل، او په لاره کي چي ورته ځای پر ځای د مسلمانانو کلي په مخه ورتلل د جهاد ترغیب به یې ورکاوه، په دې ډول په هر ځای کي له هغه سره وګړي ملګري سول، سعید چي "خلاط" نومي ځای ته ورسېدیو له ترکانو سره یې جګړه پېښه سوه، تر سختي خونړۍ جګړې وروسته ترکانو ماتي وخوړه، مسلمانانو ته زیات د غنیمت مالونه په لاس ورغلل تردې سوبې وروسته سعید په "برزعه" نومي ځای کي پړاو وکړ، ترکانو د "ورثان" په نامه ځای کلابند کړی ؤ، ترکانو ته یې پیغام واستاوه چي د ورثان کلابندي پای ته ورسوئ او که نه نو موږ د حملې په حال کي یو.

ترکانو له ویري محاصره پرېښوده او ولاړل، سعید ورثان ته ننه و وت، تردې وروسته تر "ارد بیل" پوري مخکي ولاړ، سعید چي په اردبیل کي دېره سو، نو خبر سو، چي له دغه ځایه د څلور کوسه پر واټن د ترکانو لس زره لښکر دېره دي، او له هغوی سره پنځه زره بندیان دي، سعید پرې د شپې له خوا حمله وکړه، ترکان یې و وژل او هغه پنځه زره بندیان یې آزاد کړل، په سبا ورځ د "باجروان" په لوري وخوځېدی، یو تن جاسوس خبر را ووړ چي د ترکانو یو بل لښکر په نږدې سیمه کي دېره دی، سعید

په هماغه شپه پر هغوی هم حمله وکړه، ټول ترکان یې و وژل او بندیان یې آزاد کړل، په دغو بندیانو کي د جراح زامن او د کورنۍ زنانه او ماشومان هم وو، تردې وروسته ترکان بیا راټول سول او یو ستر لښکر یې راټول کړ، په زرند نومي ځای کي دواړه لښکري سره مخامخ سوې، ډېره خونړۍ جګړه وسوه، و په دې جګړه کي هم ترکانو ماتي وخوړه وتښتېدل، د دغه ماتي د تلافۍ لپاره بیا ترکانو ځانونه تیار کړل، او د بدلې اخیستلو لپاره زیات شمېر ترکانو تیاري وښوده او د "بقان" د رود پر غاړو راټول سول، سعید حریشي ځان ور ورساوه او جګړه یې پیل کړه، په دغه خونړۍ جګړه کي زیات شمېر ترکان و وژل سول، څوک چي ځیني ژوندی پاتي سول هغه د تېښتي په حالت کي په نېر کي ډوب سول، تردې جګړې وروسته سعید حریشي باجروان نومي ځای ته پیرته راستون سو، او هشام بن عبدالملک ته یې د سوبې او پرې پیغام واستاوه.

او د غنیمت د مالونو خمس یې هم د خلافت دربار ته واستاوه، تردې وروسته هشام بن عبدالملک سعید حریشي دمشق ته را وغوښت او د هغه پر ځای یې خپل ورور مسلمه بن عبدالملک ته د آرمینیا او اذربایجان د ولایت مکتوب ورکړ او هغې لوري ته یې واستاوه.

د سعید حیرشي د بیرته تللو سره ترکانو یو ځل بیا ستر لښکر راټول او د جنګ جګړې لپاره یې تیاري پیل کړ، مسلمه بن عبدالملک یو ازمویل سوی سر لښکر او زړور سړی ؤ، هغه د خپل بې زړه توب له امله نه پلکې د اسلامي پوځ د شمېر د کموالي او د دښمن د قوت او ځواک له صحیح اټکل وروسته هغه خطرناکي سیمي پرېښودې، چیري چي د ترکانو په لاس د مسلمانانو د زنانه و او ماشومانو نیول کېدل بوري خبره وه، او دربند نومي ځای ته راستون سو.

مسلمه د خپل د یونیم کلن یا دوه کلن حکومت په موده کي له ترکان سره د نرمۍ او مهربانۍ څخه کار واخیست، له دې امله په ترکانو کي نور هم د بغاوت او سرغړاوي جرئت راویښ سو، دربند ته د مسلمه تر راتګ وروسته مروان محمد بن مروان چي د مسلمه بن عبدالملک په لښکرو کي شامل وو، په پټه د دمشق په لور وتښتېدی، او هشام بن عبدالملک ته یې له مسلمه څخه شکایت وکړ، چي هغه د اذربایجان او ارمینیا له خلکو سره د زیاتي نرمۍ څخه کار واخیست، له همدې امله ترکان سرغړاوي ته تیار سوي وو، بیا چي کله د مقابلې او جګړې وخت را ورسېدی، نو هغه نیول سوي ځایونه یې پرېښودل او دربند ته بیرته راغی، دا یې هم ورته و ویل چي: که ته یو لک شل زره لښکر زما سره واستوی، نو زه به ترکان ډېر ښه سم کړم.

په دې ډول هشام بن عبدالملک له مروان بن محمد بن مروان سره ۱۲۰۰۰۰ لښکر د خضر او ارمینیا د ښارونو په لور واستاوه، په همدې وخت کي مسلمه بن عبدالملک په دربند کي ناروغه او وفات سو، ترکانو چي له مروان بن محمد سره دومره ځواکمن پوځ ولیدی ډېر وارخطا سول او د مسلمانانو

مسلمانانو اطاعت ته یې غاړه کېښوده، مروان لکه څنګه چې ویلي وو، ترکان یې ښه سم کړل، او د ارمینیا او د خضر د بیحرې پر غاړو یې امن او امان قایم کړ، د هشام بن عبدالملک له خوا مروان بن محمد ۱۱۴هـ ق کال ۱۲۰ زره لښکر سره د ارمینیا په لور لېږل سوی وو.

## رومي قیصر

د هشام بن عبدالملک په زمانه کي اسلامي لښکرو رومي پوځونو ته پرله پسې ماتي ورکړې، د حضرت امیر معاویه رضي الله عنه له زمانې راسې پر رومي ښارونو د حملو لپاره د یخنۍ او ګرمۍ پوځونه ټاکل سوي وو، دغو پوځونو به په دواړو موسمونو کي پر قسطنطنیه او د قیصر پر ښارونو یرغلونه کول، همدا لامل ؤ چي رومیان د مسلمانانو څخه په وېره کي وو، د هشان بن عبدالملک په زمانه کي به معاویه بن هشام، سعید بن هشام، سلیمان بن هشام، مسلمه بن عبدالملک، مروان بن محمد، عباس، ولید او نورو شهزادګانو تر قوماندې لاندې پر رومي ښارونو حملې کېدلې، له دغو شهزادګانو سره به د عبدالله بطال او عبدالوهاب بن بخت او نور مشهور پهلوانان او قوماندانان وو، چي د زړورتوب او شجاعت پرتم یې د رومیانو په زړونو کي ناست وو، رومیانو ته د هشام بن عبدالملک د حکومت په زمانه کي ډېر زیانونه واوړېدل او هیڅکله یې د مسلمانانو په مقابل کي کوم بری ترلاسه نه کړ، په اندلس ”هسپانیه“ کي هم د عبدالله بن عقبه کارنامې د اروپایي عیسویانو او د عیسوي شاهانو د وېرولو لپاره کافي وي، او تل به د مسلمانانو څخه په وېره ترهه کې وو، په حجاز، یمن او نورو سیمو کي هم امن او امان وو.

## زید بن علي رضي الله عنه

له حسین رضي الله عنه بن علي بن ابي طالب سره چي څه په کربلا کي او له عبدالله بن زبیر رضي الله عنه سره چي څه په مکه کي د امویانو د حکومت له اړخه وسول او تردې وروسته چي حجاج او نورو اموي والیانو په عراق او نورو ځایونو کي څه تګ لاره غوره کړې وه، دغو چارو چي اسلامي نړۍ د خلکو په زړوو کي کوم اغېز پیدا کړ، هغه دا ؤ چي د خلکو په زړوو کي له امویانو سره بُغض او کینه پیدا سوه او د خلکو له زړونو څخه د امویانو سره اخلاص و وت، د هشام بن عبدالملک د حکومت شل کلنه دوره په څرګنده د امن او آرامۍ دوره وه، اوس په حجاز او عراق کي د حجاج او ابن زیاد په څېر سخت زړي او جابر حاکمان هم نه وو، بنو هاشمو ته به په کرار، کرار خپلي بربادۍ او د امویانو د بریالیتوبونو خیال ورته، هغوی هغه ټول وکړي چي په مستقیم ډول یې حکومت کي کومه ګټه نه وه خپل همفکري او پلویان ګڼل، د وېري او دهشت ډبره یې هم له تندیو څخه لیري سوې وه، په همدې خاطر بنو هاشمو د امویانو د حکومت د له منځه وړلو او پخپله د حکومت ترلاسه کولو ټینګه اراده وکړه، د حضرت

عثمان رضي الله عنه او حضرت علي کرم الله وجهه له زمانې راسې هغوی تجربه لرله، چې د حکومتونو په له منځه
وړلو کې ترتوري او زور تدبیر ښه کار ورکولای سي، په همدې خاطر یې د پټو چالونو لړۍ ښه په
چټکتیا سره پیل کړه، دغه کار د بني هاشمو دوه کورنیو په یو وخت کې په جلا، جلا ډول پیل کړ، یعې
د علي رضي الله عنه بن ابي طالب او عباس بن عبد المطلب اولادونو غه کار پیل کړی ؤ.

د عباسیانو د هڅو یادونه به وروسته کېږي، دا مهال د علویانو یعني فاطمیانو د یوه کوښښ
یادونه په نظر کې ده، دمخه و ویل سول چې: یوسف بن عمر ثقفي د هشام بن عبد الملک له لوري د
عراق والي ټاکل سوی ؤ، د ده دامارت په زمانه ۱۲۲هـ ق کال کې زید بن علي بن حسین بن علي بن ابي
طالب په پټه له خلکو څخه بیعت اخیستل پیل کړ، د یادو کړای سویو لاملونو پر اساس څرنګه چې د
امویان محبوبیت دومره کمزوری سوی ؤ، چې زید ب علي تر ډېره حده بریالیتوب ترلاسه کړ، له زید
بن علي سره په کوفه کې پنځلس ره کسا و بیعت وکړ.

امام ابو حنیفه رحمه الله هم د زید بن علي په پلویانو کې ؤ، کوم خلک چې له تېررو حالاتو څخه خبر
وو، هغوی زید بن علي له خروج څخه منعه کړ او د انتظار کولو مشوره یې ورکړه، خو زید بن علي د
هغوی مشوره عملي نه کړه، هغه په کوفه کې خروج وکړ، یوسف بن عمر ثقفي د دغه بغاوت د غلي
کولو هڅه وکړه، ترجګړې خبره ورسېدله، کوفیانو چې څنګه حسین بن علي او مصعب بن زبیر رضي الله عنه
ته دوکه ورکړې وه، همدغسې یې زید بن علي ته هم دوکه ورکړه، کله چې د توري وهلو او شجاعت
ښکاره کولو وخت راغی، نو هغوی له زید د بن علي سره د شاګردانو په څیر رویه پیل کړه، له هغه
څخه یې پوښتنه وکړه، چې تاسې لومړی دا و وایاست چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه او حضرت عمر
فاروق رضي الله عنه ستاسې په نظر کې څنګه وو؟ هغه و ویل چې ما په خپله کورنۍ کې هیڅوک دغو دوو
شخصیتونو ته په بدو ویلو لیدلي نه دي، کوفیانو ورته و ویل په داسې حال کې چې ستاسې کورنۍ
د خلافت اصلي حقدار وو، او د دغو دواړو شخصیتونو پر خلیفه کېدلو هغوی خفه ا ناراضه نه سول،
نو اوس که امویانو ستاسې پر ځای په خلافت قبضه کړې ده، نو تاسې ولې هغوی ته بد وایاست او له
هغوی سره جنګ کوئ، دا یې ورته و ویل بیعت یې مات کړ او ځیني ولاړل، زید بن علي هغوی د
رافضي خطاب ورکړ.

یوازې دوه سوه شل کسان له زید بن علي سره پاتې سول، له دغو دوه سوه شل کسانو سره زید بن
علي د یوسف ثقفي له څو زره لښکر سره مقابله وکړه، لنډه دا چې د کوفې په کوڅو کې د یو یو سړي
کور ته ورغی، بږغ به یې ورته کاوه او بیعت به یې وریاداوه، او خپل ملاتړ ته به یې رابلل، خو
هیڅوک به نه راوتل، بالاخره څو کرتې د عراق د والي فوځونه ته له ماتې ورکولو وروسته وفات سو،
یو غشی راغی او هغه پرې پر تنې ولګېدی، چې د هماغه له درده وفات سو، یوسف بن عمر ثقفي یې

سر پرې کړ او په دمشق کې يې هشام بن عبدالملک ته ولېږي، د زيد بن علي زوی يحيٰی بن زيد د خپل پلار تر مړينې وروسته لومړی د نينوا په لوري ولاړ او ځان يې پټ کړ، بيا يې خپل ځان خراسان ته ورساوه.

د زيد بن علي دغه هڅه د چټکتيا او ناعاقبت انديشۍ له امله ناکامه سوه، خو عباسيانو حينې په ګټه اخيستلو کې کمي ونه کړه، هغوی ډېر احتياط کولو زيات ليري فکر کولو ته مايل سول، او هغوی د دې خپرې اتکل هم ونه کړای سو چې اوس په اسلامي نړۍ کې د امويانو د اقتدار او ځواک اندازه په کومو حدودو کې ده، د زيد بن علي وفات وګړې نسور هم د بني هاشمو لوري ته مايل او همدرد کړل، ځکه چې هشام بن عبدالملک د زيد بن علي بری کړای سوی سر د دمشق پر دوروازه وځړاوه او يوسف ثقفي د زيد بن علي د ملګرو سرې پر سولۍ وځړول، چې پر کلو کلو هلته ځوړند وو او خلک به يې له امويانو متنفر کول او د بنو هاشمو پلويان کول به يې.

### د عباسيانو ګډ جوړ

سليمان بن عبدالملک او نورو امويانو د ابو هاشم بن محمد حنيفه بن علي بن ابي طالب ډېر عزت او درناوی کاوه، خو د نورو امويانو له هغه سره د هاشميتوب له امله کينه وه، او هغه هم له زړه څخه دامويانو د حکومت پای ته رسېدل او د هاشميانو واکوال کېدل غوښتل، د هغه کوښښ يوازي تر دې حده ؤ، چې هغه به کله په خپلو پيروانو کې ځوک اهل او پوه سړی وموندی، نو هغه به يې له خپلو خيالاتو څخه خبراوه، او دغه ډول خلک هغه لړ څخه بلکې زيات شمېر ومېندل چې په عراق کې هم وو او په حجاز او خراسان کې هم وسېدل.

محمد بن علي بن عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب هم د اموي حکومت له منځه وړلو او د عباسي حکومت د قايمولو په فکر کې مصروف ؤ، يو ځلي د سليمان بن عبدالملک د خلافت په زمانه کې ابو هاشم عبدالله بن محمد په دمشق کې د خليفه دربار ته ورغی، له هغه ځايه د راستنېدو په وخت کې د بلقاء په سيه کې په حميمه نومي ځای کې د محمد بن علي بن عبدالله بن عباس سره ډېره سو، په اتفاقي ډول هلته ناروغه او وفات سو، د وفات په وخت کې يې محمد بن علي بن عبدالله بن عباس ته وصيت وکړ، چې ته د سلامي خلافت دلاسته راوړلو کوښښ وکړه، دغه وصيت محمد بن علي ته زياته ګټه ورسوله، يعني هغه ټول وګړې چې د اب، هاشم عبدالله بن محمد پيروان وو، راغلل او په پټه يې له محمد بن علي سرسره بيعت وکړ، تردې وروسته په ۱۰۰هـ ق کال کې چې د حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله د خلافت زمانه وه، محمد بن علي عباسي خپل پيروان عراق، يمن، مصر، شام، حجاز او خراسان په لور ولېږل، که څه هم چې حضرتعمر بن عبدالعزيز رحمه الله د خپل خلافت په دوران کې امويانو سره د خلکو کرکه راکمه کړې وه، خو بيا هم د محمد بن علي عباسي تحريک روان ؤ، په

دې ډول د محمد بن علي له لوري میسره په عراق کې ابو محمد صادق په خراسان کې د عباسیانو د خلافت لپاره پرله پسې بلنه ورکوله، محمد بن علي عباسي د بلقاء په سرحدونو کې هستوګنه غوره کړه او له هغه ځایه یې په اسلامي هیواد کې د خپل تحریک څارنه کوله، څو ورځې وروسته یې خپل دولس تنه نماینده ګان وټاکل، څلورو خوا ته یې په اسلامي هیوادو کې خپاره کړل، دغو خلکو په هر ځای کې بریالیتوبونه ترلاسه کړل.

په ۱۰۲هـ ق کال او په بل روایت په ۱۰۴هـ ق کال کې ابو محمد صادق له خراسان څخه د هغه ځای څو تنه اغېزمن کسان چې د هغه بلنه یې منلې وه، له ځانه سره محمد بن علي عباسي ته راوستل، په دغو ورځو کې محمد بن علي خپل هغه زوی چې عمر یې پنځلس ورځې ؤ، له ځان سره راووړ او دغو خلکو (د خراسان څخه راغلیو) ته یې و ویل چې: هممد غه به ستاسي سردار وي (دغه هلک عبدالله سفاح ؤ) تردې وروسته بکیر بن ماهان چې په سند کې له جنید سره ؤ، له هغه ځایه کوفې ته راغی او له ابو محمد صادق سره یو ځای سو، هغه بکیر ته بلنه ورکړه او بکیر په سملاسي ډول ومنله.

دا د ۱۰۵هـ ق کال پېښه ده، په ۱۰۷هـ ق کال کې بکیر بن ماهان چې په کوفه کې د محمد بن علي له لوري په عراق او د خراسان کې د دعوت او بلني مهتمم ؤ، ابو عکرمه، ابو محمد صادق، محمد حنین عمار عباری او نور خو تنه یې په خراسان کې د عباسیانو د خلافت لپاره د بلني او دعوت مشران وټاکل، په خراسان کې اسد قسري والي ؤ هغه په اتفاقي دول ځیني خبر سو، چې څو تنه د عباسیانو د خلافت لپاره خلکو ته بلنه ورکوي.

هغه ټول ونیول او وې وژل، یوازي یو تن "عمار" ځیني وتښتېدی، او بکیر بن ماهان ته یې خبر ورکړ، بکیر د دغه پېښي خبر محمد پن علي ته د یو لیک په ترڅ کې ولېږی، محمد بن علي ورته په ځوب کې ولیکل چې: د الله ﷻ شکر دی چې ستا کوښښونه کامیاب سول او نتیجه یې ورکړه، اوس ته هم خپل ځان وژني ته تیار کړه، په ۱۱۸هـ ق کل کې بکیر بن ماهان د خپل لوري څخه عمار بن زید د عباسیانو د پلویان د مشر په توګه خراسان ته ولېږی، عمار چې هلته ولاړ خپل ځان یې د خراش په نامه مشهور کړ، خراش له عباسیانو سره همدردي تر لمانځه او روژې هم غوره وګڼله او خلکو ته ې وویل چې: د روژې لمانځه تر کار دا زیات دی، چې د بنو عباس د خلافت لپاره کوښښ وکړئ او دغه چاره پټه وساتئ او حکومت پرې خبر نه کړئ، محمد بن علي عبدالله بن عباس چې دغه خبر واورېدی، له خراش څخه یې خپګان څرګند کړ، د خراسان والي اسد قشیري د خراش له فعالیتونو څخه خبر سو، هغه ونیوه او وې واژه، محمد بن علي د خراسان د خلکو له دغسي کمزوروي عقاید و څخه نهیلي سوی ؤ، په همدې خاطر د خراسان د اغېزمنو خلکو یو هیئت د محمد بن علي په خدمت کې حاضر سو او د خپلو ګناهونو معافي یې وغوښتله.

محمد بن علي په خپله د خراسان په لور خپل نماینده ګان ولېږل، هغوی ته یې له خپل لوري څخه څو همساګاني "عصاوي" ورکړې، چي د مشرۍ او سرداري نښې وګڼل سوې، په ۱۲۴ هـ ق کال کي محمد بن علي بن عبدالله بن عباس بن زندان کي وفات سو، د وفات پر وخت یې خپل زوی ابراهیم د ځان پر ځای وټاکه او خپلو نماینده ګانو او مریدانو ته یې وصیت وکړ، چي ترما وروسته ټول د ابراهیم بن محمد بن علي بن عبدالله بن عباس د امام په حیث ومنئ او اطاعت او مننه یې وکړئ، بکیر بن ماهان د ابراهیم بن محمد په خدمت کي حاضر سو، له هغه څخه یې یو څه لارښووني واورېدې او د خراسان په لور روان سو چي هلته ولاړ سئ، خلک د محمد بن علي له وفات او د ابراهیم بن محمد بن علي له امامت څخه خبر کړي، بکیر بن ماهان خراسان ته ولاړ او په پټه یې خپل پلویان راټول کړل، ټول یې له حالاتو څخه خبر کړل، عباسیانو یو څه نقدي پیسې راټولي کړې، بکیر بن ماهان دغه پیسې له ځان سره واخیستې او د امام ابراهیم په خدمت کي حاضر سو، په همدې کال ۱۲۴ هـ ق کي ابراهیم د خپل لوري څخه ابو مسلم د خراسان په لور ولېږی، د ابو مسلم او امام ابراهیم د تحریک حالات به په بل ځای کي بیان کړای سي.

د هشام بن عبدالملک د خلافت حالات چي د یادوني وړ وو، په لنډ ډول بیان ړای سول، د یزید بن عبدالملک له وصیت سره سم تر هشام بن عبدالملک وروسته ولید بن یزید ولیعهد ؤ، خو د هشام غوښتنه وه، چي ولید عزل کړي او خپل زوی ولیعهد وټاکي، خو څرنګه چي د حکومت نورو امیرانو دغه خبره ونه منله، په دې خاطر هغه په خپله اراده کي بریالی نه سوه، خو د هشام او ولید یو بل ته په زړونو کي کرکه خامخا پیدا سوې وه، بالاخره د ربیع الثاني په شپږمه په ۱۲۵ هـ ق کال نولس نیم کاله یعني له نولس کاله او شپږ میاشتي خلافت وروسته وفات سو.

### ولید بن یزید بن عبدالملک

ابو العباس ولید بن یزید بن عبدالملک بن مروان بن حکم په ۹۰ هـ ق کال کي وزېږېدی، د ده مور د حجاج بن یوسف وربره او د محمد بن یوسف لور وه، دیزید بن عبدالملک د وفات پر وخت یې عمر لږ ؤ، له کوچنیوالي څخه د ده کړه وړه ښه نه وو، په عیش او نوش او بدو کارونو کي د ککړتیا له کبله یې په خلکو کي شهرت درلود، له دې امله یې د هشام بن عبدالملک له لوري د ولیعهدۍ څخه د عزل کېدو ارادو یو خه صحیح وه، خو ناعاقبت اندېښه امیرانو ا سردارانو هشام بن عبدالملک د خپل عزم بریالیتوب ته پرې نښووده او ولید بن یزید تر هشام وروسته د حکومت پر تخت کښېناست، د ولید بن یزید د حکومت زمانه اموي خلافت د له منځه تللو لپاره د تباهۍ دروازه پرانستل وو.

ولید بن یزید چي د خلافت پرتخت کښېناست، له هغو خلکو څخه یې چي خپل مخالفین یې ګڼل انتقام اخیستل پیل کړل، د چا یې معاشونه بند کړل، څوک یې بندیان کړل، څوک یې و وژل، سلیمان

بن هشام د خپل تره زوی یې ونیوی او په دُرو یې و واهه، بیره یې ځیني و ایستله په ښار کي یې وګرځاوه، یزید بن هشام او د ولید بن عبدالملک څو زامن یې بندیان کړل، لنډه دا چي پر تخت له ناستي سره یې تر ټولو لومړی کار دا وکړ چي د خپلې کورنۍ زیاتره غړي یې خپل دښمنان کړل، بیا یې د مدینې د والي هشام بن المحزومي زامن او د عراق د پخواني والي عبدالله قسیري یې ونیول او د عراق والي یوسف بن عمر ته یې وسپارل، هغه دغو شریفانو ته سخت تکلیف ورسول او بیا یې و وژل.

د خپل خلافت په لومړني کال یعني ۱۲۵هـ ق کال یې دخپلو زامنو عثمان او حکم لپاره دغه ډول بیعتونو سره عادت سوي وو، خو له دغو هلکانوسره چا د زړه له اخلاصه بیعت ونه کړ، لاچي نوره هم د خلکو په زړونو کي کرکه پیدا سوه.

ولید بن یزید بن عبدالملک څخه یوازي دا چي پر پورتنیو غلطیو یې اکتفاء ونه کړ، لا چي د خپلي بې بندوبارۍ او عیاشۍ له امله یې نور هم خلکو ته د راپارېدلو شرایط برابر کړل، لکه چي هغه په ښکاره د خپلو ناوړه عقاید و څرګندونه او خپراوی کاوه، د شرابو له خوړلو او زنا کولو یې هم خلک خبر سول، د دغو ټولو خبرو مهشورتیا د ولایاتو حاکمان بد زړي کړل، چي د وېري له امله یې د هغه سره د بیعت خیال ساته او اطاعت یې کاوه او که نه نو د هغه طرفداري او همدردي د ټولو له زړونو څخه و وتله.

د خپل خلافت په لومړني کال ۱۲۵هـ ق یې د خراسان ایالت د عراق د حکومت پوري وتاړه او د خراسان حاکم نصر بن سیار یې عزل کړ، نصر بن سیار ته له یوې خوا څخه ولید بن یزید او له بلي خوا د عراق د والي یوسف بن محمد لیکونه ور ورسېدل، چي ته عزل کړای سوې، په سملاسي ډول د خلافت مرکز دمشق ته راسه او د خپل ایالت حسابه کتاب ورکړه.

## د امویانو په خلافت کي د ولایاتو وېش

دلته پردې خبره ځان پوهول ضروري دي، چي د امویانو د خلافت په زمانه کي ټوله اسلامي نړۍ پر څو ایالتونو وېشل سوې وه، په هر یوه ایالت کي یو امیر یا والي او یا د خلافت نماینده مقرر وو، هغه ته به په خپل ایالت کي مکمل شاهانه اختیارات حاصل وو، او هغه به پخپله له خپله لوري په ایالت کي حاکمان او میران ټاکل. ستر، ستر ایالتونه حجاز، عراق، خراسان، مصر، جزیره، شام، افریقا، ارمینیا او اندلس وو، د حجاز په ایالت کي مکه، مدینه، طایف، یمن او نور ولایاتونه شامل وو کله به داسي هم کېدل چي یمن به یې د حجاز له ایالت څخه جدا کړ او یو بېل ایالت به یې وګرځاوه، او د هغه ځای حاکم د خلافت له مرکز څخه ټاکل کېدی، د شام په ایالت کي د اردن، خمص، دمشق او قینسرین ولایتونه شامل وو، د مص په ایالت کي به کله افریقا هم شامله وه، او کله به یې افریقا د

مصر له ایالت څخه جلا کړه او قیروان به یې ورته مرکز وټاکه، همدا رنګه به یې کله اندلس جلا ایالت وګرځاوه او د هغه ځای والي به له دمشق څخه ټاکېدل، او کله به یې اندلس له افریقا سره یو ځای کړ او د قیروان د امیر ترلاس لاندي به ؤ، په دغسي حالت کي به د قیروان امیر د اندلس والي پخپله وټاکه، همدغه حالت د خراسان او عراق هم ؤ، یعني کله به خراسان جلا ایالت و او کله به یې د عراق سره یو ځای کړ، په دغسي حالت کي به د خراسان والي د عراق د امیر له خوا ټاکل کېدی، دایالتونو امیرانو او امیرانو او د ولایتونو والیانو ته به په خپلو سیمو کي ټول واک اختیار په برخه ؤ، خو کله، کله به داسي هم کېدل چي د مالیې د محکمې لپاره به کوم سړي د خلافت له دربار په مستقیم ډول ټاکل کېدی، د خلافت د مرکز له لوري مالي مسئوول به خپل ځان د ایالت د والي ترلاس لاندي نه ګاڼه، خو دپوځ عمومي قوماندان او په ایالت کي د امن او امان مسئوول به تل د هماغه ایالت امیر یا والي ؤ، د مالي مسئول په څېر به کله، کله د شریعت امیر یا قاضي القضات څخه هم د خلافت د دربار له لوري ټاکل کېدی، خو د لمونځونو امام به تل د ولایت والي یا امیر ؤ یعني د لمونځونو امامت او عمومي قوماندانی لازم او ملزوم وه بیا وروسته د لمانځونو امامت او قوماندانی هم جلا، جلا سول، خو د جمع خطبه به د ایالت د والي او امیر پوري اړونده وه، اوس دغه حقیقت د ناپوهه مسلمانانو او د جوماتونو د معاش لرونکو امامان په پوهه کي کله راتلای سي.

نصربن سیار ته چي کله د عزل کېدو خبر ورسېدی، نو هغه یې لومړی د عملي کولو اراده وکړه، خو بیا و وېرېدی او د خراسان حکومت یې پرې نښودی او د خپلواکۍ اعلان یې وکړ، د پېښو د تسلسل په خاطر دلته یوه بله پېښه بیانول په کار دي، چي نصر بن سیار ته لا د خپل لیري کېدو احکام رسېدلی نه وو، او هغه د ولید بن یزید خلافت منلی ؤ، چي هغه ته حکم را ورسېدی چي یحیٰی بن زید بن حسین بن علي بن ابي طالب چي دخپل پلار د مړیني له امله خراسان ته درغلی او په خراسان کي هستوګن دی ونیسه او را ویې لېږه، نصر بن سیار یحیٰی بن زید را وغوښت او بندي یې کړ، او ولید بن یزید ته یې لیک واستاوه چي ما یحیٰی بن زید نیولی دی، ولید بن یزید ورته ولیکل چي ته یحیٰی موږ ته را ولېږه، نصر بن سیار یحیٰی آزاد کړ او امر یې ورته وکړ، چي ته په دمشق کي خلیفه ته ولاړ سه، یحیٰی له هغه ځایه روان سو، په لاره کي بیرته خراسان ته راستون سو، له هغه سره د خپلو پیروانو یوه ډله هم برابره سوه، نصر یې د مقابلې لپاره پوځ ولېږی، یحیٰی پر تندي غشی وخوړ او وفات سو او د هغه ټول ملګري هم و وژل سول، دغه پېښه په ۱۲۵ هـ ق کال په جرجان کي وسوه، د یحیٰی سر ولید ته ولېږل سو او تنه یې په جوزجان کي پر سولۍ وځړول سوه، چي تر او و کلو پوري پر له پسې ځوړنده وه، چي بیا ابو مسلم خراساني راکښته او دفن یې کړه.

د ولید بن یزید ظلمونه خلک کرکجن کړي او راپارولي وو، د هغه د تره زامنو چي زیات ظلمونه یې پرې کړي وو، د هغه پر خلاف فعالیتونه پیل کړل، د ولید بن یزید د کاکا زوی یزید بن ولید بن عبدالملک په ځانګړي توګه د هغه پر خلاف فعالیتونه پیل کړل، یزید بن ولید د سلطنت په کورنۍ کي ډېر متقي او نېک انسان ګڼل کېدی، په همدې خاطر هغه د ولید بن یزید پر خلاف د شرعي خبرو شکایتونه خلکو ته بیانول پیل کړل او ډېر ژر خلکو ورسره خپله ملګرتیا وښودله، په دې کار کي له یزید بن ولید سره نه یوازي دا چي د پوځونو قوماندانان او د ویالاتو امیران ملګري سول، بلکې پخپله د خلافت کورنۍ یې هم پلوي سوه، په نتیجه کي یې ټولو په پټه له یزید بن ولید بن عبدالملک سره بیعت وکړ، او د شامي لښکرو یوه زیاته برخه له یزید بن ولید سره ملګرې سوه، یزید بن ولید د دمشق هستوګنه پرېښوده له ښار څخه دباندي په یوه کلي کي مېشت سو، او له هماغه ځایه یې خپل پلویان د اسلامي ښارونو په لور ولېږل، چي خلک د ولید بن یزید له بدکاریو څخه خبر کړي، او په دې ډول د ټولي اسلامي نړۍ افکار د یزید بن ولید له خلافت سره موافق او د ولید بن یزید مخالف کړي، دا لومړی ځل ؤ چي په اموي خلافت یا د خلافت په کورنۍ کي دغسي درز پرېووت، او مخالفت دومره پرمختګ وکړ چي پټو توطیو او تبلیغاتو ته خبره ورسېدله، په نتیجه کي یې ډېر ژر د ولید پر خلافت د یزید په پلوي حالات راپیدا سول، د یزید بن ولید ورور عباس بن ولید که څه هم چي له ولید بن یزید څخه ډېر خفه او دردمن ؤ، خو هغه خپل ورور له دغه کار څخه منع کول غوښتل، یزید چي د عباس له اختلاف څخه په تنګ سو نو دمشق یې پرېښودی، او دهستوګین لپاره یې یوه جلا ځای تاکلی ؤ، یزید بن ولید بن عمرالملک د خپل هر ډول باور راوستلو وروسته د جمدي الثاني اوویشتمه ۱۲۶هـق کال د جمعې ورځ د بغاوت یا خروج لپاره وټاکه، په دې ډول د ماسختن تر لمانځه وروسته دمشق ته داخل سو، لومړی یې د ښار کوتوال ونیوه، بیا یې د حکومتي وسلې ډیپو په خپل واک کي را ووست، ولید بن یزید تردې دمخه له دغو سازشونو څخه خبر نه کړای سو، په همدې ډول هغه حیران او وار خطا پاتې سو، او هیڅ یې ونه کړای سول، د خلافت د ماڼۍ دروازې یې بندي کړې کېناست، اوس د دمشق او شاوخوا سیمو خلک راتلل او په ښکاره یې له یزید بن ولید سره بیعت کول پیل کړل، ولید بن یزید له دمشق څخه وتل او د حُمص په لور تلل غوښتل، بالاخره په قصر نعماني نومي ځای کي ولید بن یزید له لوري محاصره کړای سو، د ولید ملګرو ښه کلکه مقابله وکړه، عباس بن ولید یعني د یزید بن ولید سکني ورور خپل ملګري له ځان سره کړل او د ولید بن یزید په لاتړ له دمشق څخه و وت، خو په لره کي منصور بن جمهور ونیو او یزید بن ولید ته یې را ووست، ولید بن یزید چي کله ولیدل چي اوس د خلاصون هیڅ شکل نسته نو وې ویل چي: نن زما لپاره هماغسي ورځ ده لکه پر عثمان غني چي راغلې وه قرآن کریم یې را واخیست، او په تلاوت یې

پیل وکړ، د یزید سړي د ماڼۍ پر دېوالونو ور وختل او په ولید پسې ورننه وتل، د هغه سر یې پرې کړ، منصور بن جمهور را ووړ او یزید بن ولي ته یې په مخکې کېښود، یزید امر وکړ چې دغه سر په ښار کې وګرځوی او د ولید ورور سلیمان بن یزید ته یې ورکړی، همدغسې وسول، د جمادي الثاني په اته ویشته په ۱۲۶ هـ ق کال ولید له یو کال او درې میاشتې حکومت ورسته و وژل سو، او په همدې ورځ یزید بن ولید بن عبدالملک پر تخت کېښېناست، د امویانو ترمنځ دغه جګړه د هغوی د تباهۍ لامل ثابته سوه او بیا له پرله پسې مصیبتو وروسته د حکومت او سلطنت ته لاس په سر سول.

**یزید بن ولید بن عبدالملک**

ابو خالد یزید بن ولید بن عبدالملک بن مروان بن حکم ته یزید ثالث او یزید ناقص هم وایي، یزید الناقص ځکه ورته ویل کېږي، چې هغه د خلکو یعني پوځیانو معاشونه کم کړي وو، ولید بن یزید چې خلیفه سوی ؤ، هغه د یوه پوځي لس، لس درهمه معاش زیات کړی ؤ، یزید چې خلیفه سو، دغه زیاتوالی یې بیرته راکم کړ او هماغه پخواني معاشونه یې پرېښودل، چې د هشام بن عبدالملک په زمانه کې ټاکل سوي وو، یزید چې کله خلیفه سو خلک یې راټول کړل او ورته وې ویل چې: ولید بدکاره او بدعقیده ؤ، ځکه و وژل سو، زه به او س له تاسي سره ښه رویه کوم تاسي ته به خپل معاشونه په ټاکلي وخت خامخا درکول کېږي، زه چې ترڅو پوري اسلامي سرحدونه مستحکم او په عدل او انصاف سره ښارونه آباد نه کړم، تر هغه وخته به چاته له اړتیا پرته جاګیر او یا نور څه نه ورکول کېږي، زه به په خپله دروازه کې څوکیداران نه دروم، چې هر سړی ماته په آسانۍ سره ځان راو رسولای سي، که زه غلط چلن غوره کړم، نو تاسي واک لری چې ما عزل کړی، تردې وروسته یزید بن ولید د خپل ورور ابراهیم بن ولید او تر هغه وروسته عبدالعزیز بن حجاج بن عبدالملک لپاره د ولیعهدۍ بیعت د خلکو څخه واخیست.

د حمص خلک چې خبر سول چې ولید بن یزید وژل سوی دی نو هغوی بغاوت وکړ، او د ولید د وینې د بدلې د اخیستلو لپاره یې یزید بن خالد بن یزید بن معاویه خپل مشر وټاکه او د دمشق په لوري روان سول، یزید بن ولید سلیمان بن د سولې غوښتنه وکړه، خو چې هغوی ونه منله نو جګړه پیل سوه، څوک چې څیني پاته سول هغوی وتښتېدل.

د دغه خبر له اورېدو سره د فلسطین خلکو هم بغاوت وکړ، او یزید بن سلیمان بن عبدالملک یې خپل سردار وټاکه، د اردن خلکو چې واورېدل، نو محمد بن عبدالملک یې خپل بادشاه وټاکه و د فلسطین د خلکو سره یو ځای سول، د دواړو ځایونو پوځونه سره یو ځای سول او د دمشق په لوري یې حرکت وکړ، د دغو ټولو ځایونو خلک یزید بن ولید خپل پلویان کړي وو، خو د خلیفه د وژنې پېښه نه وه، په همدې خاطر د دغو خلکو په زړونو یک په ناڅاپي ډول د وژل سوي خیلفه سره

همدردي او له موجوده خلیفه سره د کرکي جذبه پیدا سوه، دا کومه د حیرانتیا خبره نه ده، موږ وینو چي کله یوه قاتل او ډاکو ته سزا ورکول کېږي نو که څه هم هر سړي هغه د اعدام حقدار ګڼي، خو چي کله یې پر سولۍ ځوړند و ویني،نو بیا یې ورسره زیاته همدردي پیدا کېږي او هغه کرکه چي لومړی د هغه په باب د خلکو په زړوو کي موجودي وي، پر زړه سوی بدلېږي، د دغه لښکر څخه په خبرېدو سره یزید بن ولید بن عبدالملک یې مخي ته سلیمان بن هشام له یوه ځواکمن پوځ رسره د ټکولو لپاره ور ولېږی، په دې ډول سلیمان هغوی تولو ته ماتې ورکړه، د وخت له خلیفه سره یې بیعت کولو او اطاعت منلو ته اړ کړل، د هشام د یادو کړای سوو بغاوتونو ترغلي کولو وروسته یزید بن ولید د عراق او خراسان له امارت څخه یوسف بن عمر عزل کړ او د هغه پر ځای یې منصور بن جمهور د عراق او خراسان امیر وټاکه، یوسف بن عمر په اصولي ډول د امارت چاري منصور بن جمهور ته ونه سپارلې، بلکې په پټه له عراق څخه د دمشق په لور روان سو، دمشق ته نږدې رسېدلی ؤ چي یزید بن ولید ونیو او بندي یې کړ او په همدې حالت کي و وژل سو، منصور بن جمهور چي کوفې ته ورسېدی د یوسف بن عمر د وخت بندیان یې آزاد کړل، او د خپل ځان له لوري ي خپل ورور د خراسان والي وټاکه، هلته نصربن سیار په خراسان کي داخلدو ته پرې نښودی، دغه جګړه لا پای ته رسېدلې نه وه، او منصور بن جمهور لا په کوفه کي دوه میاشتي تېري سوي نه وې، چي یزید بن ولي منصور بن جمهور عزل کړ او د هغه پر ځای یې عبدالله بن عمر بن عبدالعزیز ته وسپاره او پخپله د شام په لور روان سو، عبدالله بن عمر په اصولي ډول نصر بن سیار د خراسان والي وټاکی، په دې ورځو کي د عراق سره، د یوسف بن عمر د وخت راهیسي د یمامه خلکو د هغه ځای حاکم علي بن مهار وشاړه او یمامه سیمه هم د عراق د حکومت ترلاس لاندي وه، کله به یمامه له حجاز سره یو ځای کېدله او کله له خپله خپواکي یې اعلان کړې وه، تردې وخته د هغوی خپلواکي پر خپل حال پاتې وه او د ذغو سیمو د تابع کولو لپاره کوم لاره چاره سنجول سوې نه وه.

عبدالله بن عمر بن عبدالعزیز چي کله د عراق امارت پخپل لاس کي واخیست او نصر بن سیار یې له خپل لوري د خراسان والي وټاکه، نو په خراسان کي جدیع بن کرماني ازدیله نصر څخه بغاوت وکړ، جدیع بن کرماني په اصل کي د ازد ؤ، خو څرنګه چي هغه کرمان کي زېږېدلی ؤ، له دې امله په کرماني مشهور ؤ، جدیع چي ولیدل چي نصر بن سیار چي تر اوسه دخراسان خپلواک حاکم اوس د دویم ځل لپاره عراق امارت له لوري مقرر کړای سو او په دې ډول د مرکزي حکومت پوري وتړل سو، غمجن سو او خپلو وستانو ته یې و ویل چیک دغه وګړي په فتنه کي اخته دي، تاسي د خپلو کارونو لپاره څوک خپل امیر وټاکئ، د نصر او نصر بن سیار په زړونو کي دمخه یو بل ته کدورت وو، اوس چي کرماني دغه نوې فتنه راولاړه کړه، پردې نصر هغه ونیو او د روژې په ۲۷ د ۱۲٦هـق کال یې بندي

کړ، کرماني یو څو ورځې بندي ؤ، بیا له زندان څخه وتښتېدی او په سملاسي ډول یې دري زره کسان پر خپل ځان راټول کړل، له بل لوري څخه نصر هم د هغه د ټکولو لپاره یو قوماندان ته وظیفه ورکړه، خو خلک یې ترمنځه سول او د جګړې د نه کولو او سول کولو کوښښونه یې وکړل، چي په نتیجه کي یې کرماني نصر ته راغی او نصر بن سیار ورته پر کور د کېناستلو لارښوونه وکړه، څو ورځې وروسته بیا کرماني د سرغړاوي بغاوت او اراده وکړه، لنډه دا چي دغه ډول څو ځله د جنګ لپاره تیاري او څو ځله سوله وسوه، بالاخره دا وړاندیز او فیصله وسوه چي کرماني دي خراسان پرېږدي او د جوزجان په لور دي ولاړ سي او په دې ډول دغه فیصله عملي سوه.

په کومو ورځو کي چي د کرماني او نصر ترمنځ بیا ځلي اختلافات پیدا کېدل او غلي کېدل، له نصر سره اندېښنه پیدا سوه چي کرماني د ترکستان له ښارونو څخه حرث بن شریح را وغواړي او خپل ځان ځواکمن کړي، د حرث بن شریح یادوه دمخه سوې ده هغه له دولس دیارلس کل راسي د کرتسان په ښارونو کي هستوګن ؤ، له دې امله نصر بن سیار د حرث بن شریح د راغلوښتلو لپاره مقاتل ب حیاني نبطي واستاوه او له بلي خوا یې عبدالله بن عمر بن عبدالعزیز ته په کوفه کي او یزید بن ولید ته په دمشق کي پیغامونه واستول، چي په هغوي کي یې د حرث بن شریح له لوري د راولاړېدونکي فتنې خبر ورکړ او د دې سپارښتنه یې وکړه، چي تاسي هغه ته امان ورکړئ او ماته یې د راغښتلو اجازه وکړئ، له دواړو ځایونو امان لیکونه راغلل او حرث بن شریح هم د کرستان له ښارونو څخه خراسان ته راغی، نصر هغه ته ښه تود هرکلی و وایه او په مرو رود کي یې هستوګن کړ، د ورځې یې ورته پنځوس درهمه تنخواه مقرر کړه، او ورته وې ویل چي: ته د هر ښار حکومت خوښوې د هماغه ښار حاکم به وټاکل سې، حرث و ویل زه د حکومت او دولت غوښتونکی نه یم، زه خو پر کتاب او سنت د عمل کولو غوښتونکی یم، د ظلم او تعدي څخه خفه سوی او له دې ښارونو وتلی وم، اوس دولس دیارلس کاله وروسته تاسي بیا را وغوښتلم، که نصر بن سیار پر قرآن او سنت عمل وکړ، نو زه یې طرفدار کېږم او له دښمنانو سره به یې جنګېږم او که ده پر کتاب او سنت عمل ونه کړ، نو زه بیا له تا سره ملګری کېږم، خو په دې شرط چي تا پر قرآن او سنت د عمل کولو اقرار وکړ، تردې وروسته حرث د تیم قبایل او نور مشران له ځان سره بیعت کولو ته متوجه کړل، په څو ورځو کي دري زره کسانو له هغه سره بیعت وکړ.

د خراسان خو دغه حالت ؤ چي یادونه یې وکړای سوه، له بلي خوا په ارمنیا کي مروان بن محمد بن مروان او پهجزیره کي عبده بن رپاح غساني امارت کاوه، کله چي ولید بن یزید و وژل سو، نو عبده غساني له جزیرې څخه د شام په لوري ولاړ د مروان بن محمد زوی عبدالملک چي جزیره خالي ولیدله، هغه یې ونیوله او ځای پر ځای یې خپل مؤظف کسان ولېږل او خپل پلار مروان بن محمد ته

يې وليکل چې دا ډېر زرين وخت دی، تاسي د وليد د ويني د بدلې اخيستلو لپاره راپورته سی، هغه خواته لا يزيد بن وليد د اردن، فلسطين او خمص له بغاوتونو څخه خلاص سوی نه ؤ، چې د مروان بن محمد د بغاوت خبر ورته را ورسېدی، څرنګه چې د يزيد لپاره دغه وخت ډېر نازک ؤ، هغه مروان ته وليکل چې ته زما سره بيعت وکړ، زه به تا ته د جزيرې، اذربايجان، ارمينيا او موصل د ولايتونو حکومتو څخه وسپارم او د ولايت مکتوب به يې له تاسره وي، مروان بن محمد بيعت وکړ او يزيد ب وليد لکه څنګه چې وعده کړې وه، هغه ته يې د ولايت مکتوب ور واستاوه، په دې ډول د خپلې لارې څخه ستون سو، او پر خپلو ورسپارل سوي ولاياتو يې حکومت پيل کړ، لومړی هغه يوازې د ارمينيا حاکم ؤ، اوس تر موصل پورې د ټولوي سيمي حکومت ورته وسپارل سو، يزيد بن وليد مشهور په وليد الناقص د خپلو اخلاقو او پوهې له امله بد نه ؤ، خو د هغه عمر ورسره وفا ونه کړه او د ذي الحجه په شلمه ۱۲۶هـ ق کال څو ورځې کم شپږ مياشتي حکومت کولو وروسته وفات سو.

**ابراهيم بن وليد بن عبدالملک**

ابو اسحاق ابراهيم بن وليد عبدالملک د خپل ورور يزيد المناقص له وفات وروسته د هغه له وصيت سره سم خليفه سو، له ابراهيم سره عمومي بيعت ونه کړای سو، ځيني خلکو يې له بيعت څخه انکار هم وکړ، د ارمينيا والي مروان بن محمد بن مروان بن حکم چې د يزيد د مړيني خبر واورېدی، د خپل پوځ سره د دمشق په لور روان سو، لومړی قينسرين ته ورسېد، قينسرين يې فتح کړ، بيا د حُمص په لوري وخوځېدی، د حمص خلکو له ابراهيم سره بيعت نه وکړي، له دې امله شامي لښکر د عبدالعزيز بن حجاج بن عبدالملک تر قوماندې لاندې (چې د ابراهيم له لوري رالېږل سوی ؤ) د حمص محاصرې ته پروت ؤ، لکه چې مروان بن محمد ورته نږدې را ورسېدی، نو عبدالعزيز د حمص محاصره ماته کړه او د دمشق په لوري روان سو، حُمص ته د مروان له را رسېدو سره د هغه ځای خلکو ورسسره بيعت وکړ، ابراهيم چې کله له دغو حالاتو څخه خبر سو، سليمان بن هشام يې يو لک شل زره پوځ سره هغه مقابلې ته را ولېږی، له مروان بن محمد د سره ټوټل اتيا زره پوځ ؤ، مروان تر جنګ پيل کېدلو دمخه دا پيغام ور ولېږی، چې موږ د وليد بن زيد د وينو له بدلې اخيستلو څخه تېرېږو، ته د هغه زامن حکم او عثمان چې وليد بن يزيد خپل وليعهد ټاکلي وو، آزاد کړه، سليمان بن هشام دغه غوښتنه ونه منله، بالاخره جګړه پيل سوه، سليمان بن هشام د اولس زره کسانو دلاسه ورکولو ماتي وخوړه، مروان د وليد زامنو عثمان او حکم لپاره د خلکو څخه بيعت واخيست او د دمشق په لور روان سو، په مشق کي ابراهيم او د هغه مشاورينو مشوره ورکړه، چې حکم او عثمان بايد و وژل سي، په دې ډول دغه دواړه بنديان و وژل سول، مروان بن محمد سوبيالی دمشق ته راننه وت، ابرهيم، سليمان او پلويان يې له دمشق څخه تدمر په لوري ولاړل، مروان چې حکم او عثمان مړه

وليدل ډېر غمجن سو، د جنازې لمونځ يې ادا کړ او ښخ يې کړی، او دغه پوښتنه يې له خلکو څخه وکړه، چي تاسي څوک خپل خليفه ټاکل غواړئ، ټولو په يوه اتفاق د مروان بن محمد بن مروان بن حکم په لاس بيعت وکړ، دا د دوشنبې د ورځي د صفري د مياشتي د ۱۲۷ هـ ق کال پيښه ده مروان بن محمد بن مروان بن حکم ابراهيم ته بخښنه وکړه او هغه په خوښۍ سره د مروان په مقابل کي د خلافت څخه لاس واخيست، د ابراهيم بن وليد خلافت په باب مؤرخين سره مخالف دي، ځيني يې خليفه ګڼي او ځيني نور يې بيا د خلافت څخه انکار کوي، ځکه چي د هغه خلافت په مکمل ډول په ټوله اسلامي نړۍ کي منل سوی نه ؤ، چي هغه د خلافت څخه لاس واخيست، هر څنګه چي وخود حکومت موده يې يوازي دوې مياشتي او څو ورځي وه.

## مروان بن محمد بن مروان بن حکم

مروان بن محمد د امويانو وروستی خليفه دی، ده ته خلکو مروان الحمار هم وايه، حمار "خر" په عربو کي د صبر له امله شهرت لري، مشکلات زغمونکي سړي ته يې "خر" ويل، له دې امله يې دغه خليفه هم په حمار "خر" سره ياد کړ، ځکه چي د ده د خلافت ټوله موده په مشکلاتو کي تېره سوه او مروان بن محمد د خورا زياتو مشکلاتو زغملو او صبر کولو ثبوت وړاندي کړ، مروان بن محمد د دمشق پر ځای په حران نومي ځای کي هستوګنه غوره کړ، له تدمر څخه معزول سوی خليفه ابراهيم يې ځان ته راوغوښت، او هغه ته يې تنخواه مقرر کړه، د شوال د مياشتي په لومړی ورځ مروان ته خبر راغی چي د حُمص خلکو د بغاوت او خروج لپاره ښه مکمل تياري کړی دی او د شاوخوا له سيمو څخه عزمي قبايل هغوی ته را رسېدلي دي، مروان د دغه خبر له اورېدو سره په سملاسي ډول پوځ له ځان سره واخيست او د شوال په دېرشمه حمص ته نږدې ورسېدی، وه يې ليدل چي د حمص خلکو دد ښار دراوزې بندي کړي دي، د مروان خبر لوځ د حمص پر خلکو ږغ وکړ، چي تاسي څنګه له امير المؤمنين سره بيعت مات کړيدی، د ښار ځواب ورکړ، چي موږ بيعت مات کړی نه دی بلکې مطيع او فرمان منونکی يو او پر خپل بيعت ټينګ ولاړ يو، په دې ډول هغوی د ښار دروازې بيرته کړې او مروان د خپلو ملګرو سره ښار ته داخل سو، د ښار خلکو او د مروان مخالفينو يې مقابله پيل کړه، مروان چي دغه حالت وليدی د ښار پر دروازه ور وخوت، د مخالفينو مققابله يې وکړه او هغو يته يې ماتي ورکړه د ښار دېوالونه يې تر درې سوه ګزو پوري راوغورزول له ځمکي سره يې برابر کړل، او د ښار له خلکو څخه يې د خپل ځان لپاره بيعت واخيست، مروان لا په حمص کي ؤ چي خبر ورته را ورسېدی چي د غوطه خلکو يزيد بن خالد قسيري خپل سردار ټاکلی هغه دمشق ته والي د مرستي لپاره لس زره پوځ ولېږی، دغه پوځ چي دمشق ته ورسېد له دباندي څخه يې د غوطه پر خلکو حملې پيل کړې او د دمشق خلکو د ننه څخه مقابله وکړه، د غوطه خلکو ماتي وخوړه يزيد بن خالد و وژل

سو، د هغه سر پرې کړای سو او مروان ته یې ور ولېږی، د دغه جګړې له پای ته رسېدلو سره ثابت بن نعیم د فلسطین خلک پر ځان راټول کړل او طبریه یې محاصره کړه، هغه مهال په طبریه کي ولید بن معاویه بن مروان بن حکم والي ؤ، مروان بن محمد چي دغه خبر واورېدی، د خپل پوځ سرلښکر ابو ردا یې د دغه بغاوت د سرولو لپاره ولېږی، د ابو ردا له رسېدلو سره د طبریه وګړي له ښاره و وتل او له کلابند کوونکو سره یې په مقابله پیل وکړ، د فلسطي خلکو رسوا ماتي وخوړه، او د ثابت بن نعیم درې زامن ابو رداء ونیول او مروان بن محمد ته یې ولېږل، مروان بن محمد د فلسطین حکومت حسن بن عبدالعزیز کناني ته وسپاره، رما حسن په ثابت بن نعیم پسې لټه وکړه، هغه یې ژوندی ونیوی، او مروان ته یې ولېږی، مروان د ثالث او د هغه د درې واړه زامنو لاس پښې غوڅي کړې او پرصلیب یې وځړول، له دغو پېښو څخه چي مروان بن محمد فارغ سو، په دیر ایوب کي یې د خپلو زامنو عبدالله او عبیدالله لپاره د خلافت بیعت واخیست، او د هشام له لونو سره یې ورته ودونه وکړل، تردې وروسته مروان د تدمر په لور لښکر کشي وکړه، ځکه چي د تدمر خلک لا تردې وخته خپلواک پاتي وو، د تدمر وګړي بیعت او اطاعت ته اړ کړای سول، تردې وروسته مروان بن محمد یزید بن هبیره د عراق په لور واستاوه، چي ضحاک شیباني خارجي چي کوفه یې نیولې وه، له هغه ځایه وشړي، په یزید بن هبیره پسې د مرستیال پوځونه د لېږلو لپاره مروان پخپله په "قرقیسیا" نومي ځای کي دېره سو، تردې دمخه سلیمان بن هشام د آرام کولو په خاطر په رصافه نومي ځای کي دېره سو، تردې دمخه سلیمان بن هشام د آرام کولو په خاطر په رصافه نومي ځای کي دېره سوی ؤ، د شام د خلکو یوه ډله چي خلیفه مروان له یزید بن عمر بن هبیره سره عراق ته لېږلي وه، له هغه څخه جلا سوه او په رصافه کي یې ځان سلیمان بن هشام ته ورساوه، او ورته وې ویل چي: تاسي خلافت ومنئ، سلیمان دغه خبره ومنله، دغه شامي وګړي یې له ځان سره واخیستل او د قینسرین په لور روان سو، سلیمان چي قینسرین ته ورسېدی د شام خلکو ته یې لیکونه واستول، د دغو لیکونو اغېز دا وسو چي د شام وګړي له هري خوا څخه د سلیمان لوري ته را واوښتل، او یو ځواکمن او زوړور پوځ له سلیمان سره راټول سو، مروان چي دغه خبر واورېدی، یزید بن عسربن هبیره ته یې د قیام کولو فرمان ولېږی، او پخپله له قرقیا څخه د سلیمان په لوي ولاړ، له قینسرین څخه دباندي د سلیمان او مروان لښکري سره مخامخ سوې، سلیمان ته مروان ماتي ورکړې تېښتي ته یې اړ کړ، مروان د سلیمان نیول سوي ملګري و وژل، د سلیمان بن هشام زوی او د هشام بن عبدالملک ماما خالد بن هشام مخزومي د جګړې په ډګر کي و وژل سول، سلیمان وتښتېدی او ځان یې حمص ته ورساوه، د دویم ځل لپاره یې لښکر برابر کړ او د حمص ښار دېوالونه یې ودان کړل، مروان چي واورېدل ځان یې حمص ته ورساوه، ډېره خونړۍ جګړه وسوه او یو ځل بیا مروان حمص محاصره کړ، تقریباً ترلسو میاشتو د حمص

کلابندي دوام وکړ، اتیا منجنیقونو په پرله پسې ډول د حمص پر ښار ډبري اورولې، بالاخره د حمص وګړي مجبور سول امان یې وغوښته او سلیمان مجبور سو چي د تدمر په لوري ولاړ سي، له دې ځایه چي فارغه سو مروان په کوفه کي د ضحاک خارجي د مقابلې لپاره ولاړ.

یزید بن عمر بن هبیره د کوفې خواته ورغی او د ضحاک خارجي لښکرو ته یې ماته ورکړه او کوفې ته ننه ووت، خارجیانو "جوارجو" ځو کرتي بغاوت وکړ خو هر ځلي یې ماتي وخوړه، یزید بن عمر بن هبیره چي عراق ونیو له خپل لوي یې نصر بن سیار د خراسان والي پر خپل حال پرېښود، نصر له مروان بن محمد سره بیعت وکړ.

لکه څنګه چي دمخه ویل سوي دي په خراسان کي حرث بن شریح موجود ؤ، او د هغه ډله ورځ په ورځ زیاتېدله، حرث بن شریح ته دا فکر هم ورغی چي ماته خو یزید بن ولید امان راکړی ؤ، یزید بن عمر بن هبیره د عراق اوسني والي ورته امان ورنه کړ، په همدې خاطر حرث بن شریح د مخالفت اعلان وکړ، نصر بن سیار هغه ډېر وپوهاوه، خو وه یې نه منله، بالاخره خبر تر جګړې ورسېده، په ځانګړې توګه د مروې په ښار کي د جنګ شغلې پورته سوې بل لوري ته کرماني هم په کرمان کي پوره قوت ترلاسه کړی ؤ، نصر بن سیار کرماني را وغوښت، خو د هغه هم زړه صاف نه ؤ، او په ښکاره مخالفت ته تیار سو، لنډه دا چي په مرو کي کرماني، حرث او نصر درې کسان یو ځای سول، د درې وارو قوت مساوي ؤ، او درېواړه خپل جلا جلا اهداف لرل، یو تر بله یې سره کومه همدردي او ګډون نه درلود، په اخره کي حرث او کرماني سره متفق سول نصیر بن سیار ته یې ماتي ورکړه او له مروې څخه یې وشاړه، څو ورځي وروسته دغه دواړه هم سره په جګړه سو، په دغه جګړه کي حرث بن شریح و وژل سو او کرماني مروه ونیوله دا د ۱۲۸هق کال پېښه ده، کله چي حرث بن شریح و وژل سو، نو نصر خپله ډله منظمه کړه، او د کرماني د مقابلې لپاره یې یو په بل پسې پوځونه لېږل پیل کړل، ډېري جګړې وسوې او تقریباً په هره جګړه کي د نصر قوماندانانو د کرماني په مقابل کي ماتي وخوړه، وروسته بیا نصربن سیار پخپله یو ستر لښکر برابر کړ او د ځان یې مروې ته ورساوه، دواړو لویو سنګرونه جوړ کړل او جګړې پیل سوې، دغه جګړې لا رواني وې او کوم لوي بریالیتوب ترلاسه کړی نه ؤ، چي مسلم خراساني چي وروسته به یې مفصل بیان ولیکل سي، دغه موقع غنمیت وګڼله او خپله ډله یې منظمه کړه، یوې خواته یې نصر بن سیار ته لیکونه واستول او بلې خواته یې کرماني ته خطونه ولیکل، چي مماته امام ابراهیم ستا په باب یو څه لارښووني رالېږلي دي، او زه دا ګنم چي له هغه څخه به تاته کټه در ورسېږي، همدغسي یو لیک یې کرماني ته ولېږی، چي زه له تاسره همدردي لرم، او امام ابراهیم ماته ستا په باب لیکلي دي چي: د اړتیا پر وخت درسره مرسته وکړم، غه لیکونه یې چي د کومو استاذیو په لاس ولېږل، هغه ته یې لارښوونه وکړه، چي په لاره کي کوم قبایل له نصر

سره همدردي لري هغوی ته د نصر لیک وښایاست او کوم قبایل چې د کرماني سره همدردي لري هغوی ته د کرماني په نامه لیک وښایاست او پر مخ ولاړ سئ، له دې څخه د مسلم هدف دا ؤ چې د ټولو قبایلو همدردي ترلاسه کړي.

په دې ډول هغه د خوارجو ملاتړ هم د یو څه لاړو چارو له مخې حاصل کړ، په اخر کي ابو مسلم خراساني د خپلي ډلي سره ولاړ او د نصر او کرماني د سنگرونو ترمنځ یې خیمې و وهلې، دواړو لوریو دا اټکل ونه کړای سو، چې دی "مسلم" به د چا ملاتړ کوي، او له چا سره مخالفت، په راتلونکي ورځ کرماني ته مسلم ځواب ور ولېږی، چې زه به د ستا له لوري د نصر سره مقابله کوم، کرماني چې واورېدل ډېر خوښ سو، نصر چې دغه خبر واورېدی، کرماني ته یې لیک واستاوه چې ابو مسلم په چل سره تاته زیان رسول غواړي، چې وه دې نه غولوي، د ده په مقابل کي باید موږ خپل اختلاف هېر کړو، کرماني د نصر نظر خوښ کړ او په راتلونکي ورځ د دواړو ترمنځ د خبرو اترو لپاره وټاکل سوه، کرماني دوه سوه کسان له ځان سره واخیستل او د نصر بن سیار د ملاقات لپاره و وت، د نصر پلویانو د موقع په میندلو سره کرماني او د هغه ملگري و وژل، د کرماني ځوی "علي" وتښتېدی او ځان یې ابو مسلم ته ورساوه، د کرماني پوح او د ابو مسلم ډلي په گډه د ابو مسلم او علي بن کرماني تر قوماندې لاندي پر نصر حمله وکړه، نصر بن سیار ماتي وخوړه او وتښتېدی، د کوم غریب سړي په کور کي پټ سو، ابو مسلم او علي مروه ونیوله، علي بن کرماني له ابو مسلم سره بیعت کول غوښتل، خو ابو مسلم ورته و ویل: ته اوس همداسي اوسه: د امام د امر تر راتگ وروسته چې ځنگه مناسبه وه هماغسي به وکړو، نصر بن سیار له مروې څخه و وت او یو ځل بیا یې پر ځان د خپلو پلویانو راټولول پیل کړل، ابو مسلم د خوارجو مشر شیبان خارجي هم له ځان سره ملگری کړ، ځکه چې نصر بن سیار د خوارجو دښمن ؤ، علي بن کرماني له ابو مسلم سره ځکه ملگری ؤ، چې هغه د نصر بن سیار څخه د خپل پلار بدله اخیستل غوښتل، نصربن سیار په یو پیغام کي د خوارجو مشر ته و ویل چې: ابو مسلم د علي شیعه دی او په دې ډول یې هغه له ابو مسلم څخه جدا کول غوښتل، لنډه دا چې کله به خوارج د ابو مسلم څخه جدا سول او کله به ځیني ابن کرماني بېلېده، دغه څلور واړه ډلي خواته گرځېدل، او یو پر بله سره په اتفاق کېدل او بیا به جدا کېدل، په دې څلور سره کي نصربن سیار او ابو مسلم خراساني ډېر هوښیار او موقع پېژندونکی ؤ، په نتیجه کي یې ابو مسلم خراساني په بېلو، بېلو وختونو کي شیباني خارجي او علي بن کرماني و وژل، دا د ۱۳۹هـ ق کال پېښې دي دي، په ۱۳۱هـ ق کال نصر بن سیار رئ ته نږدې ناروغه او وفات سو او په خراسان کي د ابو مسلم خراساني سیال پاتې نه سو.

## خوراج

تردې ځايه د خراسان لنډ ډول حالات وليکل سول، په دې لړ کي خوارجو چي په اسلامي حکومت کي کمزورتيا او کورنۍ جنګونه وليدل بغاوت يې وکړ، د خراسان خوارج راټول سول او ضحاک بن قيس شيباني يې خپل مشر وټاکه، ضحاک پر کوفه حمله وکړه او وې نيوله، عبدالله بن عمر بن عبدالعزيز له کوفې څخه د واسط ښار تللو ته اړ سو، سليمان بن هشام چي د مروان بن محمد په مقابل کي ماتي وخوړه، له ضحاک بن قيس سره يو ځای سو، په دې ډول د ضحاک قوت او توان نور هم زيات سو، ضحاک له ځواکمنېدلو سره په موصل حمله وکړه، په موصل کي ورسره د مروان بن محمد زوی عبدالله بن مروان مقابله وکړه، خو له هغه سره ټول اوه زره کسان وو او د ضحاک بن قيس د پوځونو شمېر سل زرو ته رسېدی، ضحاک عبدالله بن مروان کلابند کړ.

مروان بن محمد چي دغه خبر واورېدی د موصل په لور يې مخه وکړه، ښه زوروره جګړه وسوه، ضحاک و وژل سو، خوارجو سعيد بن بهدل خپل مشر وټاکه، هغه هم و وژل سو، ترده وروسته يې شيبان بن عبدالعزيز خپل مشر وټاکه، مروان بن محمد د کوفې په لور يزيد بن هبيره واستاوه يزيد بن هبيره له کوفې څخه خوارج وشړل، له دې ځايه چي شيبان بن عبدالعزيز خوارج له ځان سره د فارس په لور بوتلل، هلته له ابو مسلم سرهر يو ځای سول، لکه د مخه يې چي يادونه وسوه، او ۱۳۰هـ ق کال کي و وژل سو.

په حجاز، يمن او حضرموت کي هم سرغړاوي راپورته سول، ابو حمزه مختار بن عوف ازدي د بغاوت قيادت په لاس کي درلود د حضرت موت عبدالله بن يحيیٰ هم ورسره ملګری سو، ابو حمزه لومړی مدينه ونيوله او بيا يې شام په لور حرکت وکړ، مروان بن محمد يې د مقابلې لپاره ابن عطيه سعدي را ولېږی، په وادي القري کي نښته وسوه او ابو حمزه پکي و وژل سو، ابن عطيه د يمن په لور پرمخ ولاړ هلته يې عبدالله بن يحيیٰ د ځان په مقابل کي تيار وليدی، د دواړو ترمنځ جګړه وسوه، عبدالله بن يحيیٰ و وژل سو، ابن عطيه يې سر پرې کړ او مروان ته يې واستاوه.

کوم مهال چي مروان بن محمد د خوارجو له رئيس ضحاک سره موصل ته نږدې په جګړه اخته ؤ، هغه مهال د امام ابراهيم يو ليک چي د ابو مسلم په نامه يې ليکلی ؤ په لاره کي ونيول سو او ورته راوړل سو، په دغه ليک کي امام ابراهيم ابو مسلم خراساني ته لارښووني کړي وې او دا يې هم ورته ليکلي وو چي په خراسان کي د عربي نسل يو تن هم ژوندی پرې نږدي، د خراسان اصلي اوسېدونکي چي نوي مسلمانان سوي دي، هغه به ډېر ښه زموږ په کار راسي او پر هماغوی باور کول په کار دي، له دغه ليک څخه دا راز هم ښکارېدی چي عباسيانو د امويانو پر خلاف له ډېري مودې راسي د

سازشونو جال خپور کړی دی، او امام ابراهیم د دغه موجوده سازش امام دی، چي د بلقاء په سیمه کي په حمیمه نومي ځای کي هستوګن دی.

مروان بن محمد چي دغه لیک ولوست په بلقاء کي یې خپل حاکم ته ولیکل چي امام أبراهیم په حمیمه کي ونیسه او را ولېږی، په دې ډول ابراهیم بن محمداو د هغه د کورنۍ څو تنه نور غړي ونیول سول او مروان ته را ولېږل سول، مروان بن محمد هغوی په حران نومي ځای کي بندیان کړل، له امام ابراهیم بن محمد سره سعید بن هشام بن عبدالملک او د هغه دوه زامن عثمان او مروان او عباس بن ولید بن عبدالملک او عبدالله بن عمر بن عبدالعزیز او محمد شیباني هم زنداني کړی سو، څو ورځي وروسته په حران کي د وبا ناروغي خپره سوه، په همدې حالت کي امام ابراهیم، عباس بن ولید او عبدالله بن عمربن عبدالعزیز وفات سول.

سعید بن هشام او نورو بندیانو د زندان دا روغه و واژه، زندان یې مات کړ وتښتېدل، د جراح خلکو دغه تښتېدلي زندانیان ونیول او وې وژل، یوازي ابو محمد سفیاني له زندانه ونه وت، مروان بن محمد چي له "نعاب" څخه ماتي خوړلې راستون سو ابو محمد سفیاني یې آزاد کړ، امام ابراهیم بن محمد د خپل قید په وخت کي وصیت کړی ؤ، چي ترما وروسته به زما پر ځای زما ورور عبدالله بن محمد په ابو العباس سفاح مشهور مشر وي، ورسره یې دا هم وصیت کړی ؤ، چي ابو العباس سفاح به په بلقاء کي نه اوسېږي، بلکې کوفې ته به ځي او هلته به هستوګنه غوره کوي، په دې ډول عبدالله بن سفاح له خپلي کورنۍ سره کوفې ته ولاړ او هلته مېشت سو، امام ابراهیم تر خپلو نیول کېدو دمخه امر کړی ؤ چي ابو مسلم خراساني خپل مشر او قوماندان وګڼي او پر امرو یې عمل وکړئ، له دې وروسته یې قحطبه بن شبیب ته یوه توره ورېښمینه پرده ورکړې او ابو مسلم ته یې لېږلې ؤ، چي دغه بیرغ پورته کړی او په خراسان کي راپورته سه او هیوادونه ونیسه.

ابو مسلم له ١٣٠هـ ق کال څخه واخله تر ١٣١هـ ق کل پوري ټول خراسان ونیوی، تردې وروسته د عبدالله مشهور په ابو العباس سفاح د خلافت بیعت وسو، د دغه خبر له اورېدو سره مروان محمد د حران څخه د یو سل شل زره پوځ سره د کوفې په لور راوښوځېدی، په لاره کي د یې د ابو العباس سفاح تره عبدالله بن علي سره د "زاب" رود پر غاړه جګړه ونښته، د مروان بن محمد پوځ که جګړه کول غوښتلای نو په ډېره آسانۍ سره یې د عبدالله بن علي لښکر ته ماتې ورکولای سوه، د جنګ په دغه ډګر کي په داسي حال کي چي د مروان پلویانو د عبدالله بن علي پوځ زیاتره برخي ته ماتي ورکړې وه او تېښتي ته یې مجبور کړي وو او د مروان په سوبه کي د شک هیڅ ځای پاته نه ؤ، د مروان د پوځ زیاتره برخو د حملې کولو او وړاندي تللو څخه انکار وکړ، تابه ویل چي هغوی مروان ته ماته ورکول غوښتل، عبدالله بن علي چي خپل ځان د ماتې په حال کي ولیدی، د خپل سر په بیعه

يې له خپلو خاصو ملګرو سره پر مروان حمله وکړه، خو د مروان لښکرو کي يو قوماندان هم د هغه مقابلې ته را ونه وت، مروان هغوی ته د انعام او اکرام لالچ ورکړ، چي کله پردې هم کار ونه سو، نو ځومره خزانه چي له هغه سره وه هغه يې توله په ميدان کي راټوله کړه او وې ويل حمله وکړئ او کمزوری د ښمن و وژنئ. او دغه خزانه په خپل منځ کي و وېشئ، د مروان پوځ چي دغه حالت وليدی، د خزانې په لوټلو مشغول سول، او کومو کسانو چي تردې وخته جنګ کاوه، هغوی هم په لوټ مار کي شريک سول، مروان بن محمد چي دغه بدنظمي او ګډوډي وليدله، خپل زوی عبدالله يې ور ولېږی چي خلک له دغه ناوړه حرکت څخه منع کړي د هغه له راتګ سره ټول له ميدانه وتښتېدل، او مروان يې له څو تنه ملګرو سره يوازي پرېښود ځيني ولاړل، مروان د خپل لښکر د دغه بې وفاي له امله مجبور سو چي تېښته وکړي او موصل ته ځان ورسوي، په موصل کي خلکو مروان ته د ماتي خوړلو پېغورونه ورکړل، هلته يې او سېدل غوره ونه ګڼل او د حران په لوري ولاړ، چي د هغه وراره الثاني په يوولسمه ۱۳۲ هـ ق کال ماتي خوړلې وه، مروان په حرا کي صرف شل ورځي او سېدلی ؤ چي د عبدالله بن علي د راتګ خبر يې واورېدی، مروان د حران څخه د حمص په لوري ولاړ، کله چي عبدالله بن علي حران ته نږدې را ورسېدی، نو ابان بن يزيد بن محمد توري جامې واغوستې او د عبدالله بن علي استقبال ته را و وت او له هغه سره يې د سفاح د خلافت لپاره بيعت وکړ، عبدالله بن علي هغه ته امان ورکړ، مروان چي خمص ته ورسېدی، د هغه ځای خلکو لومړی د اطاعت څرګندونه وکړه، خو چي د مروان ملګري يې لږ وليدل، بغاوت ته يې ملا وتړله مروان حمص څخه درې ورځي وروسته روان سو، خو د حمص خلکو ځيني د مال او سامان اخيستلو اراده وکړه، مروان لومړی هغوی پوه کړل، چي کله هغوی منعه نه سول، نو مقابله يې ورسره وکړه او تېښتي ته يې اړ کړل.

له حمص څخه مروان ځان دمشق ته ورساوه، د دمشق والي د هغه د تره زوی وليد بن معاويه بن مروان بن حکم ؤ، دلته يې هم اوسېدل خوښ نه سول او وليد بن معاويه يې د امويانو د خلافت له مخالفينو سره جګړې ته وهڅاوه او د فلسطين په لور روان سو، او هلته دغې او غير سياسي ژوندانه د تېرولو په هيله هستوګن سو.

بلي خواته عبدالله بن علي په حران کي هغه زندان چي ابراهيم بن محمد پکي بندي ؤ ويجاړ کړ او د دمشق په لوري روان سو، په لاره کي د هغه ورور عبدالصمد بن علي چي سفاح له اتو زرو کسانو سره د هغه مرستي لپاره را لېږلي و راورسېدی، تردې وروسته عبدالله بن علي په قينسرين او بعلبک کي د خلکو څخه د سفاح د خلافت لپاره بيعت واخيست، او دمشق ته يې ځان ورساوه، دمشق يې کلا بند کړ تر کلابندۍ څو ورځي وروسته د روژې په پنځمه ورځ ۱۳۲ هـ ق کال د توري په زور دمشق ته ننووت او د دمشق په کوڅو کي يې د وينو رودونه وبهول، په دغه جګړه کي د دمشق حاکم وليد بن

معاويه و وژل سو، تردې فتحې او عامه وژني وروسته عبدالله بن عليتر پنځلسو ورځو په دمشق کي و اوسېدی، بيا يې د فلسطين په لور حرکت وکړ، عبدالله بن علي د خپل لښکر سره د فلسطين تر پولو رسېدلی ؤ چي د عبدالله سفاح فرمان ورته را ورسېدی، چي د مروان بن محمد په تعقيب پسې خپل ورور صالح بن علي ولېږی دغه فرمان د ذيقعدې په پيل ۱۳۲هـ ق کال کي ورته را ورسېدی، صالح بن علي له لښکر سره روان سو مروان چي ځيني خبر سو د فلسطين څخه د عريش نومي ځای په لوري ولاړ، له هغه ځايه د نيل د سيند غاړو ته ولاړ، له هغه ځايه د صيد په لوري ولاړ، صالح بن علي پرمخ ورپسې روان ؤ، پخپله يې په فسطاط کي پړاؤ وکړ او پوځي ګروپونه يې مخکي ولېږل، چي مروان تعقيب کړي، په اتفاقي ډول د صالح له ګروپونو سره مروان مخامخ سو.

د مروان سپاره لا دمخه وېرېدلي او ترېدلي وو، هغوی ورسره مقابله ونه کړه، او په تېښته ولاړل، له دغو تېښته کوونکو څخه څو تنه ونيول سول، له نيول سوو کسانو څخه يې چي پوښتنه وکړه، هغوی ورته د مروان هستوګن ځای ورپه ګوته ړک، چي د بوصير په قريه کي دېره دی، د صالح د پوځ افسر ابوعون چي دغه خبره واورېدهو نو د شپې ناڅاپي حمله کول يې پرې غوره وګڼل، ځکه چي هغه پوهېدی چي له مروان سره مقابله اسانه نه ده، له دې امله پرې د شپې ناڅاپي حمله وکړای سوه، مروان وارخطا د خپله کوره را و وت، يو سړی چي دمخه په همدې انتظار کي ناست وو، پرې د برچې وار وکړ، مروان راپرېووت او د هغه له ملګرو څخه کوم يو و ويل: افسوس چي امير المؤمنين و وژل سو، د دغه آواز له اورېدو سره ابو عون او د هغه ملګرو رامنډې کړې، په سملايس ډول يې د مروان سرپرې کړ، او ابو العباس عبدالله سفاح ته يې ولېږی.

دا د ۱۳۲هـ ق کال ذي الحجې ۲۸نېټه وه چي د اګست د مياشتي له پنځمي ۷۵۰ميلادي کال سره سمون خوري، له دې پېښي سره د امويانو خلافت پای ته ورسېدی او د عباسيانو د خلافت دوره پيل سوه، د مروان تر وژني وروسته د هغه زامن عبدالله او عبيدالله د حبشې په لور وتښتېدل، حبشام هم هغوی ته پناه ورنه کړه، عبيدالله د هغوی له لاسه و وژل سو او عبدالله فسلطين ته راغی او په پټه يې اوسېدل غوره کړ، چي بيا د مهدي د خلافت په زمانه کي د فلسطين والي ونيوی او د مهدي دربار ته يې ولېږی او هغه بندي کړ.

## د مروان بن محمد د خلافت زمانه

مروان بن محمد د امويانو وروستی خليفه دی، له دې امله په عمومي توګه د امويانو د خلافت د تباهی مسئول همدی ګڼل کېږي، خو حقيقت دا دی چي دامويانو د تباهی وسايل تر ده دمخه د نا اهله خلفاؤ په وخت کي برابر سوي وو، د مروان د خلافت زمانه يوڅه موده کم شپږ کاله ده، په دغه موده کي مروان يوه ورځ هم په کراره کښېنه ناست، هغه د خپل خلافت ټوله موده د آس پر شا تېره کړه،

د هغه د زحمت ګالني، عزم، همت او زړورتوب اندازه له دې امله ونه کړای سوه، چي د داسي یو حکومت واګي ورته سپارل سوي وې، چي په لاعلاجه ناروغۍ اخته ؤ، مروان که یو څو ورځي د مخه د خلافت پر تخت ناست وای، نو باور کېدای سو چي هغه به تر یوې اوږدې مودې پوري د امویانو سلطانت له تباهۍ او بربادۍ څخه ژغورلی ؤ، خو هغه د موجودو زیاتو ګډوډیو له امله د عباسیانو پر سازشونو بری ونه موندی، مروان کوم نابغه شخصیت هم نه ؤ، چي په کوم مرګ ته نږدې سلطنت کي یې له نوي سره روح پو کلی وای، د هغه د سلطنت ټوله موده په داخلي جنګونو او جګړو کي تېره سوه، د هغه حکومت په زمانه کي په ټول اسلامي نړۍ کي هري خواته د تورو پړکا وه، هیڅوک مطمئن نه وو، له کفارو سره د جهاد کولو شرایط برابر نه وو، د هغه د حکومت په زمانه کي چي څومره ویني د مسلمانانو د لاسه د مسلمانانو وبهیدلې د هغه پر لړ ساري میندل کېدای سي.

مروان په ۷۰ھ ق کال یا ۷۲ھ ق کال کي چي پلار یې د جزیرې والي ؤ وزېږېدی، د مروان مور د کردستان یوه پرستاوه، چي د ابراهیم اُشتر سره وه د ابرهیم اشتر له وژل کېدو وروسته محمد بن مروان له ځان سره کړ، د همدې له نس څخه مروان زېږېدلی ؤ.

### اموي خلافت ته یوه کتنه

۱: د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په وروستۍ نیمایي کي چي کومي داخلي نښتي او توطئې پېښ سوې، د هغه یوه لومړنۍ نتیجه په دې باندي پای ته ورسېدله چي د حضرت معاویه رضي الله عنه خلافت ومنل سو، او د امویانو د خلافت بنسټ کېښودل سو، د امویانو د خلافت په لومړیو کي د هلاکت او بدنصیبۍ او اسلامي نړۍ دد بدبختۍ یوه وسیله دا رامنځته سوه، چي د امویانو د خلافت بنسټ ایښودونکی امیر معاویه رضي الله عنه تر ځان وروسته خپل نااهله زوی یزید د خلافت لپاره ونوماوه، دغه د ولیعهدۍ وبا داسي پیل سوه چي تر اوسه ځیني مسلمانانو ځانونه خلاص نه کړای سول، د حضرت امیر معاویه رضي الله عنه د دغه کار په نتیجه کي هغه ښکلي او د بشري ښېګړو مجموعه اسلامي خلافت چي اسلام یې بنسټ ایښی ؤ، هغه له منځه ولاړ او ځای یې د کورنیو حکومتونو لعنت ونیوی، د اموي کورنۍ په خلفاؤ کي امیر معاویه رضي الله عنه عبدالملک بن مروان او ولید بن عبدالملک د خپلو فتوحاتو او هیواد د اداري پوهي له مخي ممتاز حیثیت لري، تر دوی وروسته حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په دغه کورنۍ کي یو ځانګړی خلیفه ؤ، د هغه خلافت د راشد خلفاؤ په څیر ؤ، څرنګه چي پر حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د الله جل جلاله او د اسلام مینه غالبه وه، له دې امله د هغه د خلافت زمانه له کوم اموي خلیفه سره تشبیه کېدای نه سي، د حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د خلافت زمانه که څه هم لنډه ده، خو ربښتیا خبره دا ده چي د هغه عدالت د هغه د خلافت زمانه بستره کړې ده، او د هر دول

ګډوډیو او ناوړه او د ملامتیا وړ افعالو سره، سره د حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د خلافت له امله اموي خلافت ته د ویاړ څخه ډک خلافت ویل کېدای سي.

تردې وروسته هشام بن عبدالملک هم یو داسې خلیفه تېر سوی دی، چې د لومړنیو درې خلیفه ګانو په فهرست کې شامل کېدای سي، د هشام بن عبدالملک تر خلافت وروسته مکمل لس کاله تېر سوي نه وو، چې د اموي خلافت پېرتمین قصر راپرېوت او له خاورو سره برابر سو، او بنسټونه یې هم له بېخه ایستل سوي وو، د کومو پنځو اوي خلیفه ګانو یادونه چې پوتره وسوه پر هغوی سربېره نور ټول عیش خوښي، پس همته او له عقل او پوهې سره نا آشنا وو، او هیڅکله د دې وړ نه وو، چې د امویانو په څېر د یوه ستر حکومت واکوال وي، اسلام چې راغی شراب څښل او موسیقي یې له منځه یو وړه، خو دغه اموي خلفاؤ دغه ډواړه پلید او مضر شیان له سره دود کړل، چې لړۍ یې تر اوسه په مسلمانانو کې دود ده.

۲: د امویانو د جرمونو په لست کې یو جرم دا هم دی، چې اسلام د کورنیو او قبایلو تر منځ بېلتون له منځه یو وړ او ټول یې یوه ورورولي او قبیله وګرځول، امویانو د قبایلو ترمنځ بېلتون او تفریق بیا را ژوندی کړ، او د جاهلي حمیت دود یې له سره بیا رامنځته کړ، هغوی عربو ته هېر سوی درس بیا وریاد کړ، او مسلمانانو قوم قبیلې ته پر اسلام لوړاوی ورکول پیل کړل، کوم شیان چې امویانو د دویم ځل لپاره تاند کړ، هماغه شیان یې د تباهۍ او بربادۍ لامل وګرځېدی، یعني علویانو او عباسیانو همدغه کورنۍ امتیاز وسیله کړ او د امویانو د خلافت د له منځه وړلو لپاره یې شرایط برابر کړل.

۳: امویانو د خپل حکومت او خلافت په زمانه کې له ظلم، تېري او قتل عام څخه کار واخیست، د امویانو ترټولو نوماند او کارکن والي به هماغه ؤ، چې تر نورو زیات عامه وژونکی او پر خلکو مشکلات راوستونکی ؤ، امویانو د ظلم او تېري لاره مجبوراً د خپل حکومت د استحکام لپاره خپله کړې وه، خو په آخره کې همدغه تګلاره د هغوی د تباهۍ لامل سوه، ځکه چې د رعیت له زړونو څخه د هغوی سره همدردي د پرله پسې ویرې او دهشت له امله وتله.

۴: په دې کې شک نسته چې په قریش قبایلو کې د امویانو قبیله یوه نومیالۍ او سرداره قبیله وه، په دغه قبیله کې به زیاتره داسې نومیالي کسان پیدا کېدل چې په تدبر او پوهه کې به یې پر نورو لواوی درلود، او د حکومت او ادارې پر چارو به پوهېدل، دغه ځانګړنې اموي کورنۍ ته د جاهلیت په زمانه کې هم په برخه وې، خو د دې مطلب دا نه ؤ چې په اموي کورنۍ کې نالایق کسان پیدا کېدای نه سي، که په امویانو کې د ولیعهدۍ دود پیدا سوی نه وای، او د خلیفه ټاکل یې یوازې په اموي قبیله کې محدود کړي وای، یعني مسلمانانو په خپله خوښه په امویانو کې کوم لایق او پوه سړی د

خلافت لپاره ټاکلای، بیا به که څه هم ډېره ناروا او تېری ؤ، خو د اموي خلافت به دغه حال نه کېدی، او اسلامي نړۍ ته به دومره ستر زیان نه رسېدی، په دې ډول دا امکان موجود ؤ چې د اموي خلافت عمر ډېر اوږد سوی وای، او هغه شکایتونه چې له اموی خلافت څخه پیدا سول، کېدای سو چې رامنځته نه سوي نه وای.

۵: په پټو تدبیرونو، سازشونو او چالاکیو کي امویان پر نورو عربي قبایلو لایق، او د هغوی د خلافت رامنځته کېدل د همدغو شیان په مرسته وسول، خو د حیرانتیا خبره ده چې د همدغو شیانو په وسیله امویانو ماتې وخوړه، حال دا دی چې هاشمیان په دغو شیان کي د امویانو شاګردان وو، لامل یې تردې پرته بل هیڅ نه ؤ، چې د دولت او حکومت نشې هغوی غافل او جاهل کړي وو، او د ولیعهدۍ بد دود دغه غفلت او جهالت نور هم زیات کړی ؤ.

۶: پر پورته چارو سربېره په اموي خلافت کي ځیني داسي ښېګڼې هم مینډل کېږي چې ترهغوی وروسته ډېر لږې ولیدل سوې، او د هغوی جانشینانو ته په برخه نه سوې، لکه امي خلافت د راشد خلافت د وختونو فتوحات نور هم براخ کئل او له ختیزه تر لوېدیځه یې تر لیري، لیري ځایونو پوري ورسول، ختیځ کي ترچین او په لوېدیځ کي تر توري بحیرې پوري هغوی دغه فتوحات وغزول، او د خپل وخت ټوله پرمختللي نړۍ یې فتحه کړه، د همدې اموي خلیفه ګانو په زمانه کي د سمندرونو تر لیري، لیري جزایر، د افریقا شګلنو دښتو او د هندوستان تر هموارو میدانونو پوري اسلام خپور سو، او د اسلامي حکومت یو مرکز ؤ، تر امویانو وروسته مسلمانانو ته د هیوادونو فتح کولو موقع ډېره کمه په لاس ورغله، تابه ویل چې د هیوادونو نیول د امویانو له خلافت سره یو ځای پای ته ورسېدلاو تردې وروسته یوازي د حکومتونو اداري چاري پاتي وې، تر امویانو وروسته د اسلامي حکومت مرکز هم یو پاتې نه سو، بلکې څو جلا، جلا حکومتونه جوړ سول، چې د عباسیانو خلافت پکي تر ټولو ستر ؤ.

۷: د امویانو خلافت په زمانه کي عربو د یو فاتح او سوبیالي قوم حیثیت درلود، عربي اخلاق، عربي ژبه، عربي تمدن، عربي دودونه، پر هر څه زورور او لوړ وو، خو تر امویانو وروسته نورو مفتوحو عجمي قومونو ته دغه مرتبه په لاس ورغله، چې هغوی پر عربو حکومت وکړي، او په سترتوب او ځانګړتیا کي د عربو سوبیالي شان ونه مني.

۸: که څه هم د امویانو په وخت کي د خوارجو، شیعه ګانو او ځیني نوري ډلې پیدا سوي وې، خو د ټولو د عقایدو او استدلال مرکز قرآن او سنت ؤ، له قرآن او سنت پرته کوم شی یې قاضي نه ګاڼه، خو وروسته بیا په مسلمانانو کي داسي ډېري ډلې پیدا سوې چې قرآن او سنت یې شاته وغورځول، او د خپلو پیرانو، مرستندویانو، امامانو او د خپلو ډلو علماؤ د ویناؤ او اجتهاد پیروي یې کوله، همدا

لامل ؤ چي د امویانو د خلافت په زمانه کي د مسلمانانو تړوله پاملرنه د قرآن او سنت په لور وه، تردې وروسته مسلمانانو له قرآن شریف سره د بې اعتنایی او غفلت رویه پیل کړه، او دغه بدبختی تر ددې حده پر مختګ وکړ، چي د اوسني وخت یو واعظ او فارغ التحصیل عالم او مولوي دا هم ضروري نه ګڼي چي قرآن کریم له تدبر او پوهي سره ولولي.

۹: په راشده خلافت کي خلکو خپل ستر بریالیتوب دا ګاڼه، چي د شرک او ګمراهی څخه نجات ومومي او الهی بنده ګی ته پاملرنه وکړي او سلام دد خلکو د ژوندانه دستورالعمل وګرځي، دنیاوي مال او دولت او پرتم او دبدبې د هغوی پهنظر کي هیڅ اهمیت نه درلود، خو په اموي خلافت کي مال او دولت او پرتم او دبدبه بریالیتوب وګڼل سوه، او د بیت المال پیسې به د هغو خلکو لپاره زیاتي لګول کېدې چي د حکومت د تقویې لپاره ګټور ثابتېدل، امویانو چي له کومو خلکو څخه د مرستي هیله نه لرله او یا د کومو خلکو خوښ ساتل چي هغوی ضروري نه ګڼل، هوی ته یې هیڅ پاملرنه نه کوله او هغوی ته خپل حقوق نه ورکول کېدل، دغه بد دود په وروستیو خلافتونو کي نور هم پرمختګ وکړ، له دې امله په مسلمانانو کي خود غرضي او خپل منځي دښمني نوره هم زیاته سوه.

۱۰: د اسلام په لومړنیو وختونو کي د مسلمانانو ژوندون ډېر ساده او غوښتنې یې ډېري کمي وې، د امویانو په خلافت کي د عیش او آرارم د وسایلو کارول پیل سول، او هغه سپاهیانه انداز چیدمخه ویاړ ګڼل کېدی، په تدریج سره له منځه ولاړ، ښې جامې، اعلی کورونه او ښه خوراکونه د ژوندانه په اړتیاو کي شامل سول، او له همدې امله په مسلمانانو کي د امیر المؤمنین حضرت ابوبکرصدیق، امیرالمؤمنین حضرت عمر فاروق، حضرت خالد سیف الله او حضرت ضرارﷺ مثالونه لږ په څرګندېدو سول.

## د امویانو د رقیبانو هڅې

د حضرت عثمانﷺ تر شهادت وروسته چي د امویانو او هاشمیانو ترمنځ کوم رقابت پیدا سوی ؤ، د هغه نتیجه څرګنده د حضرت عليﷺ تر شهادت وروسته د حضرت حسن د خلافت څخه لاس په سر کېدلو سره دا را ووتله، چي امویانو پر هاشمیانو بری تر لاسه کړ، او لوبه یې وګټله، د جمل او صفین تر جنګونو او د خوارجو له فتنو وروسته خلافت د امویانو لاس ته ورتلل او د بني هاشو یوه داسي ناکامي وه، چي هغوی د خلافت د لاسته راوړلو لپاره خپلي توورري پښې احساس کړي وې، او ژر د قوت د استعمال لپاره تیارېدلای نه سول، خو له حضرت امیر معاویه ﷺ وروسته د یزید خلیفه کېدل او د ولیعهدی ناوړه دود راپیدا کېدل د امویانو لپاره ډېر ضررناک وو، له همدې امله حضرت

حسین ﷺ چي له کوم زړور توب څخه کار واخیست او د خپلو همدردانو پر پندونو یې عمل ونه کړ، له دې امله د کربلا پېښه رامنځته سوه.

د امیر معاویه ﷺ کمزوري وارث یزید او د یزید بدکاریو والیانو ابن زیاد خو د هاشمیانو خوصلې تر یوې مودې خاموشۍ ته اړ کړې، خو له دې سره یې د امویانو مجنوبیت ته په خلکو کي زیان ورساوه او خلک یې د امویانو په مخالفت کي زړور کړل، چي په نتیجه کښې یې د حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ پېښه منځته راغله، د حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ پېښه چي کله منځته راغله نو د اموي حکومت تاجداریو ځواکمن سړی ؤ، هغه په ډېره ښه په وجه هغه د حکومت کمزوري ډېره ژر لیري کړه، نه یوازي دا چي اقتدار یې پرخپل حال کړ، بلکې هغه تر پخوا زیات خلک تر تاثیر لاندې راوستل او ښه یې وېرول، چي بیا نو د هاشمیانو لپاره د توري په وسیله د قدرت او قوت څرګندول ناممکن سول، هغوی د خپل انتقام په جذبه سړولو کښې یوه بله لاره غوره کړه او د هغو لارو چارو څخه یې ګټه واخیسته چي هغوی د عبدالله بن سبا او نورو څخه په خپلو سترګو لیدلي وې، د څه له امله چي هغوی په صفین او اذرج کښې ناکام سوي وو، په هاشمیانو کي دوه کورنۍ د حضرت علي ﷺ او عباس ﷺ د مشرانو په حیث منل کېدې، حضرت علي ﷺ د آنحضرت ﷺ د تره زوی او د هغه زوم ؤ، او حضرت عباس ﷺ د هغه تره ؤ، دغه دواړه کورنۍ په نبوي اهل بیتو کي شمېرل کېدې او له دې امله د هغوی سیادت او سترتوب هر چا منلی، څرنګه چي حضرت علي کرم الله وجهه په مستقیم ډول له امویانو سره د مقابلې مصیبتونه وزغمل، له دې امله د علویانو احساسات د عباسیانو په نسبت د امویانو پر خلاف زیات وو، د حضرت امام حسین ﷺ د شهادت له امله د علویان زیات احساساتي وو، او هغوی د بدلې اخیستلو زیات کوښښونه کول، علویان دوه ډلي وو، یوه هغه چي د حضرت حسین ﷺ اولاده یې زیاته د خلافت حقدار ګڼله او بله ډله هغه وه چي محمد الحنیفه یې تر نورو زیات د خلافت حقدار ګاڼه، درېیمه ډله د عباسیانو وه، تر ټولو زیاته ځواکمنه ډله د فاطمیانو یا حسینیانو وه، ځکه چي د کربلا د پېښي له امله خلکو د حضرت حسین ﷺ له اولادېد سره زیاته همدردي لرله، بله دا چي حضرت فاطمه الزهرا ﷺ د اولادې له امله د هغوی زیات درناوی کېدی.

تر دوی وروسته دیمه ډله د محمد الحنیفه وه، ترده وروسته درېیمه ډله د عباسیانو وه، وروسته بیا فاطمیان هم دوه ډلي سول، یوه هغه ډله چي د یزید بن علي بن حسین ﷺ پلویان وو، هغوی ته یې "زیدي" ویل، بله ډله د فاطمیاو هغه وه چي له اسماعیل بن جعفر صادق سره یې بیعت کړی ؤ، هغوی په اسماعیلي ډلې مشهور سول، پورته درې واړه ډلې د امویانو مخالفي او درې واړه په ګډه د اهلبیت پلویاني ګڼل کېدې، د زید بن علي بن حسین او د هغه د زوی یحیی د وژل کېدو حالات مو دمخه ولوستل، د محمد بن الحنیفه او کوفه کې د مختار د چارو بیان مو هم لوستلی دی، علویانو ته

چي کله لږ موقع په لاس ورغله هغوی د امویانو پر خلاف بغاوت کښبي څنډ ونه کړ، خو زیاتره ناکام پاتې سول، د علویانو د دغو چارو او ناکامیو څخه به عباسیانو پند اخیست او هغوی د امویانو پر خلافت خپل کوښښونه ډېر په احتیاط او زغم سره پرمخ بېول، دغو درې واړو ډلو د خپل ځان لپاره یوه لاره غوره کړه او هغه دا چي په پټه خلک له ځان سره همفکري کړي، او په خفیه ډول دخلکو څخه بیعت واخلي، ان تردې چي د امویانو پر خلاف د جنګ جګړې وړ ځواک را جمع کړل سي، د دغه هدف ترلاسه کولو لپاره د هغوی خپل نماینده ګان خپاره کړل، چي په ډېر پټ ډول به یې د اهلبیتو د محبت وعظ کاوه، او د امویانو د حکومت د عیبونو او نقایصو څخه به یې وګړي خبرول، او په اهلبیتو کي به یې د خلافت حق ثابتاوه، دغه پټ نشراتي کار په ډېر احتیاط، صبر او زغم سره پیل کړای سو، پیل یې د عبدالملک بن مروان له زمانې څخه سوی ؤو او درې سرې ډلې د یو له بل فعالیتونو څخه خبري وې، خو څرنګه چي د درې سرو یو دښمن ؤ، لهذې امله د دې درې واړه په منځ کي کومه دښمني نه وه، او د یو بل رازونو پټ ساتلو کوښښ یې کاوه، که څه هم د هر یوه نماینده ګان جلا جلا وو، خو د تبیلغ لپاره هغوی ته د داسي الفاظو د کارولو ټینګار سوی ؤ، چي له بلي ډلې سره یې تصادم او ټکر نه پیښبدی، لکه د دې پر ځای چي د محمد الحنیفه یا امام زین العابدین او یا د حضرت عباس فضایل یې بیان کړي وای، یوازې د اهل بیت لفظ یې استعمالاوه،او د اهل بیت د فضیلت په بیانولو سره د هغوی د خلافت حقدار ګڼلو او ثابتولو کوښښ یې کاوه، او د اهل بیت د فضیلت په بیانولو سره د هغوی دخلافت حقدار ګڼلو او ثابتولو کوښښ یې کاوه، یوازې دا نه چي له یوه بل سره به یې مخالفت نه کاوه، بلکې د امویانو د مخالفت په جوش کي یې له خوارجو سره مرسته او همدردي روا ګڼله، ځکه چي خوارجو هم له پیله امویانو ته کافر ویل او د هغوی پر خلاف هڅو کښبي به مشغول وو، حال دا دی چي خوارج لکه څنګه چي: د امویانو مخالف وو، همداسي د حضرت علي او د هغه د اولادې مخالف هم وو، د دغو پټو تبلیغاتو په کار کښبي له فاطمیانو څخه څو ځله د چټکتیا سهوه وسوه، او هغوی په ښه توګه دغه کار ترسره نه کړای سو، په همدې خاطر به اموي خلیفه ګان د فاطمیانو له چارو څخه خبرېدل او د هغوی د مخنیوي لپاره به یې هم اقدام کاوه، خو د عباسیانو له فعالیتونو څخه ترپای پوري امویان خبر نه سول، او له همدې امله عباسیانو د علویانو په پیروي نه کولو کي بریالیتوب ترلاسه کړ.

عباسیانو پر پورته کړنلاره غوره کولو سربېره یوه دا هم غوره کړه، چي خپل مرکز یې په مدینه، مکه، کوفه، بصره، دمشق او بل یو لوی ښار کي هم ونه ټاکه، بلکې یو ډېر ورک نومي ځای حمیمه چي د امویانو له خوا وربخښل سوې مځکي وې او د دمشق او مدینې ترمنځ واقع وې، سره له دې چي دمشق ته نږدې خو د اموی خلفاؤ او د والیانو پاملرنه ورته نه وه، دغسي ځای "حمیمه"

عباسیانو د خپلو فعالیتونو مرکز وټاکه، د علویانو هڅې او کوښښونه به بیا ځلې څرګندېدل او رسوا کېدل، له دې امله هغوی بیا څو ځلې و وژل سول، خو بنو عباس له دغه ډول زیانونو څخه په امن کښې وو، او د هغوی د فعالیتونو پرمختګ په خپل حال روان ؤ، د فعالیتونو پرمختګ کې یو ستر ځواک ځکه پیدا سو، چې د محمد بن الحنیفه ډله په مکمل ډول له عباسیانو سره یو ځای سوه یعني ابو هاشم بن محمد خپل ټول حقوق د مړینې پر وخت په حمیمه کې محمد بن علي عباسي ته وسپارل، او هغو خلکو ته یې چې د ابو هاشم د خلافت لپاره یې کوښښ کاوه په ټینګه نصیحتو کړ، چې په ګانده کې د محمد بن علي تر فرمان لاندې د امویانو پر خلاف خپلو کوښښونو ته ادامه ورکړي، محمد بن علي د خپل مشر په توګه ومنئ، د علویانو یوه زوروره ډله چې کله له عباسیانو سره یو ځای سوه، نو عباسیانو تر پخوا لا زیات چټک فعالیتونه پیل کړل، او تقریباً د اموي خلافت پر خلاف د پټو هڅو یو ډېر ځواکمن قوت د عباسیانو لاسو ته ورغی، محمد بن علي عاسي د دغه تحریک مشر ؤ، کله چې هغه په ۱۲۴هـ ق کال کې وفات سو، نو د هغه زوی امام ابراهیم یې پر ځای وټاکل سو، امام ابراهیم دغه تحریک تر پخوا لا زیات منظم او پراخه کړ او د هرې سیمې لپاره یې یو موزون بلونکی وټاکه، او له خورا نظم او ترتیب سره یې په عراق، خراسان، فارس، شام، حجاز او د اسلامي هیواد په نورو ایالتونو کې د خپل تحریک جال خپور کړ، د امام ابراهیم د نېک بختۍ له امله یو داسې سړی په لاس ورغی، چې هغه د دغه تحریک د کامیابۍ په لور بېولو ذمه پر خپله غاړه واخیسته، هغه سړی ابو مسلم خراساني وو.

ابو مسلم خراسان د امام ابراهیم له لوري د عراق او خراسان د ټولو تحریکي داعیانو مشر وټاکل سوی ؤ، او امام ابراهیم ورته امر کړی ؤ چې د هغه تر لاس لاندې کار وکړي، او هر امر یې ومني، امام ابراهیم به له ابو مسلم سرهر د لیک رالیک لړۍ هم جاري ساتله او هغه به یې د خپل پروګرام څخه خبراوه، په دې کار کې ګټه دا وه چې امام ابراهیم به د بل هر نماینده سره د رابطې نیولو اړتیا نه احساسوله، کله چې د امام ابراهیم تر وفات وروسته د هغه ورور عبدالله سفاح د عباسي تحریک مشر وټاکل سو، چې د امام ابراهیم په څیر پوه او هوښیار انسان ؤ او د ابو مسلم د پوهې او ځواک له امله دغه تحریک خپل وروستي نتایج د ورکولو په حال کې وو، ابو مسلم ژر، ژر په خراسان کې د قوت او ځواک د لاسته راوړلو کوښښونه پیل کړل، د امام ابراهیم نیول کېدل او امویان د عباسیانو له تحریک څخه په داسې وخت کې خبر سول چې ابو مسلم په خراسان کې پوره ځواک تر لاسه کړی ؤ او د دغه تحریک د رسوا کېدلو مناسب وخت را رسېدلی ؤ، په همدې خاطر عباسیانو له کوم ستر زیان سره مخامخ نه سول.

کله چي ابو مسلم د امام ابراهیم تر وفات وروسته په خراسان کي د واک او اقتدار د څښتن کېدو په حال کي ؤ او د اموي خلافت د تباهي نخښې په څرګندېدو وې، نو د عباسیانو او علویانو پلویانو او د هغوی په تحریک کي برخه اخیستونکو خپل خاصو خاص غړي د ذي الحجې په میاشت ۱۰۳ هـ ق کال کي په یو داسي حال کي چي هغوی د حج لپاره مکې معظمې ته راغلي وو، په یوه کور کي راټول کړل او دغه مسئله یې ورته وړاندي کړه، چي د امویانو خلافت ډېر ژر له منځه تلونکی او د هغوی وروستی هڅي ډېري ژر د بریالي کېدو په حال کي دي، په دې خاطر باید له اوس څخه پرېکړه وکړای سي چي څوک به خلیفه ټاکل کېږي، په دغه مجلس کي د ابوالعباس عبدالله سفاح ورور ابو جعفر منصور له څنډه پرته و ویل چي: د حضرت علي له اولادې څخه دي څوک د خلیفه په حیث وټاکل سي، د مجلس حاضرینو دغه خبره خوښه کړه، او ټولو په یوه اتفاق محمد بن عبد الله بن حسن چي په "نفس ذکیه" سره مشهور ؤ وټاکه، دا ډېر نازک وخت ؤ ځکه چي د امویانو د حکومت ګډوډلو او په خراسان کي د ابو مسلم د واک په ترلاسه کولو د علي او عباس پلویانو ته ټولو په ګډه کار کاوه، او د یوه مشترکه ځواک په حیث یې چاري پرمخ بېولې، که په دغه غونډه کي د عباسیانو او علویانو ترمنځ اختلاف پیدا سوی وای، نو له مکې څخه واخله د خراسان تر اخري پولي پوري به د اختلاف یوه څپه له داسي چټکتیا سره خپره سوې وای، چي بیا به یې د مخنیوی امکان نه وو، او په اموي خلافت کي به چي د مړیني په حال کي ؤ یو نوی روح پو کل سوی وای، خو د ابو جعفر منصور پوهي او هوښیارتیا دغه مهال ستر کار وکړ او د علي پلویان تر پخوا زیات په جوش او جذبه سره خپلو چارو کي مشغول سول او د هغوی دغه ټولي هڅي د عباسیانو لپاره ډېري ګټوري ثابتي سوې.

## ابو مسلم خراساني

د ابو مسلم خراساني نوم ابراهیم بن عثمان بن بشار او ایرانی نژاد ؤ، مشهوره ده چي د بزرجمهر له اولادې څخه ؤ، په اصفهان کي زېږېدلی ؤ، مور پلار یې کوفې سره نږدې یوه کلي ته راغلل، هستوګنه یې غوره کړه، کله چي د ابو مسلم پلار عثمان مړسو، د ابو مسلم عمر اوه کاله ؤ، د هغه پلار د مړیني پر وخت وصیت کړی ؤ، چي عیسیٰ بن موسیٰ سراج دې د زوی پالنه وکړي، عیسیٰ ابو مسلم له ځان سره کوفې ته را ووست، ابو مسلم له عیسیٰ څخه د آسونو زینونو ګنډلو کار زده کاوه، او له همدغه سره په کوفه کي اوسېدی، عیسیٰ بن موسیٰ به خپل زینونه د خرڅلاو لپاره موصل، جزیرې او خراسان ته وړل، له دې امله به تل په سفر کي و او د هر ډول خلکو سره یې مخه وه، د عیسیٰ بن موسیٰ په باب اموي حاکمانو ته شک پید اسو چي دا هم د عباسیانو او علویانو نماینده دی، همدا ډول د هغه د کورنۍ پر نورو غړو دغه ول ګومان وکړای سو، چي په نتیجه کي یې د کوفې والي

یوسف بن عمر عیسیٰ بن موسیٰ، د هغه د تره زوی ادریس بن معقل او د دوی دواړو تره عاصم بن یونس عجملي ونیول او بندیان یې کړل، په همدغه زندان کې د خالد قسیري نیول سوی ملګري هم بندیان وو.

ابو مسلم به د عیسیٰ بن موسیٰ په خاطر زیاتره زندان ته ورته، چې زیاتره پکې هغه کسان بندیان وو چې له امویانو یې کرکه لرله، او یا یې د بندي کېدو له امله ځیني کرکه پیدا سوې وه، په هغوی کې ځیني کسان په ربښتیا سره داسي هم وو، چې یا د عباسیانو او یا د علوویانو نماینده ګان وو، د هغوی خبري چې کله ابومسلم واورېدې ډېر اغېز پرې وسو او ډېر ژر د هغو خلکو پلوي او د هغوی باوري ترلاسه کړ، په اتفاقي ډول قحطبه بن شبیب چې د امام ابراهیم له لوري یې په خراسان کې کار کاوه او خلکو ته یې د عباسي خلافت لپاره بلنه ورکوله، له خراسان څخه د حمیمه په لور تلی، په لاره په کوفه کې د دغو بندیانو لیدلو ته هم ورغی، او زندان کې هغه ته معلومه سوه، چې د عیسیٰ، عاصم او نور نوکر ابومسلم ډېر هوښیار او باتدبیره ځوان دی، قحطبه له عیسیٰ څخه ابو مسلم وغوښت او له ځان سره یې حمیمه ته بوتلی، هلته یې په حمیمه کې ابراهیم ته وروپېژانده امام ابراهیم د ابومسلم څخه پوښتنه وکړه، چې ستا نوم څه دی؟ ابو مسلم و ویل زما نوم ابراهیم بن عثمان بن بشار دی، امام ابراهیم ورته و ویل نه! ستا نوم عبدالرحمن دی، پهدې ډول له هماغه ورځي څخه د ابومسلم نوم عبدالرحمن سو، بیا امام ابراهیم د هغه نوم ابومسلم کښېښود او د قحطبه بن شبیب څخه یې وغوښته.

یو څو ورځي ابو مسلم له امام ابراهیم سره و ایسېدی، او هغه په ډېر ښه شان د ابومسلم د فطرت او استعداد مطالعه وکړه، بیا یې دخپل یو مشهور نقیب ابونجم عمران بن اسماعیل د لور سره د هغه نکاح وکړه، ابونجم عمران بن اسماعیل هغو کسانو څخه ؤ چې اسلامي خلافت یې د علي کرم الله وجهه اولادې ته ورکول غوښتل، له دغه نکاح څخه دا کټه خیستل هدف وو، چې ابومسلم د علي د پلویانو ملاتړ ترلاسه کړي او د هغه قوت کمزورتیا ته پرې نږدي، تردې انتظام او اهتمام وروسته یې ابو مسلم د خراسان په لور واستاوه او ټولو بلونکو او نماینده ګانو ته یې خبر ورکړ، چې موږ ابومسلم د ټول خراسان د چارو د ناظم په توګه ټاکلی دی، ټول باید د بنو هاشمو په لور بلنه کې د هغه د اوامرو منښه وکړي، د خراسان مشهور نماینده ګان چې محمد بن علي عباسي یعني امام ابراهیم له وختو یې په خراسان کې د عباسیانو د خلافت لپاره کار کاوه، دغه کسان وو (سلیمان بن کثیر، مالک بن هیشم، زیاد بن صالح، طلحه بن زرق، عمربن اعیسین، دغه پنځه واړه له خزاعه قبیلې څخه وو، قحطبه بن شبیب بن خالد بن سعدان له طی قبیلې سره اړیکي لرلې، او عیینیه موسیٰ بن کعب، لابند بن قریط، قاسم بن مجاشع او اسلم بن سلام څلور سره له بنو تمیم څخه وو، ابو داؤد خالد بن ابراهیم

شیباني، ابوعلي هروي همده ته یې شبل بن طهمان هم وایه، ابو النجم عمران اسمعیل چې کله ابو مسلم خراسان ته ورساوه، نو سلیمان بن کثیر هغه د عمر د کموالي له امله بیرته را ولېږی، هغوی ټول د پاخه عمر تجربه کار سړي وو، هغوی یو ځوان هلک د خپلو پټو کارونو او رازونو مشر او امر په حیث منل د مصحلت پر خلافت وګڼل.

کوم وخت چې ابو مسلم خراسان ته رسېدلی ؤ، هغه مهال ابو داؤد خالد بن ابراهیم شیباني د کوم ځانګړي ضرورت په خاطر د ماوراء النهر په لور تللی ؤ، هغه چې کله مروې ته ورسېد خبر سو چې ابو مسلم هغوی بیرته استولي دي، چې له هغه څخه هیڅ کار نه سي کېدای، او هغه ټول هغه وګړي به چې بلنه ورکول کېږي په مصیبت کي اخته کړي، ابو داؤد ټول نماینده ګان راټول کړل او ورته وې ویل چي: آنحضرت ﷺ ته الله ﷻ د لومړنیو او وروستنیو چارو علم ورکړی، دی، د هغه اولاده دغه علم وارثان دي، او د هغه اهل بیت د علوموګان او د هغه وارثان دي، ایا تاسي په دې کي شک لرئ، حاضرینو و ویل نه! ابو داؤد و ویل: نو بیا تاسي ولي شک او ګومان ته په خپل ایمان کي ځای ورکړي دي، هغه سړی "ابومسلم" به امام له یو څه سوچ او فکر او د هغه استعداد تر معلومولو وروسته ستاسي په لور رالېږلی وي، د دغه وینا په اورېدلو سره هغوی ټولو د ابو مسلم په بیرته لېږلو افسوس وکړ، په هماغه وخت یې سړی واستاوه، چې ابومسلم له لاري څخه راستون کړي، ټولو ابو مسلم د خپلو چارو سرپرست وټاکه، او په خوښه سره یې د هغه اطاعت پیل کړ، څرنګه چې سلیمان بن کثیر لومړی هغه بیرته لېږلی ؤ، له دې امله ابو مسلم له هغه یو څه زړه بدی ؤ، ابو مسلم خپل نماینده ګان د خراسان په ټولو ښارونو کي خپاره کړل، او په ټول خراسان کي یې دغه تحریک ته پرمختګ ورکړ.

په ۱۲۹هـ ق کال امام ابراهیم ابو مسلم ته لیک واستاوه، چې سږ کال د حج په ورځو کي راسره او زما سره وګوره، ترڅو د دعوت او تبلیغ په باب مناسب احکام درکړای سي، دا یې هم ورته ولیکل چې قحطبه بن شبیب هم له ځان سره راوله، او څومره مال او سامان چې له هغه سره جمع سوی وي هغه هم له ځان سره راوړه، دلته د دې خبري یادونه ضروري ښکاري چې: د دغسي پټو تحریکونو لپاره د حج ورځي غوره موقع وه، د حج په ورځو کي به مکې معظمې ته د دنیا له هر ګوټ څخه خلک راتلل، هیچا به د چا پر راتګ څه ګومان نه کاوه، او سازشکارو خلکو په اسانۍ سره یو تر بله خبري تري او ناسته پاسته کولای سوه، او د حج موقع به یې هیڅکله له لاسه نه ورکوله، په دې ډول ابو مسلم له نورو نماینده ګانو او قحطبه بن شبیب سره د امام د لیدلو په خاطر د مکې په لور را روان سو، قوس نومي ځای ته چې را ورسېدل، نو د امام لیک ورته راغی چې ته په سملاسي ډول خراسان ته ستون سه، او که د خراسان څخه را روان سوی نه یې، نو همالته اوسېږه او اوس خپله بلنه پټه مه ساته، بلکې

په څرګنده بلنه پیل کړه، او د کومو خلکو څخه چي دي بیعت اخیستی وي هغه راټول کړه او دد خپل قوت کارول پیل کړه، د دغه لیک د لوستلو سره ابو مسلم د خراسان په لور ستون سو، او قحطبه بن شبیب د مال او سامان سره د امام ابراهیم په لوري ولاړ، قحطبه د جوزجان لاره غوره کړه، د جوزجان شاوخوا سیمو ته چي ورسېد، خالد بن برمک او ابو عون یې راوغوښتل دغه وګړي له مال او سامان سره ورته راغلل، قحطبه دغه مال او سامان هم له ځان سره واخیست او د امام ابرهیم په لوري روان سو.

کله چي ابو مسلم په خرسان کي د ښکاره بلني او قوت څرګندوني اجازه ورکړل سوه، دا هغه وخت وو چي په خراسان کي د کرماني او نصر بن سیار د نښتو لړۍ روانه وه، لکه څنګه چي دمخه و ویل سول، ابو مسلم د خپل تحریک ملګري راټول کړل، او له هغوی سره یې د کرماني او نصر ترمنځ ځای کي خپلي خیمې و وهلې، بالاخره کرماني و وژل سو او د هغه زوی علي بن کرماني د ابو مسلم سره یو ځای سو، ابو مسلم نصر د مروې څخه وشاړه او مروه یې ونیوله، خو په مروه کي د څو ورځي هستوګني وروسته د ماحوان په لوري ولاړ، نصربن سیار په دمشق کي خلیفه مروان بن محمدته د مرستي لیک لېږلی ؤ، مروان بن محمدد په هغو ورځو کي ضحاک بن قیس خارجي سره په جګړو اخته ؤ، له دې امله یې نصر ته څه مرسته ونه لېږلای سوه، په کومو ورځو کي چي د نصر لیک مروان بن محمد ته رسېدلی وو، په هماغه ورحو کي د امام ابراهیم یو لیک چي د ابو مسلم په نامه یې لیکلی وو، (چي په هغه کي یې لیکلي وو چي په خراسان کي د عربي ژبي ویوونکي ژوندي مه پرېږده او نصر او کرماني دواړه و وژنه) نیول سوی وو، او مروان الحمار ته وروړل سوی وو، همدغه لومړی ځل ؤ چي امویان د عباسیانو له تحریک څخه خبر سول، مروان د بلقاء سیمي والي ته ولیکل، چي حمیمه ته ولاړ سه او په حمیمه کي امام ابراهیم ونیسه او رایې وله، په دې ډول امام ابراهیم بندي او مروان بن محمدته راوستل سو، مروان هغه بندي کړ، لکه څنګه چي دمخه و یل سوي دي.

کله چي ابو مسلم په خراسان کي ښکاره بلنه پیل کړه، نو د خراسان وګړي ډلې، ډلې له هغه سره یو ځی سول.

د ۱۳۰ هـ ق کال له پیل کېدو سره ابو مسلم د کتاب الله او سنت رسول الله د پیروي او د نبوي اهل بیتو د اطاعت او منني بیعت اخیستل له خلکو څخه پیل کړل او کرماني شیبان خارجي او نصر بن سیار درې سره د ابو مسلم په دغه بیعت اخیستلو خوښ نه وو، خو هغوی په خپل منځي جنګونو کي دومره مصروف وو، چي د ابو مسلم یې هیڅ ونه کړای سول، د کرماني تر وژل کېدو وروسته د هغه زوی علي بن کرماني د خپل پلار د ډلي مشر ؤ، له بلي خوا څخه ابو مسلم هم پوره ځواک ترلاسه کړی

ؤ، نصر بن سيار او شيبان خارجي هم همدومره قوت درلود، اوس په خراسان کي همدغه طلور طاقتونه موجود وو.
ابو مسلم د شيبان خارجي خپل لوري ته مايل کول غوښتل او علي بن کرماني يې هغه ته د ورېږلو لپاره وهڅاوه، علي بن کرماني شيبان خارجي ته ورغی، نصر بن سيار له شيبان خارجي سره سوله کول غوښتل، چي خپل ځان مطمئين کړي او له هغه له ابو مسلم سره ونښلوي، خو ابو مسلم د علي بن کرماني په وسيله داسي کوښښ وکړ، چي د دغو دواړو ترمنځ سوله ونه سوه، کله چي د دوی دواړو ترمنځ سوله، نو ابو مسلم موقع مناسبه وليد له او نصربن نعيم يې له يو ډلې خلکو سره د هرات په لور واستاوه، نصربن نعيم هرات ته ورسېدی او هرات يې د غفلت په حال کي ونيوی او د نصرر بن سيار حاکم عيسیٰ بن عقيل بن معقل يې د هرات څخه وشاړه، يحيٰی بن نعيم بن هبيره شيباني چي خبر سو ابن کرماني ته راغی او ورته وې ويل چي: له نصر سره سوله وکړه، که تا سوله وکړه، نو ابو مسلم به په سملاسي ډول صر بن سيار سره مقابلې ته تيار سي، او له تا سره به هيڅ کار نه لري، او که ته له نصر سره سول ونه کړې نو ابو مسلم به له نصر سره سوله وکړي او له تاسره به مقابلې ته تيار سي، شيباني په سملاسي ډول نصر ته وليکل چي: موږ له تاسي سره سوله کول غواړو، نصر په سملاسي ډول سولې ته تيار سو، ځکه چي د هغه دمخه دغه غوښتنه وه.
ابو مسلم په سملاسي ډول علي بن کرماني ته (چي د شيبان ملگری ؤ) و ويل چي: نصر بن سيار ستا د پلار قاتل دی، علي بن کرماني چي واورېدل، له شيبان خارجي څخه جدا سو، او له هغه سره يې د جگړو لړی پيل کړه، ابو مسلم د ابن کرماني مرسته وکړه، له بلي خوا څخه نصربن سيار د شيبان خارجي د مرستي لپاره اماده گي ونيوله، دا هم عجيبه زمانه وه، څلور سره جگېدونکي ډلي مختلف الخيال او مخلف العقيدې وې، خو د وخت او شرايطو له مخي يو د بل سره ملگري سوې او د خپلي مخالفي ډلې په له منځه وړلو کي مصروفې وې، د علي ﷺ شيعان په ځانگړي توگه په خراسان کي زيات وو، هغی هم ټول له ابو مسلم سره ملگري وو.
عبدالله بن معاويه بن عبدالله بن جعفر بن ابي طالب په کوفه کي له خلکو څخه د خلافت بيعت اخيستی ؤ، خو د عبدالله بن عمر بن عبدالعزيز دزورور کېدو له امله هغه د مداين په لور تللی ؤ، له هغه سره د کوفې څخه هم يو شمېر وگړي ملگري سوي وو، بيا هغويد غرنيو سيمو په لور مخه وکړه، او چي هغه يې ونيولې نو بيا يې حلوان، قومس، اصفهان او رئ تر خپلو اک لاندي راوستل، اصفهان يې خپل مرکز وټاکه، په ۱۲۸هـ قکال کي يې شېراز ونيوی، کله چي يزيد بن عمر بن هبيره عراق د والي په توگه وټاکل سو، نو هغه د عبدالله بن معاويه د مقابلې لپاره لښکر ولېږی، له اصطخر سره نږدې جگړه وسوه، عبدالله بن معاويه ماتي وخوړه او زيات شمېر ملگير يې و وژل سول، منصور بن

جمهور د سند په لور وتښتېدی، هغه تعقیب کړای سو، خو چاته لاس ته ورنغی، د عبدالله بن معاویه په ملګرو کښې چې کوم کسان نیول سوي وو، په هغوی کې عبدالله بن علي بن عبدالله بن عباس هم ؤ، چې د کوفې والي زید بن عمر آزاد کړ، عبدالله بن معاویه وتښتېدی او د ابو مسلم خواته ورغی، ځکه چې له هغه څخه یې د مرستي هیله لرله، چې هغه د اهل بیتو پلوي وو.

خو عبدالله بن معاویه له شېراز څخه کرمان ته ولاړ او له هغه ځایه یې ځان هرات ته ورساوه، په هرات کې د ابو مسلم له خوا والي نصر بن نعیم هغه ایسار کړ او ابو مسلم ته یې د هغه د راتګ خبر ورکړ، ابو مسلم ورته لیک واستاوی چې عبدالله بن معاویه و وژنه او د هغه دواړه ورونه حسن او یزید خوشي کړه، په دې ډول نصر بن نعیم د هغه امر عملي کړ.

د ۱۳۰هـق کال د پیل کېدو سره په خراسان کې پورته یاد کړای سوي ځواکونه یو تر بله سره ونښتل، په اخره کې علي بن کرماني او ابو مسلم نصر بن سیار او شیبان خارجي ته ماتي ورکړه او مروه یې په مکمل ډول ونیوله، ابو مسلم د مروې د امارت مقام ته ولاړ له خلکو څخه یې بیعت واخیست او خطبه یې و ویله، نصر چې په مروه کې ماته وخوړه د سرحس او طوس پر لاره نیشاپور ته راغی او هستوګن سو او علي بن کرماني له ابو مسلم سره یو ځای دېره و، او د هغه هري خبري ته یې صحیح ویل، شیبان خارجي چې مروې ته نږدې د ماتي خوړلو په حال کې دېره ؤ، هغه ته ابو مسلم پیغام واستاوه چې ته هم بیعت وکړه، هغه ورته ځواب را ولېږی چې ته زما بیعت وکړه، تردې وروسته شیبان خارجي د سرخس په لوري ولاړ او د بکر بن وایل یو شمېر وګړي یې پر ځان راټول کړل، ابو مسلم چې ځیني خبر سو یو شمېر پوځ یې د سرخس په لور ولېږی، هلته جګړه پېښه سوه او شیبان خارجي و وژل سو، تردې وروسته ابو مسلم د خپلو نماینده ګانو څخه موسٰی بن کعب دا بیورد په لور او ابو داؤد خالد بن ابراهیم د بلخ په لور ولېږل، دواړه بریالي سول، ابیورد او بلخ چې کله ونیول سول، نو ابو مسلم ابو داؤد بیرته راوغوښت او یحیٰی بن نعیم یې د بلخ حاکم په حیث ور ولېږی، زیاد بن عبدالرحمن قسیري چې د اموي حکومت له خوا د بلخ حاکم ؤ، او د ابو داؤد له لاسه یې ماتي خوړلې وه او ترمذ ته تللی ؤ، له یحیٰی بن نعیم سره یې لیک رالیک وکړ او هغه یې له ځان سره همفکري کړ او مسلم بن عبدالرحمن باهلي او عیسٰی بن زرعه سلمي د تخارستان حاکمان د ماوراء النهر، بلخ او مرمذ مشران یې راټول کړل او یحیٰی بن نعیم یې د هغه له ملګرو سره له ځان سره واخیست او د ابو مسلم سره جګړې په نیت روان سول، ټوله په یو اتفاق د تورو ثادرو له څښتنانو یعني د بنو عباس له پلویان سره د جنګېدلو سوګند ونه یاد کړل، مقاتل بن حیان نبطي یې د خپل لښکر امیر وټاکه، ابو مسلم چې له دغه حالت څخه خبر سو ابو داؤد خالد یې د دویم ځل لپاره د بلخ په لور واستاوه، له بلخ څخه په لږ فاصله کې د سیند پر غاړه دواړه لښکري سره مخامخ سوې، د مقاتل بن حیان نبطي سره دویم

سرلښکر ابوسعيد قريشي ؤ، ساقه د لښکر وروستی برخي ته وايي دغه برخه يې په دې خاطر ښه قوي کړې وه چې هسي نه دښمن چل کي پرې د شا له لوري حمله وکړي، کله چې ښه زوروره جګړه پيل سوه، نو ابو سعيد قريشي هم د خپل پوځ سره د دښمن بلد کول وغوښتل، په اتفاقي ډول د ابو سعيد د پوځ بيرغ هم تور ؤ، ابو سعيد چې کله د خپل لښکر سره حرکت پيل کړ، نو د مخکو صفونو جنګياليو دا هيره کړه چې زموږ هم يو بيرغ تور ؤ، هغوی چې د ابو سعيد بيرغ وليدی، داسي يې وګڼله چې دښمن د شا له لوري پر موږ يوه زوروره حمله وکړه او د هماغو پوځ د شا له لوري بريالی را روان دی، په دې ډول له هغوی څخه هر څه هير سول، ميدان يې پرېښود وتښتېدل، زيات شمېر په دريابکي ډوب او مړه سول، زياد او يحيٰی د ترمذ په لوري ولاړلاو ابو داؤد بلخ ونيو.

تردې وروسته ابو مسلم له بلخ څخه ابو داؤد راوغوښت او د بلخ د حکومت لپاره يې نصر بن صبيح مزني وټاکه، لکه څنګه چې دمخه ويل سوي دي علي بن کرماني په مروه کي له ابو مسلم سره اوسېدی، له هغه سره يې ورور عثمان بن کرماني هم ؤ، ابو داؤد ابو مسلم ته و ويل چې: د دغو دواړو ورونو يو تربله سره جدا کول ضروري دي،ابو مسلم دغه نظر خوښ کړ او عثمان بن کرماني يې د بلخ د حاکم په حيث واستاوه، عثمان بن کرماني چې بلخ ته ورسېدی فرافضه بن ظهير يې په بلخ کي مرستيال وټاکه او پخپله له نصر بن صحيح سره مروه رود ته ولاړ، د دغه خبر په اورېدو سره مسلم بن عبدالرحمن په ترمذ کي مصريان له ځان سره ملګري کړل او پر بلخ يې حمله وکړه او د توري په زور يې ونيو.

عثمان او نصر چې ځيني خبر سول هغوی له مره رود څخه د بلخ په لوري روان سول، د مسلم ملګرو چې د دوی د راتګ خبر واورېدی د شپې شپې له بلخه وتښتېدل، عثمن له يوه لوري او نصر له بل لوي پر بلخ حمله وکړه، د نصر ملګرو يو خو له تښتېدونکيو سره هيڅ کار ونه لاره، خو عثمان بن کرماني جګړه پيل کړه او پخپله يې ماتي وخوړه وتښتېدی، او زيات شمېر ملګري يې و وژل سول، او د بلخ ښار چې د نيولو په حال کي و بيرته پاتې سو، د دغه خبر اورېدو سره ابو مسلم او ابو داؤد مشوره وکړه، ابو مسلم د نيشاپور په لور روان سو ،او ابو داؤد يو ځل بيا د بلخ لوري ته راغی، له ابو مسلم سره علي بن کرماني هم ؤ، چې په لاره کي ابو مسلم و واژه، ابو داؤد هم له مشورې سره سم بلخ ونيو، مسلم بن عبدالرحمن له بلخ څخه وتښتېدی او عثمان بن کرماني يې و واژه،په دې ډول يې د دغو دواړو ورونو اندېښنه له منځه يوو ړه.

دمخه مو ولوستل چې امام ابراهيم لومړی ابومسلم راوغوښت بيا يې بيرته منعه کړ، چې په ښرګنده دعباسيانو د خلافت لپاره بلنه پيل کړي، او د ابو مسلم پر ځای قحطبه بن شبيب ورته مال او سامان وراندي کړ، امام ابراهيم ابو مسلم ته يو بيرغ د قحطبه په لاس را ولېږی او هغه يې له مکې

څخه د خراسان په لور واستاوه، او پخپله د حميمه په لوري ولاړ، حميمه ته له راتګ سره ونيول سو او بندي سو، قحطبه هغه بيرغ ابو مسلم ته راووړ، ابو مسلم دغه بيرغ د لښکر مخکښ ګروپ ته ورکړ او قحطبه بن شبيب يې د هغه قوماندان وټاکه، او ۱۳۰هـ ق کال تر پای ته رسېدو پوري يې د خراسان زياتي برخي ونيولې او خپل دښمنان يې يو يو له منځه يوړل، ابو مسلم چي د علي بن کرماني له وژلو څخه فارغ سو مروې ته راستون سو، او قحطبه بن شبيب يې د لښکر له څو نورو قوماندانانو (ابوعون عبدالملک بن يزيد، خالد بن برمک، عثمان بن نهيک، او حازم بن خزيمه او نورو) سره د طوس په لور ولېږی، د طوس خلکو مقابله وکړه او ماتي يې وخوړه، قحطبه هغوی په ډېره بې رحمی سره و وژل، تردې وروسته قحطبه پرتميم بن نصر چي په سوزقان نومي ځای کي مېشت و د حملې لپاره تياري وکړ، تميم بن نصر له خپلو درې زره ملګرو سره و وژل سو، قحطبه چي ښار ته ننووت، عامه وژنه يې وکړه او خالد بن برمک يې د ولجه سويو مالونو د راجمعه کولو لپاره مؤظف کړ.

تردې وروسته قحطبه د نيشاپور عزم وکړ، په نيشاپور کي نصر بن سيار اوسېدی، هغه له نيشاپور څخه قومس ته وتښتېدی، په ۱۳۰هـ ق کال د روژې په مياشت کي قحطبه نيشاپور ونيو، او د شوال تر پای پوري هلته و اوسېدی، د نصر بن سيار د مرستي لپاره د کوفې والي يزيد بن عمر بن هبيره يو لښکر د نباته بن حنظله تر قوماندانی لاندي لېږلی ؤ، په قومس کي نصر بن سيار تر زياتو ورځو ټينګ نه سو، له هغه ځايه جوزجان ته ولاړ، په جوزجان کي نباته بن حنظله له نصر بن سيار سره يو ځای سو، د ذي قعدې مياشتي په پيل کي قحطبه له نيشاپور څخه د جرجان په لور ولېږی.

د قحطبه ملګرو چي کله واورېدل چي نباته بن حنظله له يو سرسامي لښکر سره جرجان ته رسېدلی دی، نو هغوی و وېرېدل، قحطبه هغوی ته يوه جذباتي وينا وکړه او ورته وې ويل چي: امام ابراهيم وړاندي ګوينه کړې ده، چي تاسي به د يوه ستر لښکر مقابله وکړی او ماتي به ورکړئ، له دې خبري سره د لښکر د خلکو زړونه راپورته سول، بالاخره جګړه ونښته، نباته بن حنظله له لس زره کسانو سره و وژل سو، قحطبه بری ترلاسه کړ، او د نباته بن حنظله سر يې پرې کړ، ابو مسلم ته يې ولېږی، دغه جګړه د ذي الحجې په مياشت ۱۳۱هـ ق کال شروع سوه او قحطبه جرجان ونيو، دېرش زره د جوزجان خلک يې و وژل، په جوزجان کي ترماتي وروسته نصر بن سيار د "حرارالرای" په لور ولاړ، د هغه ځای حاکم ابوعقيلي ؤ و يزيد بن عمر بن هبيره چي کله له حالاتو څخه خبر سو، نو يې يو ځواکمن پوځ د عطيف تر قوماندې لاندي د نصر بن سيار د مرستي لپاره راولېږی.

قحطبه له جوزجن څخه خپل زوی حسن بن قحطبه د خراز الرای په لور ولېږی، او تر شايې يو لښکر د ابو کامل او ابو القاسم محرز بن براهيم او ابو العباس مروزي تر قوماندې لاندي د حسن بن قحذبه د مرستي لپاره ور ولېږی، خو کله چي دغه وګړي د حسن لښکر ته نږدې ور ورسېدل، نو ابو الکامل د

خپلو ملګرو سره ځیني جلا او له نصر سره یو ځای سو او نصر یې د حسن د لښکر له حالاتو څخه خبر کړ، په اخره کي جګړه پېښه سوه او حسن بن قحطبه رسوا متې وخوړه، نصر د غنیمت مالونه او د سوبې زېری یزید ب عمر بن هبیره ته ولېږی، دا د محرم د میاشتي او ۱۳۱هـ ق کال پېښه ده، هلته د نصر قاصد د غنیمت مالونه او د سوبې زېری یزید بن عمر بن هبیره ته :یوور، له هغه خوا څخه پرې ابن عطیف دخپل لښکر سره راغی، په "ریٔ" نومي ځای کي دواړه سره مخامخ سول، ابن عطیف ځیني لیک او غنیمت مال واخیست او په ریٔ کي دېره سو.

نصر چي دغه خبر واورېدی سخت غمجن سو، کله چي نصر پخپله د "ریٔ" اراده وکړه، عطیف د خپل پوځ سره د همدان په لور روان سو، بیا یې همدان پرېښود او اصفهان ته ولاړ، نصر ته دوه ورځو پوري په "ریٔ" کي دېره وو، په درېیمه ورځ ناروغه سو او له "ریٔ" څخه ولېږېدی، ساوه نومي ځای ته چي ورسېدی د ربیع الاول په دولسمه ۱۳۱هـ ق کال وفات سو، ملګري یې د هغه تر وفات وروسته همدان ته ولاړی د "ریٔ" حاکم حبیب بن یزید هنشلي ؤ، د نصر له وفات وروسته چي کله قحطبه بن شبیر خپل پوځ سره د ریٔ لوري ته راغی، حبیب بن یزید او شامیان چي له هغه سره وو له مقابلې پرته یې ریٔ پرېښودی ولاړی، قحطبه ریٔ ونیوله او د "ریٔ" د خلکو مالونه او سامانونه یې ضبط کړل، له ریٔ څخه زیاتره وګړي همدان ته وتښتېدل، قحطبه له خپل زوی سره حسن له ري څخه دهمدان په لور ولېږی، خو هغو خلکو همدان پرېښود او د نهاوند په لوري ولاړل، حسن بن قحطبه چي نهاوند ته ورسېدی، نهاوند یې ډېر کلک کلابند کړ.

یزید بن عمر بن هبیره په ۱۲۹هـ ق کال خپل زوی داؤد بن یزید د عبدالله بن معاویه سره د جګړې لپاره را لېږلی ؤ او داؤد بن یزید د عبدالله بن معاویه په تعقیب پسې تر کرمانه پوري تللی ؤ، له داؤد سره عامر بن صباره هم ؤ، دوی دواړه په کرمان کي له پنځوس زره کسانو سره اوسېدل.

کله چي یزید بن عمر بن هبیره د نباته بن حنظله له وژل کېد څخه خبر سو، نو هغه داؤد او ابن صباره ته ولیکل چي: د قحطبه د مقابلې لپاره ولاړ سي، دوی دوړه له پنځوس زره پوځ سره د کرمان څخه روان سول او اصفهان ته ورسېدل، قحطبه د هغوی د مقابلې لپاره مقاتل بن حکیم کعبې وتاکه، مقاتل په "قُم" کي دېره سو، ابن صباره چي واورېدل چي حسن بن قحطبه نهاوند د محاصره کړی دی، د نهاوند د بچ کولو اراده یې وکړه، او هغه لوري ته روان سو، کله چي دواړه لښکري سره ونښتې نو د ابن قحطبه ملګرو داسي په مړانه مقابله وکړه، چي د ابن صباره لښکر ماتي وخوړه او پخپله هم و وژل سو.

دا د رجب میاشت ۱۳۱هـ ق کال پېښه ده، قحطبه د دغه سوبې زېری خپل زویحسن ته ور ولېږی، او پخپله په اصفهان کي تر شلو ورځو پاتې سو، بیا حسن ته راغی او په کلابندۍ کي ورسره شریک

سو، د نهاوند خلک تر درې میاشتو کلابند وو، په اخره کي نهاوند فتحه سو، او د نهاوند زیات شمېر اوسېدونکي و وژل سول، تردې وروسته قحطبه خپل زوی حسن د حلوان په لور واستاوه، حلوان په آسانۍ سره ونیول سو، بیا د قحطبه له خوا ابو عون بن عبدالملک بن یزید خراساني پر "زور" ښار د حملې لپاره واستاوه، د زور سیمي حاکم عثمان بن سفیان ؤ، مخکښ لښکر قوماندان یې عبدالله بن مروان بن محمد ؤ، د ابو عون او عثمان ترمنځ د ذي الحجې ترپای پوري نښتي رواني وې بیا عثمان و وژل سو، پوځ یې له ماتي سره مخامخ سو او ابو عون بن عبدالملک د موصل ښارونه ونیول.

کله چي عامر بن صباره و وژل سو، نو داؤد بن یزید خپل پلار ته وتښتېدی، داؤد بن یزید چي کله خپل پلار یزید بن عمر بن هبیره ته د دغه ماتي حال واوروه، نو د یوه ستر لشکر سره روان سو، خلیفه مروان بن محمد هم دد هغه د مرستي لپاره د حوثره بن سهیل باهلي تر قوماندې لاندي پوځ را ولېږی، یزید بن عمر او حوثره بن سهیل حلوان ته ورسېدل، قحطبه هم چي ځین خبر سو د حلوان په لور را وخوځېد، او د دجلې پر سیند د انبار لوري ته راپوري ووت، یزید بن عمر هم د کوفې په لور راستون سو او حوثره بن سهیل یې له پنځلس زره کسیز لښکر سره تر ځان د مخه د کوفې په لور را ولېږی، قحطبه له انبار څخه د محرم په اتمه ۱۳۲ هـ ق کال د فرات پر سیند پوري ووت، دغه مهال ابن هبیره د فرات د سیند پر غاړه په ۲۳ فرسنگه واټن کي دېره ؤ، ملګرو یې مشوره ورکړه چي د کوفې اراده پرېږدئ او د خراسان په لور مخه وکړئ، قحطبه به مجبوراً د کوفې اراده پرېږدي او زموږ په تعقیب پسې به راسي، یزید بن عمر بن هبیره دغه مشوره ونه منله او دجلې پر سیند د مداین په لور پوري ووت، او دواړو لښکرو د کوفې په نیت د فرات سیند په غاړو سفر کاوه، د فرات سیند په یوه گودر کي قحطبه ورپوري و وت، سخته جګړه وسوه، د یزید بن عمر بن هبیره لښکرو ماتي وخوړه، خو قحطبه بن شبیب و وژل سو، قحطبه چي کله د معن بن زایده له لاسه زخمي سو او پرېووت نو وصیت یې وکړ چي باید په کوفه کي د علي د شیعانو امارت قایم کړای سي، او ابو مسلمه دي امیر وټاکل سي، حوثره، یزید بن عمر بن هبیره او ابن نباته بن حنظله د واسط په لور وتښتېدل، د قحطبه پوځ حسن بن قحطبه خپل قوماندان وټاکه، د دغه پېښي خبر کوفې ته ورسېدی، محمد بن خالد قسیري د علي رضي الله عنه شیعان راټول کړل او د عاشورا پر شپه ۱۳۲ هـ ق کال یې بغاوت وکړ او په کوفه کي یې د امارت ودانۍ ونیوله.

له دغه پېښي څخه په خبرېدو سره حوثره له واسط څخه کوفې ته راستون سو، محمد بن خالد د امارت په ودانۍ کي محاصره سو، خو د حوثره ملګرو د عباسیانو بلنه ومنله او له هغه څخه یو یو جدا سول، حوثره بیرته د مجبوریت له مخي واسط ته ولاړ، محمد بن خالد د دغه پېښي او د کوفې د

دارالامارت د نيولو خبر ابن قحطبه ته ورکړ، حسن بن قحطبه کوفې ته راغی او محمد بن خالد يې له ځانسره واخيست او ابو سلمه ته ورغلل، ابو سلمه يې د امير په حيث وټاکه او بيعت يې ورسره وکړ، بيا يې د ابو سلمه په امر حسن بن قحطبه د ابن يزيد بن عمر ب هبيره سره د جګړې لپاره واسط ته واستاوه، او محمد بن خالد يې د کوفې حاکم وټاکه، تردې وروسته ابو سلمه حميد بن قحطبه د مداين په لور ولېږی، په اهواز کي عبدالرحمن بن عمر بن هبيره حاکم ؤ، له حميد او بسام سره د عبدالرحمان بن عمر بن هبيره جګړه ونښته، عبدالله ماتي وخوړه، د بصرې په لور وتښتېدی، په بصره کي مسلم بن قيقبه باهلي حاکم ؤ، بسام چي عبدالرحمن ته ماتي ورکړه سفيان بن معاويه بن يزيد بن مهلب يې د بصرې حاکم وټاکه، د صفري مياشت ۱۳۲ه ق کال ؤ چي جګړه پېښه سوه، او مسلم سوبه وکړه، او مسلم تر هغه وخته د بصرې واکوال ؤ، چي ترڅو ورته د يزيد بن عمر بن هبيره د وژل کېدو خبر را ورسېدی، د دغه خبر له اورېدو سره مسلم له بصرې څخه را و وت، محمد بن جعفر چي ميدان خالي وليدی بغاوت يې وکړ او بصره يې ونيوله، څو ورځي وروسته ابو مالک عبدالله بن اسيد خزاعي د ابو مسلم له لوري بصرې ته را ورسېدی، او ابو العباس سفاح دخپل خلافت تر بيعت وروسته سفيان بن معاويه د بصرې حاکم وټاکه.

د امام ابراهيم د وفات پر وخت حميمه کي د هغه د کورنۍ لاندي غړي موجود وو، ابو العباس عبدالله سفاح، ابو جعفر منصور او عبدالوهاب دوی ذرې واړه د امام ابراهيم وروڼه ؤ، او محمد بن ابراهيم، عيسٰی بن موسٰی، داؤد، عيسٰی، صالح، اسماعيل، عبدالله، عبدالصمد يې ترونه وو، امام ابراهيم د خپلو نيول کېدو دمخه خپل ورور ابوالعباس عبدالله سفاح پر خپل ځای ټاکلی ؤ او د مړيني پر وخت يې د ابو العباس سفاح لپاره وصيت کړی ؤ، چي کوفې ته دې ولاړ سي او همالته دي هستوګن سي، په دې ډول د امام ابراهيم له وصيت سره سم ابو العباس عبدالله سفاح د پورته ياد کړای سوي کسانو سره له حميمه څخه کوفې ته راغی او هستوګنه يې غوره کړه، ابو العباس چي کله کوفې ته راغی دا هغه وخت ؤ، چي په کوفه کي د ابو سلمه حکومت قايم سوی ؤ، ابو مسلمه په کوفه کي د امام ابراهيم نماينده او د کوفې په مرکز کي د عباسي خلافت د تحريک سرپرست ؤ، اوس ابو سلمه خپل ټول کوښښونه د علي ﷺ د اولادې د خلافت لپاره پيل کړی وو، قحطبه بن شبيب هم د همدغه فکر څښتن سړی ؤ، خو څرنګه چي ابو هاشم بن محمد وصيت کړی ؤ چي محمد بن علي عباسي دی هغه د ډلي ټول وګړي د خپل امام په حيث ومني له دې امله هغه د دغه وروستۍ خبري په باب کومه فيصله ونه کړای سوه؟

کله چي کوفې ته د ابو العباس د نږدې را رسېدو خبر ابو سلمه ته راغی هغه يې د علي ﷺ له شيعه ګانو سره د داستقبال په خاطر تر حمام اعين نومي ځايه پوري ورغی او ابو العباس يې د وليد بن

سعد په کر کي ډېره کړ او سبا ته يې د علي ﷺ د شيعه ګانو او د لښکر له ټولو قوماندانانو څخه دغه خبره پټه کړه، ابو سلمه غوښته چې د ابوطالب له اولادې څخه کوم سړي خليفه وټاکل سي او بيعت ورسره وکړای سي، خو ابو جهم چې د علي ﷺ له شيعه ګانو څخه ؤ، د دغه نظر مخالفت وکړ او وې ويل هسې نه چې د ابي طالب اولاده له خلافت څخه بې برخې پاتې سي او خلک ابو العباس دخليفه په حيث ونه مني، که ابو الغباس د امام ابراهيم له وصيت سره سم کوفې ته راغلی نه وای، نو د دې خبرې ډېر زيات امکان موجود ؤ چې ابو سلمه د ابي طالب د اولادې څخه خليفه کولو کي بريالی سوی وای، ابو سلمه نه غوښتل چې خلک د ابو العباس د راتللو څخه خبر سي او د هغه په لور يې پاملرنه واوړي، په دې ډول ابو سلمه په دغه وخت کي امام جعفر صادق بن امام باقر بن امام زين العابدين بن حسين بن علي ﷺ ته ليک واستاوه، چې تاسي کوفې ته راسئ، او خلافت په خپل لاس کي واخلئ، هغه په ځواب کي انکار وکړ، په اتفاقي ډول خلک کوفې ته د ابو العباس عبدالله سفاح له راتګ څخه خبر سو.

دغه مهال په کوفه کي دوه ډوله خلک موجود وو، يو هغه شمېر وګړي چې د عباسي د اولادې د خلافت غوښتونکي وو، بل هغه وګړي وو چې خلافت يې د ابي طالب په اولاده کي غوښت، د عباسيانو پلويانو له اورېدو سره ابو العباس ته تلل راتلل پيل کړل او له هغوی سره د علي ﷺ شيعه ګان هم تلل راتلل، کله چې وګړي له دې څخه خبر سول چې د کوفې حاکم ابو سلمه چې د اهل بيتو په وزير سره يې شهرت درلود، له ابو العباس عبدالله سفاح سره د مبلمه پالنې په چارو کي له ټال متول کار اخلي، نو زيات شمېر د علي ﷺ شيعه ګان د عبدالله سفاح پلويان سول، په دې ډول په کوفه کي د عبدالله سفاح موجوديت په عمومي ډول د خلکو پاملرنه او همدردي د ځان په لور راوګرځوله.

د ربيع الاول په دولسمه د جمعې په ورځ ۱۳۲هـ ق کال چې د اکتوبر له ډېرشمي او ۷۲۹هـ ق کال سره سمون خوري، خلک راټول سوُل، ابو العباس سفاح يې د خپل جامع جوماٿ ته راغی، خطبه يې و ويله او د جمعې د لمونځ امامت يې وکړ، د جمعې تر لمانځه وروسته بيا منبر ته وخوت، خطبه يې و ويله او له خلکو څخه يې بيعت واخيست، دا ډېره فصيحه او بليغه وينا وه، چې خپل ځان يې په کې د خلافت حقدار ثابت کړ او له خلکو سره يې د معاشونو زياتولو وعده وکړه، د کوفې د خلکو ستاينه يې وکړه، تردې خطبې وروسته د عبدالله سفاح تره داؤد منبر ته وخوت او وينا يې وکړه، د عباسيانو د خلافت په باب يې مناسبې خبرې وکړې، د امويانو بدې يې بيان کړې او خلکو ته يې و ويل چې؛ نن امير المؤمنين عبدالله سفاح د تبې او اندامونو په درد اخته دی، له دې امله يې زيات بيان ونه کړای سو، تاسي ټول د هغه لپاره دعا وکړئ، تردې وروسته عبدالله سفاح د امارت د ودانۍ پر لور روان سو او د هغه ورور ابو جعفر منصور تر ماښامه پورې په جوماٿ کي ناست ؤ او له خلکو څخه يې

بیعت اخیست، عبدالله سفاح د خپ خلافت لپاره د بیعت اخیستلو وروسته د امارت ودانۍ ته ولاړ، بیا له هغه ځایه د ابو سلمه خیمې ته ورغی او له هغه سره یې خبري اتري وکړې، ابو سلمه هم بیعت وکړ، خو هغه له زړه څخه پر دغه بیعت او د عباسیانو پر خلافت خوښ نه ؤ، عبدالله سفاح د کوفې په شاوخوا سیمو کي خپل تره داؤد خپل مرستیال وټاکه، او بل تره عبدالله ب علي یې د ابو عون بن یزید د مرستي لپاره واستاوه، خپل وراره عیسٰی بن موسٰی یې د حسن بن قحطبه د مرستي لپاره ولېږی، چي په واسط ښار کي یې ابن هبیره محاصره کړی ؤ، یمیمي بن جعفر، بن تمام بن عباس یې د حمید بن قطبه د مرستي لپاره د مداین په لور واستاوه، په دې ډول یې هر لووري ته خپل نماینده ګان ولېږل، ابو مسلم په خراسان کي ؤ او هغه خراسان په چټکتیا سره له دښمنانو خالي کاوه، عبدالله سفاح چي په کوفه کي خلیفه سو، په هره یوه مهمه چاره کي به یې له ابو مسلم څخه مشوره غوښتله او څرنګه به چي ورته ابو مسلم ولیکل پر هماغه به یې عمل کاوه.

دا په ټوله اسلامي نړۍ کي ډېره نازکه او خطرناکه زمانه وه، په هر هیواد او هر یوه ایالت کي کورني جنګونه او فتنې را ولاړې سوي وې، په واسط ښار کي د ابن هبیره مغلوب کول آسان کار نه ؤ، له بلي خوا اموي خلیفه مروان بن محمد په شام کي موجود ؤ، په حجاز کي هم طوایف الملوکي وه، د مصر حالات هم ګډوډ وو، اندلس کي کي د عباسي تحریک له سره کوم اغېز نه ؤ، په جزیره او ارمینیا کي اموي امیران موجود وو او د عباسیانو پر خلاف مقابلې ته تیار سوي وو، خراسان هم په مکمل ډول عباسیانو نیولینه ؤ، د حضرموت، یمامه او یمن هم همدغه حالت ؤ، د عبدالله سفاح له خلیفه کېدو سره، په علویانو کي چي تر دې وخته له عباسیانو سره ملګري وو یوه ګډوډي خپره او هغوی پر دغه کار حیران و خفه وو، ځکه چي هغوی د خپل خلافت هیله لرله، د عباسیانو په دغه ستر بریالیتوب کي لوی لاس د محمد بن حنیفه د زوی ابو هشام عبدالله د هغه وصیت دی چي هغه د خپلي مړیني پر وخت د محمد بن علي بن عبدالله بن عباس لپاره کړی ؤ، د دغه وصیت له مخي د شیعه ګانو د کیسانیه فرقې دغه عقیده منځته راغله چي تر حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه وروسته محمد بن حنیفه امام ؤ، تر هغه وروسته یې زوی ابو هشام عبدالله امام سو او تر هغه وروسته محمد بن علي عباسي د هغه جانشین او امام ؤ، ترمحمد بن علي وروسته د هغه زوی امام ابراهیم امام سو او له امام ابراهیم وروسته ابو العباس عبدالله سفاح امام دی، په دې ډول د شیعه ګانو یوه لویه ډله د هغوی څخه جدا او له عباسیانو سره یو ځای سوه او علویانو یا فاطمیانو ته عباسیانو پر خلاف درېدلو هیڅ وخت په لاس ورنغی، د هغوی هرڅه همداسې دننه په زړونو کي پاتې سول.

کله چي د امویانو پر خلاف بغاوت وکړ او له سپینو بیرغونو سره راولاړ سو، له بلي خوا عامل بن قینسرین هم راپورته سو، حال دا چي تر دې دمخه هغه له عبدالله بن علي عباسي سره بیعت کړی ؤ، د

حمص خلک هم له هغه سره ملګي سول، بلي خواته د ارمنیا والي مسلم بن عقیل د عباسیانو پر خلاف راپورته سو، د دغو ټولو بغاوتونو د غلي کولو لپاره عبدالله سفاح خپل قوماندانان او خپلوان ولیږل او په تدرریج سره یې بریالیتوب ترلاسه کړ، خو یزید بن عمر بن هبیره لا هماغسي پر واسط واکوال ؤ او یو قوماندان هم هغه مغلوب او مفتوح نه کړای سو، په اخر کي ابوجعفر منصور او عبدالله سفاح مجبور سو او له یزید بن عمر بن هبیره سره یې سوله وکړه، یزید بن عمر بن هبیره بیعت ته غاړه کښېښوده، خو ابو مسلم خراسان عبدالله سفاح ته ولیکل چي د یزید بن عمر موجودیت ډېر خطرناک دی، هغه و وژنه، په دې ډول په چل سره منصور عباسي هغه (یزید بن عمر) و واژه او له دغه خطرې څخه یې خلاصون وموندی.

اوس په کوفه کي ابو سلمه پاتې ؤ او په ښکاره د هغه د وژني لپاره کومه موقع نه وه، ځکه چي عباسیانو د خپل خلافت په لومړیو کي له علویانو سره خپل مخالفت ښکاره کول نه غوښتی، د ابو سلمه په باب ټول حالات ولیکل سول او ابو مسلم خراساني ته یې ور ولیږل او مشوره یې ځیني وغوښتل سوه، ابو مسلم ورته ولیکل چي: ابو سلمه باید په سملاسي ډول و وژل سي، عبدالله سفاح د خپل تره داؤد بن علي په مشوره ابو مسلم ته ولیکل چي: که موږ ابو سلمه و وژنو، نو د ابو سلمه د پلویانو او د علي ﷺ د شیعه ګانو له لوري د څرګند مخالفت خطره موجوده ده، ته له هغه ځایه کوم سړی را ولېږه چي ابو سلمه و وژني، ابو مسلم خراساني د ابو سلمه د وژني لپاره مراد بن انس مؤظف کړ، مراد کوفې ته راغی، یوه ورځ په کومه کوڅه کي ابو سلمه روان ؤ، مراد پرې د توري وار وکړ، ابو سلمه و وژل سو او مراد بن انس وتښتېدی، او په خلکو کي مشهور سو چي کوم خارجي ابو سلمه وژلی دی، تردې وژني وروسته ابو مسلم په همدې ډول سلیمان بن کثیر هم و واژه، دا هماغه سلیمان بن کثیر دی، چي ابو مسلم یې په لومړی سر کي له خراسان څخه را شړلی ؤ، او ابو داؤد له لاري څخه بیرته راستون کړی ؤ، لنډه دا چي ابو مسلم ټول هغه وګړي چي د هغه مخالفت یې ګولای سو، چان چان کړل او وې وژل.

## د عباسیانو په لاسو د امویانو عمومي وژنه

هره کورنۍ یا قوم چي اسلامي خلافت خپل میراثي حق وګڼي هغوی په سخته غلطي کي دي، که امویانو اسلامي حکومت په خپله کورنۍ کي پاتې کېدل غوښتل دا د هغوی غلطي وه او که عباسیانو یا هاشمیانو اسلامي خلافت خپل حق ګاڼه نو دا د هغوی غلطي او بې انصافي وه، خو څرنګه چي په عمومي ډول د نړۍ وګړي په دغه غلذي کي اخته دي په همدې خاطر په حکومت او سلطنت کي هم د وراثت حق روا ګڼل کېږي، پر همدې اساس چي کوم سړی له کوم غاصب حکومت څخه حق اخلي، هغه زیاتره له وژني او زور زیاتي چي بنو هاشمو د امویانو پر خلاف کارولې، د هغه

ساری بل ځای نه لیدل کېږي، هو! که له تاریخي حقایقو څخه تېر سو او نیمه تاریخي روایات ومنو، نو بخت نصر د بني اسرائیلو په وژلو کي له ډېري بې رحمۍ او بې دردۍ څخه کار اخیستی ؤ، او بني اسرائیل یې د مځکي له مخ څخه ورکول غوښتل، خو موږ وینو چي د بني اسرائیلو قوم تر اوسه په نړۍ کي موجود دی، تردې زیات په هندوستان کي آریایانو پر غیر آریایانو بې حده ظلمونه او تېری کړي وو، خو د همالیې غرونو، د بندیا چل ځنګلونه او د راجپوتانه شګلنو دښتو غیر آریایي نسلونه آریایي نسلونه په خپله غېږ کي پټ وساتل او د هندوانو د شودر قومونو په شکل هغوی اوس هم د هندي اوسېدونکو یوه د یادوني وړ برخه تشکیلولی، هندوستان کي پر غیر آریایانو د مظالمو افسانې ځیني صحیح ثرګندې سوې، د نړۍ د خفیه تنظیمونو د حالاتو له لوستلو څخه معلومېږي، چي د دغو پټو چلوتو بریالی کوونکی له حده زیات د وینو تویولو او لوټ مار رتکاب کولای سي، په دغه اسلامي تاریخ کي هم موږ په پرله پسې ډول د دې خبري ثبوت وینو، د اموي کورنۍ له لاسو څخه د اسلامي خلافت ایسلت کومه ګناه نه وه، خو له موي کورنۍ څخه د اسلامي خلافت ایستل او یوې بلې کورنۍ ته په دې ډول ورکول هم کومه نېکه چاره نه وه، اسلام سپېڅلی دین او اسلامي نړۍ ته ځیني هیڅ ګټه رسېدلای نه سوه، له دې امله عباسیان د ډېرو شرموونکو وینو تویولو او عامه وژلو مرتکب سول.

ابو مسلم خرساني او قحطبه بن شبیب او د اهل بیتو نورو نماینده ګانو چي د خراسان په ښارونو کي د څومره عامه وژنو بازار کرم کړ، د هغه یو څه یادونه په تېرو مخونو کي وسوه، امام ابراهیم پخپله ابو مسلم ته په خپل وروستي لیک یک لیکلي وو چي په خراسان کي د عربي ژبي ویونکي ژوندی پرې نږدې، له دې نه دهغه هدف همدا وو چي په خراسان کي د امویانو پلویان همدا عربي وګړي او قبایل وو، چي په فاتحانه ډول په خراسان کي اوسېدل، د خراسان اصلي اوسېدونکي چي نوي مسلمانان وو، هغوی ټولو د عباسیانو بلنه منلې وه او منلای یې سوه، اابو مسلم دغه عربي قبایل و وژل او په نتیجه کي یې په خراسان کي هغه ټول عربي قبایل چي هغه هیوا ته تللي وو او د هغه هیواد پر ژبه، ټولنیز ژوند او تمدن یې عربي اغېز پرې ایستلای سو، و په دې کار کي یې په زره پوري بریاوې هم په برخه سوي وې، هغوی له یوې مخې و وژل سول، او عربي کلتور چي ټول هیواد یې پرخپل رنګ رنګاوه، له یوې مخي کمزوري، بې اغېزي او ورک سو، د څه له امله چي ایراني ژبه، ټولنیز ژوند، تمدن او خلاق د مریني په جال کي وو بیا را ژوندی او تاندي سول، او ایران او خراسان چي د مصر په څېر به اوس یو عربي هیواد وای، بیا فارسي هیواد سو، ابو مسلم پخپله خراساني او ایراني نژادي وو، له دې امله یې د عربو له وژني پرته بل په زره پوري کار نه سو کولای، قومي تعصب چي اسلام ګرد سره له منځه وړی ؤ، دد امویانو په وخت کي بیا را ژوندی سوی ؤ او د همدغه قومي

تعصب او قبایلي کرکي د بیرته راتګ نتیجه وه، چې امویانو ټول عربي قبایل او په ځانګړې توګه بني هاشم تر فشار لاندې ساتلي وو، له دې امله هغوی هر هغه سړي ته چې د هغه په باب به ورته معلومه سوه چې له اموي کورنۍ سره اړیکي لري د ډېرې وېرې او دهشت په سترګو کتل، هغوی د واک مېندلو سره خپل ټول قوت د دغه قبیلې "امویان" دې محکي له مخ څخه ورک کړای سي.

عبدالله سفاح تر عبدالله بن علي چې کله د روژې په پنځمه ۱۳۲هـ ق کال دمشق ته ننه وت، نو یې د عامه وژني امر وکړ، کله چې وروستی اموي خلیفه مروان بن محمد په بوصیر کي و وژل سو، نو د عباسیانو لپاره تر ټول ضروري کار د امویانو ستېه ایستل ؤ، خو د اموي خلافت دنګې ماڼې په راغورځولو کي ځیني مویان هم له عباسیانو سره ملګري سېسول و له فاتحو عباسیانو سره په عزت او درناوي کي اوسېدل او په دې ډول د امویانو نسل په مکمل ډول له منځه لا نه لاړ، خو ابو مسلم خراساني د دغه کار لپاره ملا تړلې وه، هغه عبدالله سفاح او نورو عباسي مشرانو ته بیا ځلي ولیکل چې: د اموي قبیلې پو وګړی که څه هم ستاسي پلوی او ملګري ولي نه وي، ژوندي پرې نه ږدي، دغه مشوره خو عملي سوه، خو ځیني وګړي داسي هم وو، چې له سترو، سترو ډلو سره یې په ډېر نازک وخت او خطرناک وخت کي له عباسیانو سره ملګرتیا او له امویانو څخه بغاوت کړی ؤ او ډېره مهمه مرسته یې ورسره کړې وه، بشري شرافت د هغوی د وژني مخه نیولې وه، ابو مسلم د دغه ډول امویانو د وژني لپاره داسي لاره غوره کړه چې د عباسي خلیفه ګانو هم مجلسیو خلکو او شاعرانو ته یې رشوتونه ور ولېږل او د خپل لوري څخه یې ورته دا لارښوونه وکړه، چې دربارته ولاړ سي هلته داسي اشعار و وایي: او داسي خبري وکړي چې د امویانو پر خلافت د عباسیانو قهر راولاړ کړي او د هغوی په مزاج کي د انتقام او وژني جذبه راپورته کړي، د دغه ډول هڅو په نتیجه کي عباسیانو د اموي کورنۍ وګړي یو یو ولټول او وې وژل، عبدالله بن سفاح په عام دربار کي د همدغي یوه شاعر د اشعارو په ویلو سره سلیمان بن هشام بن عبدالملک له ځنډه پرته و واژه، حال دا چې سلیمان بن هشام د سفاح هم مجلسي او د هغه ډېر پلوی ؤ، عبدالله بن علي چې په کوو ورځو کي په فلسطین کي ؤ، هلته د ابي فطرس د رود پر غاړه پر دسترخوان ناست ډوډی یې خوړله او له اتیاو څخه تر نوي پوري امویان ورسره ناست وو، په همدې وخت کي شبل بن عبدالله راغی، هغه په سملاسي ډول خپل اشعار لوستل پیل کړل، چې د امویانو بدی، د امام ابراهیم د بندي کېدو یادونه او د امویانو د وژلو ترغیب پکي ورکړای سوی ؤ، د عبدالله سفاح تره عبدالله بن علي په سملاسي ډول امر وکړ چې دغه امویان دې ټول و وژل سي او د هغه نوکرانو پر هماغه ځای ټول و وژل، په دغو اتیا یا نوي کسانو کي زیاتره داسي وو، چې بېخي مړه سوي وو، ځیني داسي هم وو چې زخمیان سوي او راپرېوتي وو او تر هغه

وخته پکې ساه پاتې وه، عبدالله بن علي هغوی ټول ترمخې واچول، دسترخوان يې پر وغوړاوه، خواړه يې پرې کښېښودل سول او عبدالله بن علي له خپلو ملګرو سره هغه خواړه خوړل پيل کړل، هغوی ډوډۍ خوړله او هغو زخميانو ترې لاندې په ځنېبرګو، ځنېبرګو ساه ورکوله، ترڅو چې هغوی خواړه وخوړه او زخميانو ساه ورکړه، په دغو وژل سويو کې محمد بن عبدالملک بن مروان، معز بن يزيد، عبدالوحد بن سليمان، سعيد بن عبدالملک، ابو عبيده بن وليد بن عبدالملک هم وو، د ځينو وينا ده چې معزول خليفه اېرهيم هم په دوی کې شامل ؤ، ترڅو وروسته عبدالله بن علي بن عبدالله بن عباس د اموي خلفاؤ قبرونه وکنستل، د عبدالملک د قبر څخه د هغه کوپړۍ را و وتله، د مير معاويه ﷺ له قبر هيڅ په لاس ورنغلل، له ځينو قبرونو څخه ځيني غړي را و وتل نور ټول خاوري سوي وو، د هشام بن عبدالملک قبر وسپړدل سو، يوازې د پوزې لوړ والی يې له منځه تللی ؤ، نور ټول وجود يې روغ رمټ را و وت، عبدالله بن علي د هغه مړی په درو و واهه، بيا يې پر صليب وځړاوه، بيا يې وسوځی او ايرې يې په هوا کې باد کړې، د عبدالله بن غلي ورور سليمان بن علي بن عبدالله بن عباس په بصره کې د امويانو يوه ډله و وژله، مړي يې د لارې پر سر ګذار کړل او له ښخولو يې ممانعت وکړ، هغه مړی تر مودو، مودو پروي سپو خوړل، د عبدالله بن علي بل ورور يعني د سفاح تره داؤد بن علي په مکه، مدينه، حجاز او يمن کې يو ، يو اموي پيدا کړ او وې واژه او په امويانو کې يې د هيچا نوم ا ننبان پرې نه ښوده، لنډه دا چې په ټولو نيول سوي هيوادو کې يې يو عام حکم خپور کړ، چې په هر ځای کې اموي وليدل سي، له ځنډه پرته دې و وژل سي، د ولاياتو واليان او د ښارونو حاکمان چې په عمومي ډول عباسيان وو، پر خپل خپل ځای کې په دغه کار مشغول سول، چې که چيرې کوم اموي ومومي او مړ يې کړي، ان ترڅو لکه څنګه چې د ځناورو په ښکار پسې وتل، د امويانو لپاره هيڅ يو کور، کلی، قريه او ښار د امن ځای پاتې نه سو، او تر کلونو، کلونو عباسيانو هغوی نه يوازې امويان و وژل، بلکې هغه کسان يې هم و وژل چې په کوم وخت کې يې د امويانو ملاتړ او يا خدمت کړی ؤ، له دغه عامه وژني څخه نه چې کوم وګړي بچ پاتې سول او له يوه ځايه بل ته وتښتېدلای سول، هغوی خپل نوم او حيله بدله کړه او قوم به يې بل ښوده او د سرحدونو په لور يې مخه وکړه څرنګه چې په خراسان کې دغه ډول عامه وژنه ډېره شديده وه، په همدې خاطر چې په خراسان کې کوم امويان او د هغوی پلوي قبايل وو، هغوی د سند، سليمان غرونه او کشمي په لور وتښتېدل او پناه يې واخيسته، کومو خلکو چې د خپلو قبيلو نومونه بدل کړي وو، هغوی هم په کرار، کرار د اسلامي حکومت له پولونو و وتل، ځکه چې هغوی د عباسيانو په حکومت کې دا ډه کېدلای نه سول، دغه مغرور عربي قبايل چې د سند، کشمير او پنجاب لوري ته راغلي،وو، ويل

کېږي چې د هغوی نسلونه اوس هم په هندوستان کي موجود دي، او د خپلو بدل سوو نومونو او کسبونو له امله يې خپل عربي نژاد هېر کړی دی، د امويانو يو سړی عبدالرحمن بن معاويه بن هشام له دغه ښکار څخه روغ رمټ را ووت، او په تېښته پر مصر او قيروان تېر سو او اُندلس ته يې ځان ورساوه، څرنګه چې اُندلس د عباسيانو له اغزيٖ څخه يوڅه پاک و او هلته د امويانو پلويان زيات وو، له دې امله چې څنګه اندلس ته ورسېدی، هغه هيواد يې ونيو او د يوه داسي سلطنت او خلافت په جوړولو بريالی سو، چې عباسي خليفه ګانو به ورته تل د حسد او شک په نظر کتل، خو د هغه اموی حکومت يې هيڅ ونه کړای سول.

## عباسي خلافت

## ابو العباس عبدالله سفاح

ابو العباس عبدالله سفاح بن محمد بن علي بن عبدالله بن عباس بن عبد المطلب بن هاشم په ۱۰۴هـ ق کال کي د بلقاء په سيمه حميمه کي وزېږېدی، هماله ته يې پالنه وسوه او د خپل ورور امام ابراهيم پر ګدی کښېناست، د خپل ورور منصور څخه په عمر کي کوچنی وو د ابن جرير طبري وينا ده چي له کومي ورځي آنحضرت ﷺ خپل تره عباس رضي الله عنه اولاده د خلافت هيله منده وه.

عبدالله سفاح په وينو تويولو، سخاوت، حاضر جوابي او تېز فهمي کي ممتاز ؤ، د سفاح عاملين هم ونيو تويولو ته لېواله و، سفاح خپل تره داؤد لومړی د کوفې حاکم وټاکه، او بيا يې ورته د حجاز، يمن او يمامه حکومت وسپاره، او په کوفه کي يې خپل وراره عيسیٰ بن موسیٰ بن محمد مقرر کړ.

کله چي په ۱۳۳هـ ق کال کي داؤد و وژل سو، سفاح خپل ماما يزيد بن عبدالله بن عبد المدان حارثي د حجاز او يمامه او محمد بن يزيد بن عبدالله بن عبد المدان يې د يمن واليان وټاکل، په ۱۳۲هـ ق کال کي يې سفيان بن عيينه هلبي د بصرې حاکم ټاکلی ؤ، په ۱۳۳هـ ق کال کي يې هغه ليري کړ او پر ځای يې خپل تره سليمان بن علي ته د ولايت مکتوب ورکړ او بحرين او عمان يې هم د هغه په حکومت کي شامل کړل، په ۱۳۲هـ ق کال کي د سفاح کاکا اسماعيل بن علي د اهواز بل تره عبدالله بن علي د شام، ابوعون عبدالملک بن يزيد د مصر، ابو مسلم خراساني د خراسان او خالد بن برمک د ديوان الخراج يعني د ماليې مسئوول افسران وو، په ۱۳۳هـ ق کال کي ابو مسلم له خپل لوري څخه محمد اشعث ته د فارس د ولايت مکتوب ورکړ، محمد بن اشعث فارس ته لومړی رسېدلی ؤ، تچي لکه عيسیٰ بن علي ور ورسېدی، ن محمد بن اشعث لومړی هغه ته د فارس حکومت له سپارلو څخه انکار وکړ، بيا يې ځيني اقرار واخيست چي هيڅکله به پر منبر خطبه نه ورکوي او له جهاد پرته به هيڅکله توره نه راپورته کوي، هغه ته يې د فارس حکومت وسپاره خو په حقيقت کي پخپله حاکم ؤ، کله چي محمد

بن اشعث وفات سو سفاح خپل تره اسماعیل بن علي د فارس د والي په حیث واستاوه او محمد بن صول یې د موصل د حاکم په توګه مقرر کړ، د موصل خلکو محمد بن صول وشاړه، دغه وګړي له عباسانو څخه باغیان وو، سفاح تر خفه سو. خپل ورور یحیٰی بن محمد بن علي یې له دولس زره لښکر سره د موصل په لور واستاوه، یحیٰی بن علي چي موصل ته ورسېدی د امارت په ودانۍ کي هستوګن سو او د موصل دولس تنه مشران یې په چل را وغوښتل او ویې وژل، د موصل وګړي له دغه کار سره سخت راوپارېدل او د جګړې لپاره تیار سولو یحیٰی چي دغه حالت ولیدی د خپلو خلکو پر وسیله یې پرېږغ وکړ چي هر څوک د جامع جومات په لوري ولاړل نو هغوی ته به امن ورکول کېږي خلکو چي دا واورېدل د جومات په لريې منډي کړې، جامع جومات په دروازو کي یحیٰی خپل سرېدرول وو، څوک به چي جامع جومات ته ورننه وت هغه به یې و واژه، په دې ډول یوولس زره کسان و وژل سول، بیا په ښار کي عامه وژنه ترسره سوه، چي شپه سوه یحیٰی د هغو زنانه د ژړا آوازونه واورېدل چي د خپلو مړونو، زامنو پلرونو، ورونو او نو رخپلوانو پر مړینه یې ژړل، له سهار کېدو سره یحیٰی امر وکړ چي ښځي او زنانه دي هم و وژل سي.

تر درې ورځو پوري پوځ ته د ښار د خلکو ویني مباح وې، د دغه امر له اورېدو سره په ښار کي ډېره شدیده عامه وژنه پیل سوه.

د یحیٰی په لښکر کي څلور زره زنګیان (دزنګبار او سېدونکی) هم وو، هغوی د موصل ښار د زنانه و په بې ابرو کولو کي یه شېبه هم ضایع نه کړ، په زرونو زنانه یې ونویې او وې تښتولې، په څلورمه ورځ یحیٰی پر آس پور سو او د ښار دسیل لپاره را و وت، یوې ښځي همت وکړ او د یحیٰی د آس واګي یې ونیولې او ورته وې ویل آیا ته له بنو هاشمو څخه نه یې؟ آیا ته د رسول الله د تره زوی نه یې؟ آیا ته خبر نه یې چي له مسلمانانو ښځ سره زنګیانو په زور نکاح کړې ده؟

یحیٰی هغې ته هیڅ ځواب ونه وایه، په سبا ورځ یې زنګیان د تنخواه وېشلو په پلمه راټول کړل او د ټولو د وژلو امر یې وکړ.

سفاح چي کله له دغو حالاتو څخه خبر سو، هغه اسماعیل بن علي موصل ته ولېږی او یحیٰی یې د فارس حکومت څخه تبدیل کړ.

په ۱۳۳هـ ق کال کي رومي قیصر د توري په زور دلمطیه او قالیقلا سیمي له مسلمانانو څخه ونیولې، په همدې کال یزید بن عبیدالله بن عبد المندان له مدینې څخه ابراهیم بن حبان سلمي له یوه لښکر سره د یمامه په لور واستاوه، په یمامه کي مثني بن یزید بن عمر بن هبیره د خپل پلار له وختو حاکم ؤ، هغه له ابراهیم سره مقابله وکړه او و وژل سو، په همدې کال په بخارا کي شریک بن شېخ

مهري د ابو مسلم پر خلاف بغاوت وکړ او له ډېرش زرو څخه زيات وګړي يې پر ځان راټول کړل، ابو مسلم صالح خزاعي د شريک د مقابلې لپاره واستاوه، شريک مقابله وکړه او و وژل سو، ابو مسلم د ذي الحجې په مياشت ۱۳۳هـ ق کال ابو داوُد خالد بن ابراهيم د ختن پر ښارونو د حملې لپاره ولېږل د ختن پاچا حبش بن شبل ماتې وخوړه، او د فرغانې پر لار چين ته وتښتېدى، په همدې وخت کې د اخشيد، فرغانې او شاش د پاچاهانو پر خلاف يې يو لک پوځ ولېږى، ابو مسلم زياد بن صالح هغه لوري ته واستاوه د زياد بن صالح له چيني پوځ سره د طراز پرنير مقابله وسوه، پنځوس زره چينايان و وژل سول او شل زره چينايان مسلمانان ژوندي ونيول.

په ۱۳۴هـ ق کال کي بسام بن ابراهيم چي د خراسان يو نوميالى قوماندان وُ، د بغاوت بيرغ پورته کړ او مداين يې ونيو، عبدالله سفاح د بسام د مقابلې لپاره حازم بن خزيمه ولېږه، حازم بسام ته رسوا ماتې ورکړه او د جنګ له ميدان څخه يې تېښتي ته اړ کړ، تردې وروسته سفاح حازم د عمان په لور د خوارجو د مقابلې لپاره ولېږئ، هلته يې خوارجو ته ماتې ورکړه او د هغوى مشر يې و واژه، په همدې کال ابو داوُد خالد بن ابراهيم د کش پر خلکو لښکر کشي وکړه او دکش پاچا يې (چي ذمي و) و واژه، د هغه سر يې په سمرقند کي ابو مسلم ته ولېږه، او دوژل سوي پاچا ورور طازان يې پر تخت کښېناوه او بلخ ته راستون سو، په همدې وخت کي ابو مسلم د صغد او بخارا د خلکو عامه وژنه وکړه، د بخارا او سمرقند حاکم يې زياد بن صالح وټاکه، د ثمرقند د ښار د دېوالونو جوړولو امر يې ورته وکړ او بيرته مروې ته راغى، تردې پېښو وروسته سفاح ته خبر ورسېدى چي په سند کي منصور بن جعفر د بغاوت او وعدې ماتولو لاره غوره کړې ده، (دا منصور بن جمهور هماغه دى چي د يزيد الناقص د حکومت په زمانه کي تر دوه مياشتو پوري د عراق والي و، او د عبدالله بن معاويه بن عبدالله جعفر له ملګرو څخه وُ، کله چي عبدالله بن معاويه اصطخر ته نږدې د داوُد بن يزيد بن عمر بن هبيره او معن بن زايده په مقابله کي ماتې وخوړه، منصور بن جمهور د سند په لور تښتېدلى وُ او عبدالله بن معاويه هرات ته تللى او هلته د هرات د والي مالک بن هيثم خزاعي له لاسه د ابو مسلم په امر وژل سوى وُ) سفاح د خپلو پوليسو افسر موسىٰ بن کعب د سند په لور ولېږى ا د هغه پر ځاى يې مسيب بن زهير مقرر کړ، موسىٰ او منصور د هند په پولو کي سره مقابله کړه، له منصور سره دولس زره پوځ وُ، خو د موسىٰ له لاسه يې ماته وخوړه وتښتېدى.

او په شګلنه دښته کي له تندې مړ سو، د منصور والي چي په سند کي وُ، هغه چي واورېدل د خپلي کورنۍ سره د خرز د ښارونو په لورولاړ، په همدې کال يعني د ذي الحجې په مياشت په ۱۳۴هـ ق کال کي سفاح انبار نومي ځاى ته راغى او همدې ځاى يې د خپل خلافت مرکز وټاکه.

په ١٣٣هـ ق کال کي زياد بن صالح چي د ابو مسلم له لوري د ثمرقند او بخارا والي و بغاوت وکړ، ابو مسلم چي واورېدل د مروې څخه روان سو، ابو داؤد خالد بن ابراهيم چي د زياد بن صالح له بغاوت څخه خبر سو نصربن راشد يې د ترمذ په لور واستاوه، چي ترمذ د زياد له حملې څخه وساتي، نصر بن راشد ترمذ ته له را رسېدو سره د تالقان څو تنو و واژه، ابو داؤد چي واورېدل، عيسیٰ بن هامان يې د نصر د قاتلينو په تعقيب پسې ولېږی، عيسیٰ د نصر قاتلان و وژل، په همدې وخت کي ابو مسلم "آمد" نومي ځای ته را ورسېدی، له ابو مسلم سره سباع بن نعمان ازدي هم ؤ، زياد بن صالح او سباع بن نعمان ازدي سفاح ابو مسلم ته د دې لپاره رالېږلی وو، چي که موقع بيا مومي ابومسلم و وژني.

ابومسلم چي "آمد" نومي ځای ته را ورسېدی، له کومي لاري څخه ورته معلومه سوه، هغه په سملاسي ډول سباع بن نعمان په آمد کي بندي کړ او د هغه ځای حاکم ته يې امر وکړ چي سبع و وژني،له آمد څخه ابو مسلم د بخارا په لور روان سو، په لاره کي ورته د زياد بن صالح څو تنه قوماندانان په مخه ورغلل، چي له هغه څخه باغيان سي وو او ابو مسلم ته راتلل، بخارا ته د ابو مسلم له راتګ سره زياد يوه دهقان په کور کي پټ سو، دهقان هغه و واژه او ابو مسلم ته يې د زياد بن صالح مړی را وړ، ابو مسلم د زياد بن صالح د وژني خبر د يوه ليک په ترڅ کي ور ولېږی.

ابو داؤد د تالقان په چارو سمولو کي مشغول ؤ، چي فارغ سو کش ته بيرته راغی او عيسیٰ بن هامان يې د بسام په لور ولېږه، خو هيڅ برياليتوب يې ترلاسه نه کړ، په همدې وخت کي عيسیٰ بن هامان څو ليکونه د ابو مسلم ملګرو ته لېږلی وو چي د ابو داؤد بديَ يې ليکلي وې ابو مسلم دغه ليکونه ابوداؤد ته ولېږل، ابو داؤد عيسیٰ بن هامان بندي کړ، څو ورځي وروسته يې چي هغه آزاد کړ، د لښکر وګري پرې راټول سول او وې واژه، ابو مسلم چي له دغه کار څخه فارغ سو مروې ته بيرته راستون سو.

په ١٣٦هـ ق کال کي عبدالله بن علي د سفاح حضور ته راغی، سفاح هغه له شامي او عراقي لښکرو سره د روميانو په لور واستاوه، د سفاح ورور ابو جعفر منصور د جزيرې والي ؤ، هغه په همدې کال د سفاح په مشوره د حج اراده وکړه، او له سفاح څخه يې د حج اجازه وغوښتله، سفاح ورته وليکل چي ته ماته راسه، زه به دې د حج د امير په حيث ولېږم، په دې ډول منصور انبار ته ولاړ او د حران د حکومت حاکم مقاتل بن حکم وتاکل سو، خبره دا وه چي په همدې کال ابو مسلم هم له سفاح څخه د حج ادا کولو اجازه غوښتې وه، له دې امله سفاح خپل ورور منصور ته په سملاسي ډول خبر ورکړ چي

ته فوراً د حج لپاره تيار سه او عريضه را ولېږه، دلته دا خبره څرګندول ضروري ده، چي ابو مسلم خراساني د عباسيانو د بلني په بريالي کولو کي تر ټولو ستر کارونه سرته رسولي وو.

لکه څنګه چي له تېرو پېښو ښکاره څرګنده ده، اوس د سفاح له خليفه کېدلو او د عباسي حکومت له جوړېدلو وروسته ابو مسلم د خراسان والي وټاکل سو او سفاح د هغه په نامه په اصولي ډول د خراسان د والي مکتوب ور ولېږه، خو ابو مسلم پخپله د سفاح د خلافت په دربار کي حاضر سوی نه ؤ او بيعت يې ورسره کړی نه ؤ، هغه چي په لومړی سر کي کله د امام ابراهيم له لوري خراسان ته لېږل سوی ؤ، له هغه وخته تر دې وخته په خراسان کي موجود ؤ، همده خراسان ونيو، همده خپل حکومت جوړ کړ، او په هر ډول يې په خراسان کي واکوالي وه، کله يې چي ټول دښمنان يو يو کړل او وې وژل، نو له عبدالله سفاح سره فکر پيدا سو، چي د ابو مسلم له خوښي او غوښتني پرته نه هغه د کوم ولايت حاکم تبديلولای سو او نه يې د هغه زور او ځواک کمولای سو.

ابومسلم خپل ځان د عباسي خلافت بنسټ اېښودونکی ګاڼه او خپل ځان يې د خليفه سفاح د سرپرست په توګه پېژانده، هغه خليفه سفاح ته مشورې ورکولې او سفاح به زياتره د هغه پر مشورو عمل کاوه، خو د خراسان په چارو کي به هغه له سفاح څخه مشوره نه غوښتله، عثمان بن کثير د عباسيانو په نقيبانو کي يو نوماند او تر ټول پخوانی نماينده و، هغه ابو مسلم څخه هيڅ ځواب ونه غوښتلای سو، سفاحو د هغه ترونو او ورونو هم د خپلو حوصلو د لوړو ساتلو په خاطر او د ابو مسلم خپلسری زغملای نه سوه.

سفاح چي کله خپل ورور ابوجعفر منصور د خراسان په لور د بيعت اخيستلو لپاره ولېږی او د همدې خپل ورور په لاس يې ابو مسلم ته د خراسان د ولايت ور ولېږی، د ابو مسلم رويه له ابو جعفر منصور سره مؤدبانه نه وه، بلکې ابو جعفر منصور د هغه له هر يو حرکت څخه خپل سری او خپلواکي احساس کړې وه، له دې امله د ابو جعفر او ابو مسلم په زړونو کي له يو بل څخه کرکه پيدا سوې وه، ابو جعفر چي لکه دغه ټول حالات سفاح ته واورول هغه نور هم په دې فکرونو کي پرېووت، چي د ابومسلم اقتدار، اغېز او واک په څه ډول کم کړي، له دې امله هغه دا خبره مناسبه وګڼله چي ابو مسلم و وژني، له دې امله زياد بن صالح او سباع ازادي ته سفاح د دې کار سپارښتنه وکړه، لکه څنګه چي دمخه يادونه وسوه، لنډه دا چي د سفاح او ابو مسلم زړونه يو بل ته پاک پاتې سوي نه وو.

څرنګه چي ابو مسلم د اقتدار څښتن او د ټينګ عزم خاوند سړی ؤ، هغه ته چي کله د سفاح له لوري د ځان په باب شک پيدا سو، هغه يوازي په خراسان کي خپله واکوالي کافي ونه ګڼله، بلکې په عراق او حجاز کي يې هم د خپلي واکوالي د قايمولو کوښښونه ضروري وګڼلو چي که کله اړتيا پېښه سي

نو د عباسیانو پښې و وهلای سي، د یو داسي سړي چي د عباسیانو د خلافت بلنه یې کامیابه کړې وه، په عراق، حجاز او ټولو اسلامي ایالتونو کي په پټه د خپل اغېز زیاتول کومه حیرانوونکي خبره نه وه، خو د هغه په ذهن کي دا خبره پاتې نه وه، چي په مقابل کي یې داسي کورنۍ وه، چي په هغه کي د محمد بن علي او ابراهیم بن محمد په څېر د تحریک بنسټ ایښودونکي پیدا کېدای سي، او د اموي خلافت به له منځه وړلو بریالی سوی همدا اوس د اقتدار څښتن وو، که څه هم ابو مسلم تر ټولو زیات کار کړی ؤ، خو هغه په دې کار کي د عباسیانو شاګرد او هماغوی روزل سوی ؤ.

لنډه دا چي ابو مسلم له سفاح څخه د حج اجازه وغوښته، سفاح ورته اجازه ورکړه، او ورته وې لیکل چي له پنځه سوه کسانو څخه زیات له ځان سره مه راوله، ابو مسلم ورته ولیکل چي له ما سره د خلکو دښمني ده، له دومره لږ شمېر کسانو سره سفر کول زه د ځان لپاره خطر بولم.

سفاح ورته ولیکل چي زیات څخه زیات زر کسان کفایت کوي، د زیاتو کسانو له ځان سره ملګري کول به له دې امله هم د تکلیف لامل ي، چي د مکې په سفر کي د خوراک څښاک د سامان رسول ګیران وي، ابو مسلم له اته زره پوځ سره له مروې را روان سو، او چي کله د خراسان پولو ته راو رسېدی، نو هغه اوه زره (پوځ یې په سرحدي ځایونو کي پرېښود او له زرو کسانو سره د خلافت مرکز انبار په لور روان سو، سفاح ورته خپل ستر، ستر او نامتو قوماندانان د استقبال لپاره را ولېږل او چي کله په دربار کي حاضر سو، نو د هغه یې بې حده درناوی وکړ او ورته وې ویل چي که سږ کال زما د ورور ابو جعفر منصور د حج اراده نه وای، نو هم ته به مې د حج د امیر په حیث لېږلی وای، په دې ډول د ابو مسلم د حج د امیر په حیث د ټاکل کېدو ارمان پوره نه سو، لنډه دا چي د خلافت له مرکز انبار څخه ابو مسلم او ابو جعفر یو ځای د حج لپاره روان سول، ابو مسلم د ځان سره له خراسان څخه ډېري زیاتي پیسې راوړي وې، د منصور ملګرتیا یې خوښه نه وه، ځکه چي هغه چي په آزادانه ډول کوم زیات کارونه کول غوښتل وه یې نه کړای سول، خو بیا هم هغه د مکې پر لار په هر پړاو کي د کوهیانو ایستلو سرایونو جوړولو او د مسافرو لپاره د آسانتیاوُ برابرولو کارونه شروع کړل، رختونه یې و ېشل، لنګرخاني یې شروع کړې، خلکو ته یې بې اندازې انعامونه ورکړل او د خپل سخاوت او بخښني داسي مثالونه یې پرېښودل، چي د خلکو زړونه د هغه په لور مایل سول.

په مکه معظمه کي یې هم په پراخه پیمانه مدغه کارونه وکړل، چیري چي د هري سیمي وګړي موجود وو، د حج د ورځو له تېرېدلو وروسته چي لا تر اوسه ابو جعفر منصور د تللو نیت کړی نه ؤ، ابو مسلم له مکې څخه را روان سو، له مکې څخه دوه پړاوه د خراسان په لور راغلي وو چي له دارالخلافه انبار څخه یو قاصد ورسره مخامخ سو چي د عبدالله سفاح د وفات کېدلو خبر او د ابو

جعفر منصور د خلیفه تاکل کېدو زېرییې هغه ته ور ورلو او منصور ته تللو، ابو مسلم دغه قاصد تر دوه ورځو پوري له ځان سره ایسار کړ، بیا یې منصور ته ولېږه، منصور د ابو مسلم په مخکې تللو خفه ؤ، اوس پردې خبره نور هم غمجن سو چي ابو مسلم منصور ته د خلیفه کېدو مبارکي راونه لېږله، د بیعت لپاره هم ایسار نه سو، حال دا دی چي تر ټولو لومړی باید هغه بیعت کړی وای او لږ تر لږه یې باید د منصور تر را رسېدو پوري په دغه ځای کي انتظار کړی وای، چي دواړو یو ځای سفر کړی وای، ابو جعفر منصور د دغه خبر له اورېدو سره سم له مکې څخه روان سو، خو ابو مسلم ځیني مخکي سفر کاوه او انبار ته ورسېدی، ترده وروسته منصور دارالخلافې ته ورسېدی.

مکې ته د ابو مسل او ابو جعفر منصور تر روانېدو وروسته سفاح د ذي الحجې د میاشتي په په دیارلسمه ۱۳۶هـ ق کال کي وفات سو، د هغه تره عیسیٰ یې د جنازې لمونځ ادا کړ او په انبار کي ښخ کړای سو، سفاح د خپلي مړیني دمخه خپل ورور ابو جعفر منصور او له هغه وروسته د عیسیٰ بن موسیٰ لپاره د ولیعهدۍ ژمن پاڼه په یوه ټوټه کي ولیکه او د خپلي کورنۍ مهرونه یې پرې وګلو او عیسیٰ ته یې وسپارله، ځرنګه چي منصور موجود نه ؤ، په دې خاطر عیسیٰ بن موسیٰ د هغه د مرستیال په توګه له خلکو څخه بیعت واخیست او د دغه پېښي خبر یې مکې ته ولېږی.

عبدالله سفاح حکومت د ټینګښت لپاره له مال او دولت څخه هماغسي کار واخیست لکه څنګه چي د اموي خلافت بنسټ ایښودونکی حضرت معاویه رضي الله عنه ځیني اخیستی ؤ، حضرت امیرمعاویه رضي الله عنه د خپل سخاوت په وسیله د خپلو مخالفینو یعني علویانو خولې بندي کړي وې او د هغوی همدردي یې ترلاسه کړې وه همدا دول د عباسي خلافت بنسټ ایښودونکی په مقابل کي هم علویان د خلافت دعوه لرونکي وو، هغوی له عباسیانو سره یو ځای اموي خلافت له منځه وړی ؤ، او اوس د عباسیانو په کورنۍ کي د خلافت قایمېدلو له امله هغوی همدومره ناخوشي وو لکه څومره چي د امویانو پر خلافت ناخوښي وو، عبدالله سفاح هم د امیرمعاویه رضي الله عنه په څېر علویان ته بې دریغه مال او دولت ورکړ او غلي یې کړل، کله چي سفاح په کوفه کي خلیفه کړای سو، نو عبدالله بن حسن مثني بن علي او نور علویان کوفې ته راغلل او وې ویل چي: دا څه خبره ده چي خلافت چي زموږ حق ؤ، تاسي پرې قبضه وکړه دا هغه عبدالله بن حسین مثني دی چي زوی یې محمد د ۱۳۱هـ ق کال د ذي الحجې په میاشت په مکه کي د عباسیانو او علویانو په ګډه غونډه کي د خلافت لپاره ټاکل سوی ؤ او د غونډي له ټولو حاضرینو سره ابو جعفر منصور هم له هغه سره بیعت کړی ؤ، سفاح د عبدالله بن حسین مثني په خدمت کي لس لکه درهمه وړاندي کړل، حال دا چي د دغه پیسې هغه مهال له سفاح سره نه وې، له ابن مقرن څخه یې پور کړې او ور یې کړې، په دې دول یې هر یو علوي ته بې

شمېره انعامونه ورکړل او رخصت يې کړل، عبدالله بن حسين مثني لا د سفاح څخه رخصت سوی نه ؤ چي د مروان بن محمد د وژل کېدو خبر او زيات شمېر قيمتي مرغلري او ګاڼي د غنيمت په مالونو کي راغلې، عبدالله سفاح هغه ټولي قيمتي مرغلري او ګاڼي هم عبدالله بن حسن مثني ته ورکړې، چي هغه ځيني بيا يوه سوداګر په اتيا زره ديناره واخيستلې، لنډه دا چي که عبدالله سفاح په دې کار کي د لږ ځنډ څخه کار اخيستی وای، نو علويان به په سملاسي ډول مخالفت ته تيار سوی وو، او هغه مهال د دې امکان موجود ؤ چي زيات شمېر نماينده ګان چي په اسلامي هيواد کي يې په کافي اندازه اغېز لاره له هغوی سره ملګري سوي وای، چي د عباسيانو لپاره به د خپل خلافت قايمول ډېر ګران سوی وو، په همدې خاطر د عبدالله سفاح کارنامو کي تر ټولو ستره کارنامه همدا ګڼل په کار دی، چي هغه ټولو علويانو ته مالونه او دولتونه ورکړل او غلي يې وساتل، او څوک يې مقابلې کولو ته پرې نه ښودی، د عبدالله سفاح تر خلافت وروسته علويان د خروج لپاره تيار سول خو هغه مهال بيا عباسي حکومت ټينګ سوی ؤ.

ابو جعفر منصور

ابو جعفر عبدالله منصور بن علي بن عبدالله بن عباس بن عبدالملک مور "سلامه بربريه" وينځه وه، ابو جعفر منصور د خپل نيکه په ژوند ۹۵هـ ق کال کي توليد سوو له ځيني رواياتو سره سم هغه په ۱۰۱هـ ق کال کي زېږېدلی ؤ، په پرتم دبدبه، زړورتوب، رعب، عقل او نظر کي يې ځانګړی غوره والی درلود، له بې ځايه چارو او خبرو ليري اوسېدی، په ادب او فقه کي يې لوی لاس درلود، حضرت امام ابوحنيفه رحمة الله عليه يې د قضا د عهدې څخه په انکار کولو سره بندي کړی ؤ، هغه په زندان کي وفات سو، د ځينو مورخينو وينا ده چي حضرت امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د منصور پر خلافت د بغاوت فتوی ورکړې وه، له دې امله هغه ته زهر ورکړل سول منصور خورا فصيح او بليغ خوش آوازه سړی ؤ، په حرص او بخل سره يې متهم کوي، عبدالرحمن بن معاويه بن هشام بن عبدالملک اموي په ۱۳۸هـ ق کال د منصور د خلافت په زمانه کي په اندلس کي خپل حکومت او خلافت قايم کړی ؤ.

هغه هم د يې بربريه وينځي له نس څخه زېږېدلی ؤ له دې امله به خلکو ويل چي اسلامي حکومت د بربريانو ترمنځ و وېشل سو، ابن عساکر ليکلي دي چي کله منصور د طالب علمي په زمانه کي اخوا دېخوا ګرځېدی، يوه ورځ په کوم پړاو کي کوم کور ته ورغی، چوکيدار ځيني دوه درمه محصول وغوښته او ورته ويې ويل چي: ترڅو پيسې رانه کړې په دې کور کي اوسېدلای نه سې، منصور ورته و ويل زه پر قرآن شريف پوهېږم ما معاف کړه، هغه بيا وانه ورېدل، منصور ورته و ويل زه عالم، فقيه او پر فرايضو پوهېږم هغه بيا ونه منله، بالاخره منصور مجبور سو چي دوه درهمه ورکړي، له دغه

ورځي شخه منصور اراده وکړه چي مال او دولت جمع کړای سي، منصور یوه ورځ خپل زوی مهدي ته نصیحت وکړ چي پاچا د رعیت له اطاعت پرته پاتي کېدای نه سي او رعیت له عدالت پرته اطاعت نه سي کولای، او تر ټولو غوره سړی هغه دی چي د قدرت له لرلو سره، سره عفوه وکړي، او تر ټولو بې وقوف "بې عقله" هغه دی چي ظلم وکړي، په کومه معامله کي له غور او فکر پرته باید حکم ونه کړای سي، ځکه چي فکر او ځنډ یوه آئینه ده چي انسان پکي خپله نیکي او بدي لیدلای سي، ګوره تل پر نعمتونو شکر کوه، د قدرت په وخت کي عفوه کوه، د خلکو د زړونو دلاسته راوړو پر وخت ځیني د اطاعت هیله لره، تر سوبې او بریالیتوب وروسته عاجزي او مهرباني غوره کړه.

## د عبدالله بن علي راپورته کېدل

د منصور تره عبدالله بن علي د عبدالله سفاح له خوا دخراساني او شامي لښکرو سره تر خپل مرګ دمخه د صائفه په لور لېږل سوی ؤ، دمحرم په میاشت ۱۳۷ھ ق کال منصور انبار ته ورسېدی او د خلافت پرتخت کښېناست، عیسیٰ بن موسیٰ د عبدالله سفاح له مړیني عبدالله بن علي ته هم خبر ورکړی ؤ او ورته لیکلي یې وو چي سفاح ترخپل ځان وروسته د منصور د خلافت لپاره وصیت کړی دی، عبدالله بن علي وګړي راټول کړل او ورته وې ویل چي: عبدالله سفاح چي د حران د چارو د سمون لپاره پوځ لېږل غوښتل نو په هیچا کي هغې لوري ته د تللو جرئت نه ؤ، سفاح ویلي وو، چي هر څوک د دغه کار سرته رسولو لپارهٔ ولاړ سي هغه به ترما وروسته خلیفه وي، په دې ډول زه د دغه کار لپاره ولاړم او همدا ما مروان بن محمد او نورو اموي سردارانو ته ماتي ورکړه، او بریالیتوب مي ترلاسه کړ، ټول دغه تصدیق وکړ او له عبدالله بن علي سره یې بیعت وکړ، عبیدالله بن علي د لوک نومي ځایه راستون سو او په حران نومي ځای کي یې مقاتل بن حکیم معاصره کړ، تر څلوېښت ورځو پوري یې کلابند کړی ؤ، د کلابندۍ په وخت کي یې د خراسان پر وګړو شک پیدا سو، زیات شمېر وګړي یې له هغوی څخه و وژل، حمید بن قحطبه یې د حلب والي وټاکه او هغه یې له یوه لیک سره ولېږی چي د ظفر بن عاسم چي د حلب والي ؤ په نامه ؤ، په دغه لیک کي یې لیکلي وو، چي حمید له د رسېدو سره و وژنه، حمید په لاره کي لیک پرانیست او ویې لوست او د حلب پر ځای د عراق په لوري ولاړ، له بلي خوا کله چي منصور انبار ته رسېدلی ؤ، ترهغه دمخه ابومسلم د منصور پر لاس بیعت وکړ، او منصور له هغه سره د درناوي او داده کېدو رویه وکړه، په همدې وخت کي خبر را ورسېدی چي عبدالله بن علي باغي سوی دی، منصور ابو مسلم ته و ویل چي: ماته د عبدالله بن علي له لوري سخته خطره ده، ابو مسلم خو د همد غسي پېښو هیله مند ؤ، په سملاسي ډول تیار سو، چي په دې

دول ابو جعفر منصور هم ت راحسان لاندي راوستل کېدای سي، په دې دول ابو مسلم د عبدالله بن علي د ټکول لپاره مؤظف کړای سو، ابن قحطبه چي د عبدالله بن علي څخه خفه د عراق په لور روان هغه له ابو مسلم سره یو ځای سو، عبدالله بن علي مقاتل بن حکیم ته امان ورکړ او مقاتل له رسېدو سره هغه و واژه او د هغه دواړه زامن یې ونیول، منصور د ابو مسلم ترلېږلو وروسته محمد بن صول له اذربایجان څخه راوغوښت عبدالله بن علي ته یې د دوکې ورکولو لپاره ولېږی، محمد بن صول چي عبدالله بن علي ته ورغی وې ویل چي: ماله سفاح څخه اورېدلي دي هغه به ویل چي ترما وروسته به زما تره عبدالله زما پر ځای وي، عبدالله بن علیورته و ویل ته درواغجن یې، زه ستا په چلونو ښه پوهېږم، دا یې ورته و ویل او د هغه مرۍ یې پرې کړه، تردې وروسته عبدالله بن علي له حران څخه روان سو او په نصیبین نومي ځای کي هستوګن سو، خندقونه یې و ایستل او مورچې یې جوړي کړې، منصور د ابومسلم تر لېږلو دمخه د ارمینیا والي حسن بن قحطبه ته لیکلي وو چي راسئ او له ابو مسلم سره یو ځای سي، په دې دول حسن بن قحطبه هم په موصل کي له ابو مسلم سره یو ځای سوی ؤ، ابو مسلم چي کله د خپل لښکر سره نصیبین ته نږدې را ورسېدی، د نصیبین مخه یې پرېښوده او د شام پر لارو یې پړاو وکړ او دا یې مشهوره کړه چي زه د عبدالله بن علي سره هیڅ کار نه لرم، زه خو د شام دوالي په حیث وټاکل سوم شام ته روان یم، له عبدالله بن علي سره چي کوم شامي وګړي وو هغوی چي دا واورېدل و وېرېدل او عبدالله بن علي ته یې و ویل چي زموږ د کورنیو غړي به د ابو مسلم له ظلم څخه بچ پاتې نه سي، غوره دا ده چي موږ د هغه د شام په لور تللو مخه ونیسو، عبدالله بن علي چي هغوی هر څومره وپوهول چي هغه زموږ د مقابلې لپاره راغلی دی، شام ته هیڅکله نه ځي، خو هیجا ونه منل، بالاخره عبدالله بن علي له هغه ځایه ولېږدېدی، کله چي عبدالله بن علي خپل لښکر ځای پرېښود او د شام لوري ته روان سو، نو ابو مسلم په سملاسي دول د عبدالله بن علي په بهترینه لښکرګاه کي هستوګن سو، او عبدالله بن علي بیرته راستون سو او په هغه ځای کي دېره سو، په کوم ځای کي چي ابو مسلم دېره سوی ؤ، په دې دول ابو مسلم یوه غوره لښکرګاه ترلاسه کړه، اوس د دواړو لښکرو ترمنځ د جګړو لړۍ پیل سوه، تر څو

میاشتو پوري جګړې رواني وې، په آخر کي د جمادي الثاني په اومه د چهارشنبې په ورځ ۱۳۷هـ ق کال عبدالله بن علي ماتي وخوړه او ابو مسلم بری ترلاسه کړ، د فتحې زېری یې منصور ته ولېږی، عبدالله بن علي چي له دغه میدانه وتښتېدی، په بصره کي خپل ورور سلیمان بن علي ته ورغی او تر یوې مودې پوري هلته پټ سو.

## ابو مسلم خراساني وژنه

کله چې عبدالله بن علي ماتې وخوړه او ابو مسلم د هغه لښکر تون تالا کړ او زيات شمېر ولجې يې ترلاسه کړې، نو المنصور چې د دغه فتحې خبر واورېدی خپل نوکر ابو خصيب يې د غنيمت مالونو د لست د برابرولو لپاره ور ولېږی، ابو مسلم پردې خبره سخت په قهر سو، چې منصور پر ما باور ونه کړ او خپل سړی يې د لست ترتيبولو لپاره را ولېږی، د ابو مسلم د دغه خفګان خبر چې کله منصور ته ورسېدی، نو له هغه سره فکر پيدا سو چې هسې نه چې ابو مسلم خفه سي او خراسان ته لاړ سي، له دې امله هغه ابو مسلم ته د مصر او شام د ولايت مکتوب ور ولېږی، ابو مسلم پردې نور هم خفه سو او پردې وپوهېدی چې منصور ما له خراسان څخه جدا کوي او بې لاسو پښو کول مي غواړي، په دې ډول ابو مسلم له جزيرې څخه را ووت او د خراسان په لوري روان سو، چې دا يې واورېدل منصور له انبار څخه د مداين په لوري ولاړی او ابو مسلم يې خپل ځان ته را وغوښتی، ابو مسلم له راتګ څخه انکار وکړ او ليک يې ورته واستاوه چې: زه به د ليري څخه ستاسي اطاعت کوم، ستاسي ټول دښمنان ما مغلوب کړي دي، اوس په داسي حال کي چې له مخي مو خطرې ليري سوې، نو زما اړتيا هم درته پاتې نه سوه، که تاسي ما پر خپل حال پرېږدئ، نو زه به ستاسي له اطاعت څخه بهر نه يم، او پر خپل بيعت به ولاړ يم، خو که تاسي په ماپسې ياست نو زه به ستاسي خلع خلافت اعلان کړم او د مخالفت لپاره به مو تيار سم.

د دغه ليک په لوستلو سره منصور په ډېره نرمه لهجه او مينه ابو مسلم ته يو خط وليکی چې: موږ ته ستا په وفاداري او اطاعت کي هيڅ شک نه لرو، ته ډېر کاريګر او د انعام حقدار سړی يې، شيطان ستاسي په زړه کي وسوسه اچولې ده، ته خپل ځان له دغو وسوسو څخه وساته او موږ ته راسه، منصور دغه ليک د خپل آزاد کړی غلام ابو حميد په لاس ولېږی او پر هغه يې ټينګار وکړ چې په هر ډول مره عذر او زاری کېدای سي، ابو مسلم ماته د راتللو لپاره وهڅوه، او که هغه يې په هيڅ ډول ونه مني نو بيا يې زما له قهر څخه و وېروه، کله چې دغه ليک ابو مسلم ته ورسېدی نو يې له مالک بن هيثم سره مشوره وکړه هغه ورته و ويل چې: ته هيڅکله منصور ته ورنه سې، هغه تا وژني، خو منصور ابو داؤد خالد د خراسان د ولايت ورکولو په لالچ سره دې خبري ته تيار کړی ؤ چې په هر ډول امکان ولري ابو مسلم ماته د راتللو لپاره تيار کړه، د ابو داؤد خالد په مشوره ابو مسلم منصور ته د ورتللو لپاره تيار سو، خو بيا يې هم دغه احتياط ضروري وګاڼه چې لومړی بايد خپل وزير ابو اسحق خالد بن عثمان منصور ته ور ولېږي چې د هغه ځای له حالاتو څخه پوره خبرتيا ترلاسه کړي، پر ابو اسحق ابو مسلم ډېر باوري ؤ، له دې امله لومړی ابو اسحاق ولېږل سو، ابو اسحاق چې کله د خلافت

دربار ته ورسېدی، نو د بني هاشمو ټول سرداران او د دولت ارکان یې استقبال ته راغلل، منصور ورسره له حده زیاته د احترام او درناوي رویه وکړه او په خوږو، خوږو خبرو یې ابو اسحاق خپل لوري ته مایل کړ ورته وې ویل چې: ته ابو مسلم له خراسان څخه منع کړه لو مړی یې ماته را ولېږه، زه به تاته د دې کار په بدله کې د خراسان حکومت درکړم، اب، اسحاق چې واورېدل خلیفه تیاري یې وښوده، له منصور څخه را رخصت سو، ابو مسلم ته راغی او منصور ته د ورتللو لپاره یې تیار کړ، په دې ډول ابو مسلم خپل لښکر په حلوان کې د مالک بن هیشم تر قوماندې لاندې پرې ښودی او پخپله له درې زره کسانو سره د مداین په لور ابو جعفر منصور ته ورغی، کله چې ابو مسلم مداین ته نږدې ورسېدی، نو یو سړی د منصور په مشوره ابو مسلم ته ورغی او تر ملاقات کولو وروسته یې ورته و ویل چې: تاسي منصور ته زما سپارښتنه وکړئ چې هغه ما د کسکر د حاکم په توګه ولېږي، او بله دا چې د وزیر السلطنت ابو ایوب څخه منصور په دې ورځو کې سخت خفه دی.

تاسي د ابو ایو ب هم سپارښتنه وکړئ ابو مسلم چې واورېدل خوښ سو او د هغه په زړه کې پاتي شکونه هم لیري سول، ابو مسلم د منصور خلیفه په دربار کې له عزت او درناوي سره داخل سو، او له عزت او درناوي سره رخصت سو او خپل هستوګنځي ته ستون سو، په دویمه ورځ چې کله دربار ته راغی، منصور دمخه عثمان بن نهیک، شبیب بن رواح، ابو حنیفه حرب بن قیس او نورو څو تنه د پردې ترشا کښېنولي وو، او امر یې ورته کړی ؤ چې زه لکه خپل لاسونه و وهم، نو تاسي په سملاسي ډول رابهر سئ او ابو منصورو ژني، ابو مسلم چې دربار ته راغی، منصور له هغه څخه په خبرو، خبرو کي د هغو دوو توورو پوښتنه وکړه، چې ابو مسلم ته د عبدالله بن علي سره په جګړه کي په لاس ورغلې وي، ابو مسلم دغه مهال له هغو تورو څخه یوه تورو څخه یوه ترملا پوري ترلې وه، هغه و ویل یوه یې دا ده موجوده ده، منصور ورته و ویل لږ یې زه هم وګورم، ابو مسلم په سملاسي ډول توره منصور ته ورکړه، منصور یوه شېبه توره ولیدله او بیا یې ترخپل زنګون لاندي کښېښودی، له ابو مسلم څخه یې د هغه د حرکاتو شکایت پیل کړو بیا یې د سلیمان بن کثیر د وژني یادونه وکړه وې ویل تا هغه ولې و واژه، حال دا دی چې هغه په داسي وخت کي زموږ پلوي ؤ، چې ته له موږ سره په دغه کار کي شریک سوی هم نه وې، ابو مسلم لومړی په عاجزانه او نرمه لهجه سره عذر کاوه، خو چې لحظه په لحظه یې د منصور قهر او غوسه زیاتېدل ولیدل، باور یې راغی چې نن زما خیر نسته، نو په جرئت سره یې ځواب ورکړ چې څه ستاسي زړه غواړي وه یې کړئ زه له الله جل جلاله پرته د بل هیچا څخه نه وېرېږم، منصور ابو مسلم ته کنځلي وکړې او لاسونه یې سره وټکول، د لاسونو له ټکار سره عثمان بن نهیک او نور را ووتل او پر ابو مسلم یې د توري وارونه وکړل او ځای پر ځای یې و واژه.

دا د شعبان د پنځه ویشتمي ۱۳۷هـ ق کال پېښه ده، د ابو مسلم تر وژل وروسته د سلطنت وزیر دباندي را ووت، د هغه ملګري یې پر دې وینا بیرته ستانه کړل چي ابو مسلم به نن د امیرالمؤمنین په خدمت کي وي، تاسي بیرته ولاړ سئ، تردې وروسته عیسٰی بن موسٰی د خلافت دربار ته راغی او د ابو مسلم پوښتنه یې وکړه، کله چي د هغه له وژل کېدو خبر سو، د هغه له خولې څخه بې واکه، (انالله و انا الیه راجعون) و وتل، دغه خبره منصور ته ښه ښکاره نه سوه او ورته وې ویل چي تر ابو مسلم زیات ستا بل څوک دښمن نه ؤ، بیا منصور جعفر بن حنظله را وغوښت او د ابو مسلم د وژلو په باب یې ورسره مشوره وکړه، جعفر د هغه د وژلو مشوره وکړه، منصور و ویل خدای دي تاته د خیر جزا درکي، بیا یې د ابو مسلم د مړي په لور ورته اشاره وکړه، جعفر د ابو مسلم د مړي په لور له کتلو سره و ویل چي: امیر المؤمنین له نن ورځي څخه تاسي خپل ځان خلیفه وشمېرئ منصور موسکی او غلی سو.

ابو نصر مالک بن هیثم چاته چي ابو مسلم خپل لښکر او مال سپارلی ؤ، د خراسان په نیت همدان ته روان سو، بیا د منصور خدمت ته بیرته راغی، منصور هغه ملامت کړ، چي تا ابو مسلم ته د راتللو پر خلافت مشوره ورکړې وه، مالک بن هیثم ورته و ویل: تر څو پوري چي له ابو مسلم سره وم، هغه ته مي ښکي مشورې ورکړې، او ستاسي ته راغلی یم، ستاسي د خیر غوښتني لپاره به هڅي کوم، منصور هغه د موصل د حاکم په حیث ولېږی.

ددې موضوع دنور تفصل لپاره زموږ بل کتاب افغانستان اود اسلام تاریخ وګورئ.

څلورم څپرکی

## دریمه څپرکی

## افغانستان د اسلام د پیدائښت په وخت کې

په پورتني مطالبو کې مو دافغانستان پیښني داسلام په تاریخ کې ولوستلي چې هغه مو دیو درس په شکل رایوځای کړي وي ، ترڅوافغان اولس خپلو تیروتنو ،ویاړنو په پام کې لرلوسره خپل راتلونکي داسلام په تاریخ کې وټاکي .

او اوس دتاریخ نورمطالب چې څلورم څپرکي تشکیل وي په دې کې دهیواد دتاریخ تسلسل رانبیئ چې کومه ورځ داسلام څرک دهیواد په غرونواورغونولګیدلي او دلوی هیواد بچان یې دجهالت اوسرکښی له پری خلاص کړي او دیوسپیځلي اسلام په دین یې منورکړي دي .

د اوومې زیږدیزې پیړی په لومړی نیمایي چې د اسلام لمر د بطحا له څنډې څخه راخوت د افغانستان هېواد دسیمه ایزو حکمرانانو تر اداري او د ختیځ او لویدیځ ادیانو تر اغیز لاندې ؤ ، د هېواد لویدیځه سیمه سیستان ، هرات او دهغه شاوخوا د ساسانیانو د دورې تر سیاسي ، ادبي او دیني نفوذ لاندې وه ، چې ژبه یې پهلوي او دین یې زردشتي ؤ ، خو په مېنځنی غریزه سیمه ، زابلستان او دکابل سیند د ناوې په کندهار ، دارغنداو او ترنک په ناوو هندوکوش د غرو ترلمنو ، د هغه شمال ته او دسند تر غاړو پورې د کوشانیانو او یفتلیانو د پایڅوړ د داخلي حکمرانانو کورنیو او د دغه هېواد نورو خلکو حکومت کولو ، چې بودایي او برهمني دینونه یې لرل ، د دوی کلتور ، دین او ائین بېخي سیمه ایزه بڼه پیدا کړې وه ، داسې ښکاري چې د میلادي پېړیو له پیله په دغه هېواد کې د عقیدې او لمانځنې خپلواکي وه ، هرې خواته د راز راز دیانتو مزدکونه ودان وو ، او په لومړنیو پنځو زېږدې پېړیو د ګریکو بودیک صنعت ، مدنیت ، ګډ تمدن او ادیان دخپل نقاطع او نښتون په ځای یانې د تکسیلا او دهلمند د ناوې د سیمو تر مېنځ او شمالا تر بلخ او تخارستان پورې موجود وو ، د افغانستان خلکو د دغه ګډ مدنیت په پیدا کولو لاس درلود ، تر اوومې پېړی او د اسلام د دین تر راتللو پورې په هېواد بودایي - زردشتي - لمرپرستي - شیوایي - مسیحي - نسطوري دیانتو او د ځینو ارباب انواعو او سیمه ایزو خدایانو لمانځنو دود لرلو.

د هغه مهال لیکدودونه خروشتهي - پهلوي سره دا ناګري سنکریټ او یوناني منګولي وو ، چې د دغه هر یوه لیکدود نښې له ځمکه څخه پیدا سوې دي .

د همدغه پېر له ژبو څخه درې (تخاري) پښتو، پهلوي او پراکريت ژبې وې چې دهغوی د تاريخي رواياتو او آثارو د کتنې له مخې يې په افغانستان کې څرک پيدا کولای سو.

چيني او بودايي ګرځندوی هيون څانګ چې په ۹ هـ کال افغانستان څخه راغلی ؤ، د دغه هېواد د ختيځ او شمالي سيمو کې دخلکو ټولنيز سياسي او فکري اوضاع په تفصيل سره ليکي، او وايي په دې سيمود بودايي لوی او کوچني مذهب دوارو پيروان خورا ډېر ؤ او په زياتو ښارود دغو دوارو مذهبو مزدکونه ودان وو، هرې سيمې يو حکمران درلود، چې د مرکزيت دنشتوالي له امله او د ملوک الطوايفی د اغېز له کبله د دې سيمو ټولنيز، سياسي، اقتصادي او فکري اوضاع دومره ښه نه وه، او په ديني چارو، اوهام، او خراقات ګډ سوي وو.

هيون څانګ د پېښور، هډې، لغمان، کاپيسا، باميان، غزني، بلخ او دهندوکوش د نورو شمالي ښارونو د بودايي مزدکونو په تفصيل سره نوم اخلي او چې په ۲۴ هـ کال چې له هنده بېرته راګرځېد، د کاپيسا د جنوب په ۲۳ ميلی يې د ګير ته ورل سوی ؤ او دا همغه د زميندار د زرو (زون) غره مزدک ؤ، چې د البلاذري په وينا په ۳۰ هـ کال د اسلامي فاتح عبدالرحمان بن سمره له خوا تسخير او د سرو زرو ياقوت سترګې بوت يې مات کړای سو.

د دې دورې بل مشهور بودتون يا مزدک د کابل شاهي بهار هغه ؤ، چې هيون څانګ د کابل دشمال د يو څو پادشاهي مزدکونو يادونه کړې ده او دکابلستان يو لوی بودتون غالباً تاريخپوه يعقوبي هغه د غوربند او دباميان د سرخ بد (سارخود) په سلسلهياد کړي او وايي چې په ۱۷۶ هـ کال د فضل بن يحيی برمکي له خوا تسخير او بوت يې وسيزل سو.

د دې دورې د ګرځندونو غوره سرچينه د چيني بودايي زيارت کوونکو ليکنې دي چې د بودايي مزدکونو د زيارت لپاره راتلل، او له هغې جملې څخه په ۳۹۹ ز کال شي فاهيان، په ۵۱۷ – ۵۱۸ ز څونګ ين، (له ۶۲۹ څخه تر ۶۴۵ هيون څانګ پر ۶۶۰ ز وانګ هيون – تسو – سفير، په ۶۶۴ ز هيون تچاو اوپه ۷۵۱ ز ووکنګ د افغانستان ځمکه ليدلې ده اوښه معلومات يې راټول کړي اوليکلي دي.

اسلامي ليکنې چې دهجري لومړنی پېړی په لومړی نيمايي د افغانستان د ښارونو اوضاع په ځير او بصيرت سره ليکلې، په هر ولايت يې له ملوک طوايف څخه ديوه پاچا او د کشتريانو له پوړ څخه يو لښکر ښودلی دی، تر هغه وروسته د عربو تاريخپوهان او جغرافيا ليکونکي هم وايي چې په هره سيمه کې بېل نامه حکمرانان وو، چې له هغې ډلې څخه سجستان شاه، مروشاه – قفص شاه، مکران شاه – کابلان شاه قيقان شاه – داوران شاه – قشميران شاه نخشبان شاه – کنارنشاپور – مروماهويه – د سرخس رادويه – دا بيور دبهمنه – د نسا ابراز – د غرجستان برزاينده – د مرورو د کيلان – د

زابلستان فېروز – ترمزشاه – شیربامیان – د سغد فېروز – د فرغانې اخشید ، دیوشار گوزگان خداه ، ختلان شاه یا شېرختلان ، بخارا خداه د سمرقند طرخال ، د سیستان اور خج او د اور رتبېل – د هرات او پوشنګ او دبادغیس برازان – د ماوراء النهر کوشاه شاه – د غرجستان شار د بادغیس او تخارنیزک – د تخاریبغو – د سور او غور جهان پهلوان – د غزني او گردیز لویک دی – چي فردوسي دمهراب کابلي او سام او زال زابلي د کهاله خواږه نکلونه لري.

د غزني لویکان لرغوني کهول ؤ ، چي دیوه نیکه نوم یې د بغلان په ډبرینه لیکنه لویک بوسر راغلی دی او د ۶۰ ز په شاوخوا د کوشانیانو فریستار آب (د اوبو رسولو وزیر) ؤ ، د دغه کهاله پاڅور په گردېز او د غزني په دربار د یعقوب لیث او سلطان مسعود تر وختو موجود ؤ . (۱)

بل مشهور کهول د زابلي رتبیلانو دی ، چي له کابل شاهانو سره یې خپلوي او خپښي درلوده او په زابل یې له غزني څخه تر سیستانه حکومت کولو ، د بیهقي په وینا شهرستان رتبیل د ارغنداو په غاړه په کوهکو چي د ډبرلیکونو عربو هندي او چیني تاریخپوهانو د یادونې له مخې د دغه کهاله ډېر شاهان پېژندل سوي دي ، دوی افغانستان ته د اسلامي لښکرو د راتګ په وخت له عربو سره جګړې او مقاومتونه وکړل ، آن چي د ۲۵۸ هـ په شاوخوا دیعقوب لیث صفارې له خوا له منځه ولاړل

بل غښتلی او نامتو کهول د کابل شاهانو ، چي په لومړۍ اسلامي پېړۍ او دعربو دفتوحاتو په وخت یې له کابله ترپنجابه حکومت کولو ، دالبیروني په وینا دبرهتګین له اولادې څخه دی چي د دغه کهاله د وروستني پاچا لګتورمان د پاچاهۍ په وخت د هغه وزیر کلرد تاج او تخت یې ونیو . سامند ، کملو بهیم ، جیپال ، انندپال ، او ترو جنپال د ده له اولادې څخه برهمني پاچاهان دي .

د البیروني په روایت سربېره د کابل شاهانو ځینې نومونه د دوی له هغه سکو ، څخه چي لاس ته راغلي څرګندېږي لکه خودویه که – سپاله پتي – پدمه ونکه دیوا .

د تاریخ سیستان لیکوال ، د ۳۶ هـ په شاوخوا د کابل شاهانو د دوو نورو پاچاهانو نومونه یادوي ، چي لوی کابل شاه د کوچني کابل شاه تر ماتې وروسته دعبدالرحمان ابن سمره په مخکې مقاومت کاوه او ۲۸ زره وسله وال او پیل لرونکي لښکر یې درلود .

عربي مورخ الیعقوبي یو کابل شاه د "خنجل" په نامه یادوي ، چي د ۱۶۴ هـ په شاوخوا د المهدي بن منصورعباسي همهالي ؤ .

---

(*) د تفصیل لپاره وګورئ "افغانستان بعد از اسلام" ۱/۱۳۱ او "لویکان غزنه" کابل ، ۱۳۴۸ هـ ل

دا کابل شاهان د کابل تر پرېښودلو وروسته د اسلامي فتوحاتو په اثر د پېښور ويهند - تکسيلا او پنجاب خواته په شا سول ، سلطان محمود دوی د سند د سيند له غاړې ويهند څخه هاخوا وشړل او د ( ۲۹۰ هـ ) په شاوخوا د کشمير پاچا "گوپاله ورمن" هم د سوات د پېښور په کشمير د شاهي پوتره (شاهزي) په نامه اوسېدل (۲) .

په همدې دوره د افغاني سيمه ايزو اميرانو يوه کورنۍ د نېکي ملکانپکي شاهانو په نامه هم د هغو سکو له مخې پېژندلې سوې چې له غزني څخه لاس ته راغلي او د يفتلي او کوشاني سيمه ايزو اميرانو پايخوړ به وي .

دهندوکوش په شمال هم ځينې پاچاهان دتگينانو په نامه ؤ ، چې نيزک ، شاد او جبغويه له تخارستانه تر بادغيسه حکومت کاوه ، عربي تاريخپوهان په ( ۹۱ هـ ) کال د عربی فاتح قتيبه په مخکې د نيزک کلک مقاومت په تفصيل سره راوړي .

د باميان شيران هم د دغه پېر واکمنه کورنۍ وه ، چې تر ( ۹ هـ ) وروسته د هيون څانگ د سفر په وختونو او بيا ورپسې په ۱۶۴ هـ کال يې هم واکمني درلوده او د منصور عباسي ( ۱۳۶ - ۱۵۸ هـ ) په وخت لومړني شېر باميان مسلمان سوی ؤ چې د ده زوی حسن د ۱۷۶ هـ په شاوخوا ژوندی ؤ .

په غور هم د سوريانو کهاله - چې د هغې سيمې ځايي خلک وو - حکومت کاوه ، چې سوری ماهوي د ( ۳۵ هـ ) په شاوخوا د حضرت علي همهال ؤ او د ( ۳۶ هـ ) په شاوخوا شنسب د خرنگ زوی ، د ( ۱۳۰ هـ ) په شاوخوا امير پولاد ، ( له ۱۳۹ څخه تر ۱۵۴ هـ ) پورې جهان پهلوان اميرکروړ د امیرپولاد زوی ، او د ( ۱۶۰ هـ ) په شاوخوا اميرناصر د اميرکروړ زوی د ( ۱۷۰ هـ ) په شاوخوا اميربنجي د نهاران زوی ، د ( ۲۵۳ هـ ) په شاوخوا کې اميرسوري د محمد زوی د دغه کهاله له لومړنيو هغو څخه بلل سوي دي (۱) چې د غور پاچاهانو کورنۍ هم دغه کهاله ته منسوب ده .

په دې توگه د افغانستان خلکو د اسلام د پيدائښت په وخت د دغو پاچاهانو تر حکمراني لاندې د گډو دينونو - اندونو او فرهنگو تر منځ گډوډ ژوند کاوه ، که څه هم د دوی ديني ژوندون وروست او په چتياتو ککړ و ، خو له خپلې ملي بنې ، آزادۍ او فرهنگ سره يې مينه درلوده .

---

۲ - زاجه ترنگيني ۸ - ۳۳۳۰ او د تفصيل لپاره " افغانستان بعد از اسلام " وگورئ .

(۱) - د دې کورنۍ تفصيل په " افغانستان بعد از اسلام " کې تر ۱/۱۰۹ مخ وروسته وگورئ .

پينځم څپرکی

# تر اسلام مخکې او وروسته

# د افغاني فرهنګ تاريخي پښتونوته کتنه

دا سرليک د تاريخ له مخې خوندوره څېړنه او په زړه پورې شرح لري په دې مانا چې مونږ تول هغه فکري او مدني خوځښتونه، چې د تاريخ په لمنه کې د افغانستان په خاوره کې راغلي دي، "افغاني فرهنګ" بولو، دا فرهنګ د افغانستان د تاريخ له لرغونيو وختونو يانې د ۱۴۰۰ م ز په شاوخوا کې له "ويدي" دورې څخه پيل ادامه لري، په دې دوره کې آريايي خلک په بلخ کې دبدوي او کوچيتوب له ژونده ښاري ژوند او مدنيت ته رسيږي. زره تشتره (زردښت) په همدغه هېواد کې د مزديسناد دين او د ژوند د دريو بنسټونو: "ښه انګېرل، ښه کول، ښه ويل" په تبليغ خوله خلاصه کړي او د پيشداديانو او کيان شاهي کورنۍ د انساني مدنيت په زانګو "ښکلي بخدي" کې د خپل سلطنت او شاهي برم (فر) بنسټ ږدي .تر دې وروسته زمونږ د هېواد په لويديځو سيمو کې د آريايي خلکو هخامنشيانو، اشکانيانو او ساسانيانو مدنيتونه مېنځته راځي او خپل ځانګړي او فرهنګي بنسټونه په دې سيمو کې خپروي آن چې د هخامنشي دورې په پای کې يوناني سکندر له ۳۳۱ څخه تر ۳۲۳ م ز پورې د اېران له لارې په افغانستان يرغل کوي او دا فتح د يوناني ژبې، ادارې، سياسټ، هنر، ليکدود او نورو فرهنګي مظاهرو اغېز افغانستان ته راولي، په ۲۵۰ م ز کال په باختر کې د يوناني باختري سلطنت بنسټ ږدي چې د زېږدي پېر تر سره يې دوام وکړ او د افغانستان د يوناني او باختر ځانګړي فرهنګ او مدنيت په جوړښت کې يې چې لرغوني ويدي او اوبستايي رېښې يې درلودې، څرګند اغېز وکړ.د دويمې زېږدي پېړۍ په لومړيو کې د افغانستان کوشاني لوی پاچا کنشيکا د لويو کوشانيانو د لړۍ بنسټ کېښود او د بودايي دين په منلو، خپرولو او تبليغولو يې دافغانستان مدنيت او فرهنګ ته يوه ځانګړې بڼه او ترتيب ورکړ.د کنشيکا پلازمېنه په دوبي کې دکابل په شمال کې کاپيسا، او په ژمي کې پېښور ؤ، د ده د مهايانه بودايي لوی مذهب په تول افغانستان، دآمو په شمالي سيمو او هند کې دود کړ او لويه کوشاني شهنشاهي يې جوړه کړه.

د کوشانيانو په دوره کې چې تر څلورمې زېږدي پېړۍ پورې يې دوام درلود د افغانستان د داخلي مدنيت او فرهنګ ځانګړې بڼه له يوې خوا د زردښتي له پخوانيو هېوادنيو عناصرو څخه، او له بلې خوا د هند له بودايي آثارو او يوناني مواريثو څخه جوړه سوې وه.

له هغو اسنادو څخه ، چې په دغو وروستیو وختونو کې دبغلان د سره کوتل د کوشاني مزدک له کیندلو څخه لاس ته راغلي داسې څرګندیږي ، چې کوشانیانو د دغه هېواد د ځانګړیو افکارو او فرهنګ په پیدا ئښت کې چې وروسته ورته د " ګردیکوبودیک " په نامه یوه ځانګړې افغاني دوره ویل کېدلای سي څرګندې کارنامې سرته رسولې دي .

فرانسوي لرغون پېژاند او څېړونکي " موسیو فوشه " کوشاني صنعت د کوشاني دورې له توښتونو څخه بللی او وایي . د دې دورې د ستوپو ډول دآشوکا دزمانې له ودانیو څخه په ډېرې آسانۍ بېلېدلی سي . که وغواړو چې دا نوی سبق د اروپا له مذهبي ودانیو سره بیان کړ ښایي ووایو چې د آشوکا سبق د ګوتیک سبق دی چې په فرانسه کې له ۱۲ پېړۍ څخه تر ۱۵ زېږدي پېړۍ پورې موجود ؤ .

د آشوکا ستوپې هېڅکله فلات ته نه دي راغلي ، خو د کنښکا او دهغه دځای ناستو پاچاهانو ستوپې په ډېرې آسانۍ سره هند ته لاره پیدا کړې ده . آن د کوشان امیراتور د نوې پلازمېنه پورو شاپوره ( اوسني پېښور ) سویل ختیځ خواته خورا لوی بودتون ( معبد ) ودان کړی دی .

دغه بودتون څو واره اور اخیستی ؤ او اوس یوه کنډواله ده ، خو مونږ د چیني مسافرو د یادښتونو د لوستلو په پایله کې وکړای سول چې آرلیکونه یې وپېژنو ، چې د دې کنډوالې په آثارو کې د معجزې په توګه د بودایي له سپېځلو شیانو څخه یو شی چې د کنښکا تصویر او لاسلیک ورباندې شته راپاتې او پیدا سوي دي . آلماني ډاکټر هرمان ګویتز چې د هند په اړه د څېړنو استاد دی د کوشاني پېر د هنر په باب وایي یوناني هنر د هندي هنرو د ډول په بدلون پیل وکړ او د ګندهارا بڼه یې پیدا کړه ، خو ډېر څېړونکي په دې عقیده دي چې نوموړي سبق باید د یوناني او بودایي بڼې پراخوالي ته لږ منسوب وبلل سي ، بلکې دا د آریانان " ختیځ افغانستان " د هغه بڼې پراختیا ده چې د سویل ختیځ د سکایانو او کوشان د قبیلو تر واکمنۍ لاندې خپور سوی دی ، په دې ډول په کشمیر کې د ګویتا تر دورې ( ۳ - ۴ زېږدي پېړۍ ) پورې لکه چې د هروان د بودایي مزدکونو له کنډوالو څخه ښکاره کیږي یو بېخي سوچه هنر په ځای پاته سو او د دغو خلکو یرغل د یونان او بلخ او د یونان او هند دولتونه له مېنځه یوړل او هند ته یې تازه عناصر راوستل چې نور یې نو په لویدیځ ایران او د هخامنشي په نفوذ اړه نه درلوده او د ایران د فلات په شمال پورې تړلي وو . ( میراث ایران ۱۵۳ مخ )

د کوشاني پېر کلتور ، تمدن او هنر د خپل بشپړتانبه او انحطاط مرتبې تېرې کړې او د اسلامي پېر تر پیل او د عربو د لښکرو تر نفوذ پورې راورسېدل چې بیا یې په اسلامي لومړۍ پېړۍ او د ۶۵۰ ز په شاوخوا کې خپل ځای یو بل ګډ مدنیت او فرهنګ ته پرېښودلو ، چې هغه ته د افغانستان د لومړنۍ اسلامي دورې فرهنګ وایو .اسلامي او عربي عناصر چې په تر اسلام له مخه پخواني مدنیت او

فرهنګ کې ورګډ سول ، هغو ته يې بېخي يوه نوې تازه بڼه ورکړه چي وروسته بيا دوی ذ همدغه فرهنګ کې ورګډ سول ، هغو ته يې بېخي يوه نوې تازه بڼه ورکړه چي وروسته بيا دوی ذ همدغه

خراسان او افغانستان له خاورې د شمال او ختيځ خواته تر چين او هند پورې خپاره سول.

خراسان او افغانستان له خاورې د شمال او ختيځ خواته تر چين او هند پورې خپاره سول. له همدې امله د افغانستان خاوره دجغرافيايي اقليم او وضعې له مخې بايد په پخوانيو پېړيو او وختونو کې د ګڼو سويو فرهنګو د پيدائښت ځای وبلل سي او له همدې اړخه پروفيسور تاينبي د تاريخ انګرېز فيلسوف په خپل نوي کتاب کې چي " د اکسوس او جمنا تر مېنځ " نوميږي دې پايلې ته رسېدلی چي د افغانستان خاوره يو **Round - About** يانې د فرهنګو د انشعاب تکی او د ځلا مرکز او څلور لارې ؤ ، چي د څو زرو کالو په تېرېدلو يې چي څه په خپله درلوده او څه چي له باندې ورته رارسېدلي وو ، خپل شاوخوا هند ، ايران ، ماوراء النهر او مرکزي آسيا ته خپاره کړي دي د لومړۍ اسلامي پېړۍ په لومړۍ څلورمه ( د ۲۴ هـ ) په شاوخوا کې د عربي برياليو لښکرو فتوحاتو د خراسان او مرو تر مېنځ او له سيستانه د ارغنداو تر ناوې پورې رارسېدلي وو او همدا وخت دی چي افغانبستان په تېره بيا په جنوبي جبهه کې د اسلامي بريااليو عسکرو د عربي نوي دين ؛ افکارو ، کلتور او ژبې د تېرېدلو لار وګرځېدلو او دا ټول فرهنګي مهم توکي په افغانستان کې دوې پېړۍ له پخوانۍ تهذيبي او کلتوري بنې سره ګډ سول او بيا په ګډه د " سند " د مهران تر څنډو پورې په مخ ولاړل ، دا مطلب له هغې ليکنې څخه زياتېږي چي په عربي او سنکسريټ ژبو په يوه ډبره ليکل سوي او دا ډبره د شمالي وزيرستان په توچي کې لاس ته راغلې چي د ليکنې نېټه يې ( ۲۴۳ هـ = ۸۵۷ ز ) د جمادي الاولی مياشت ده .توچي ناوه له غزني او ګرديز څخه د هند خواته د فاتحانو او دتجارتي کاروانو د تېرېدلو لاره وه او ښکاره ده ، چي اسلامي ژبه او کلتور د ( ۲۰۰ هـ ۸۱۵ ز ) په شاوخوا کې هغه ځای ته رسېدلی ؤ .اسلامي فرهنګ ځانګړي عربي عناصر درلودل ، چي د خلفاء راشدينو او امويانو په وختونو کې په همغو ځانګړيو عربي بنسټونو باندې ولاړ ؤ او مهم اجزاء يې داسې سوچه عربي دودونه او د قرآن او د اسلام دحضرت پيغمبرصلی الله عليه وسلم ښودنې وې چي توحيد ښه اخلاق د افرادو او ټولنې ټولنيز فرايض يې څرګندول.

درېيم هغه نوي عناصرچي مسلمانانو د مصر ، روم ، پارس او خراسان څخه د لښکر کښيو ، سوداګرو ، ادبي او فرهنګي اړيکو په ترڅ کې اخيستي وو او په تېره بيا تر ۱۳۲ هـ کال وروسته چي د امويانو د واک کمبله ټوله سوه ، خراسانيانو په بغداد کې د عباس کورنۍ خلافت جوړ کړ چي له دغه انقلابي حرکت سره اسلامي فرهنګ ځانته نوې بڼه پيدا کړه او دعباسيانو د دورې په مدنيت او فرهنګ کې ډېر خراساني عناصر ننوتل ډېر ژر يې په ځواک د خراسان ټولو فرهنګي ، فکري او عقلي بنسټونو ته په عربي کلتور کې ځای ورکړ.

## داوخت په افغانستان کې یو ځانګړی اسلامي افغاني دوره رامینځته سو .

یانې تر اسلام له مخه دورو ، د فرهنګ په پخوانیو بنسټونو اوس یوه نوې مبدا زیاته سوه او هغه د قرآن او اسلام اغېز ؤ چي د افغانستان له هېواده د مدنیتونو د یوې لارې په توګه د هند ، ماوراء النهر او چین خواته هم تېره سوه . اوس خراساني اسلامي فرهنګ یوه بېله بڼه پیدا کړې وه په دې معنی چي خراسانیانو له خپلو فرهنګي پخوانیو دودونو سره سره د اسلامي مدنیت بنسټونه هم منلي وو ، دغو خراسانیانو د خراسان او د عباسي خلافت سیاسي ، ټولنیز ، اداري او عملي مرکزونو په تېره بیا بغداد ته مخه وکړه او په ټولو فرهنګي برخو کې یې ښه ښکاره فعالیت وکړ د بلخ د برمکیانو نامتو کهول چي د خراساني او افغاني فرهنګ په زانګو کې روزل سوی ؤ ، په عباسي هېواد کې یې د اداري علم او فرهنګ واګې په لاس کې ونیولې ، د دغو خلکو په زیار اسلامي نقلي او عقلي پوهنو وده وکړه . د خراسان مشهور ښارونه له نیشاپور او مرو څخه نیولې تر هرات زرنج ، بلخ بست ، بغشور او نورو پورې د اسلامي علومو افکارو او فرهنګ د روزنې ځایونه وګرځېدل ، ډېر خراساني موالي عربي کورنیو ته ننوتل او خپل افکار او کلتوري روایتونه یې د عربو دنیا ته ولېږدول او د خراساني او عجمي فرهنګ اغېز د بغداد د عباسیانو په دربار او د عباسي ارت هېواد په نورو ښارونو کې تر دې درجې وه ، چي ځینو خلفاؤ خراساني ښځې په نکاح کړې او د بغداد د څو تنو غښتلیو خلفاؤ ، میندې له همدې خلکو څخه وې .

اسلامي خراساني فرهنګ چي په همدغه افغاني ښارونو او خراسان کې روزل سوی ؤ دومره وده پیدا کړه او دومره لوړ سو چي آن عربي ژبیو شاعرانو هم خراساني مضامین او افکار او کلمات خپلې ژبې ته ورننه ایستل . څنګه چي خراسان د مېنځنۍ آسیا په څلور لارې پورې تړلو ، نو له لویدیځه ، ختیځ ته او له ختیځ څخه لویدیځ ته د افکارو د انتقال ځای وګرځېد . د بېلګې په توګه ابن ندیم د سمنیه ( بودائیانو ) او د هغو لارو ښود بوذاسف د حالاتو د بیانولو په مهال له یوه کتاب څخه نقل کوي ، چي هغه یوه خراساني سړي لیکلی ؤ او له دې څخه هم څرګندیږي چي خراسانیان د افغانستان او دهغه د ګاونډیو خاورو خلک عربو ته د هندي افکارو د وړولو وسیله وه . ځکه نو ښایي په لنډه توګه وویل سي چي زمونږ په دغه هېواد کې تل افغاني فرهنګ موجود ؤ ، که څه هم د زمانې له تېرېدلو سره یې بڼې بدلون کړی دی ، خو د دې ګذرګاه افکارو اندېښنو او د مدنیت تل خپل افغاني هویت او تشخص ساتلی دی

اخځلیکونه : (دافغانستان لنډ تاریخ عبدلحی حبیبي داسلام تاریخ نجیب ابادی) . افغانستان بعد از اسلام لمړی ټوک ، آریانا انتیکوا ، تاریخ افغانستان لومړی او دویم ټوک ، تاریخ افغانستان ، ( د سرپرسي سایکس ) ، پټانان ( د اولف کیرو ) خروشتي دبرلیکونه ( د سیتن کونو ) مادر زبان دري .

شپږم څپرکی

# دافغانستان تاريخ
# له راشده خلافته تر اسلامي امارته
## افغانستان ته د اسلام راتګ
## او د خلفاؤ راشدنو دوره

په تيرو پاڼوکې مو دتاريخ فلسفه اوپيژندنه ولوستله دهغه راوروسته موداسلامي ځواکونو ، دافغانستان تاريخ اوشخصيتونو ته يوځغلنده کتنه وکړه اوس له راشده خلافت څخه دافغانستان تاريخ راپيل کول چي دافغانستان داسلامي تاريخ يوبنسټېز مستندتوکې په رانغښتل شوي دي.

د اسلام له پيدائښت څخه لا د يوې پېړۍ څلورمه برخه نه وه تېره سوې او سترخليفه حضرت عمر رضی الله عنه د اسلامي خلافت په ځای ناست ؤ ، چي د عربو زړور او جهان نيوونکي لښکر د پارس او ساسانيانو زړه شاهنشاهي له پښو وغورځوله او ساساني وروستني پاچا درېيم يزدګرد د جلولا تر جګړې ( ۱۶ هـ کال ) او د نهاوند تر جنګ ( ۲۰ هـ کال ) وروسته خراسان ته راغی او د ماوراء النهر له خاقان څخه يې مرسته وغوښتله ؛ خو څه لاس ته ورته غلل .

د اسلام خليفه حضرت عمر ، احنف د قيس زوی په يزدګرد پسې وګماڼلو او احنف د خراسان ځمکه په روغه ونيوله . دا مهال د افغانستان د لويديځو سيمو او د غور ساتندوی په مرو کې ماهوي سوري ؤ ، چي د فردوسي او طبري په وينا دخراسان حکمران ګڼل کېدلو . د عربو حکمدار احنف چي په يزدګرد پسې ؤ ، يزدګرد په مرو کې ماهوي سوريې ته پناه يووړه ماهوي د ماورای آمويه له واکمنو سره د يزدګر د اړيکو له ټينګېدلو څخه ووېرېدلو او يزګرد يې د يوه ژرنده ګرې په لاس ووژلو ( ۳۱ هـ = ۶۵۱ ز ) او خپله واکمني يې د فرودسي په وينا تر بلخ ، هرات او بخارا پورې پراخه کړه ، د ده د لښکر سپه سالار کرسيون بخارا ونيو .

دا سوري کورنۍ د سيمه ايزو اميرانو خورا نامتو کهول دی . خو احنف ماهوي سوري هم له خراسان او مرو څخه د جيجون هغې خواته وشړلو او د ژوند تر پايه د مروالرود په څلور فرسنګۍ کې يې د خلافت له خوا د خرسان په يوه برخه حکومت کولو ، خو د ماهوي له ماتې سره د سوري اميرانو کهول له منځه ولاړو نه ، چي وروسته به يې بشپړه څېړنه راسي .

د سویل له خوا هم د عربو بریالی لښکر د البلاذري په وینا د خراسان تر دروازو طبسین ( د طبس تر کلا او د کرین تر کلا ) پورې رسېدلی ؤ، چې د افغانستان د اوسني گرمسیر په لویدیځ برید پورې نښتی دی او دهغه لښکر مشر عبدالله د بدیل خزاي زوی ؤ.

د فاروقي عهد په پای کې ( ۲۲ - ۲۳ هـ کال ) د عربو د لښکر یوې برخې د عبدالله بن عامر په مشرى د کرمان تر نیولو وروسته پرسجستان ( سیستان ) باندې هم یرغل وکړ ، او د سیستان ساتندوی د زرنگ ساتندوی روغه وکړه او زرنگ د مسلمانانو لاس ته ورغی ، او هغه لښکر چې له سیستانه ختیځ خواته پرمخ تللی ؤ ، د ارغنداو په ناوه کې د رتبېل له لښکر سره ( چې له مخه یې یادونه سوې ده ) ونښت ، او هغه یې ووژلو ، چې البلاذري یې د هېواد ارتوالی د " هیاطله " په نامه تر هراته یادوي (۲۴هـ - ۶۳۳ز).

دعبدالله بن عامررض اسلامي لښکرو دهیواد لراوبراخېستي وه افغانان داسلام له دین سره ډیرنابلد اوبرخپلي پلرني دین ټېنگ ولاړ و،خوعمرې لښکري ورو ورو داسلامي دعوت ترڅنگ دفتوحات کړندي ساتل جریان لرلو چې دې وخت خلافت عثمان رض ته ورسید اودعبدالله بن عامررض سرتیرو دعثماني خلافت ترسورې لاندې خپلې سپېڅلې جگړې ته دوام ورکاوه.

# د حضرت عثمان رضي الله عنه دخلافت دوره
# ( ۲۵ - ۳۵ هـ )

په عثماني وخت کې تر ( ۲۵ هـ. ) کال وروسته اسلامي فتوحات د افغانستان په خاوره کې پر مخ ولاړل. او د عربو د لښکر مشر عبدالله بن عامر تر کابله راورسېدلو ، دا ښار يې کلابند او تر سختې جګړې وروسته يې ونيو ، خو د کابل خلکو د عربو د لښکر تر راتګ وروسته بيا د خپلواکۍ بيرغ پورته کړ او تر نورو پينځو کالو پورې يې د سيمه ايز پاچاهانو تر واکمنۍ لاندې خپلواک ژوند کولو .
د حضرت عثمان له خوا احنف د قيس زوی په مرو کې تر هراته ، خبيب د قرة اليربوعي زوی په بلخ او تخارستان کې او عبدالله د عميرليثي زوی په سيستان کې واکمن ؤ ، چې په ټول افغانستان کې د عربو د لښکرو په خلاف بلوا پيل سوه ، خو په کابل کې د سيستان حکمران ، ياغيان له منځه يووړل او کابل يې بيا ونيو ، مجاشه د مسعود زوی چې د کرمان حکمدار ؤ د قفص ( د کوچ - کفچ ) او اوسنی کوچي ) قبيلو او د افغانستان د جنوب د ګرمسير له بلوڅو سره ونښت او تر خونړيو جګړو وروسته يې هغه ايل کړل ( د ۲۹ هـ - ۶۴۹ زشاوخوا ) د شمال له خوا هم احنف د قيس زوی او دهغه ملګريو ( تر ۳۲ هـ ۶۵۲ ز ) کال پورې ټول بلخ او تخارستان تر سمنګان پورې له ياغيانو پاک کړ او ډېره موده يې په بلخ ، مروالرود ، ګوزګانان او تالقان ( د افغانستان په شمالي ولاياتو ) کې جګړې وکړې او په همدغه کال يې د مروالرود له سيمه ايز شاري بازان سره چې د ډېرش زريز لښکر په ملاتړ جنګېدلو ، په قصر احنف کې جګړه وکړه هغه يې له منځه يووړلو ، خالد د عبدالله زوی هم هرات ، باد غيس ، غور او خراسان ونيول او د سرخس سيمه ايز ساتندوی رادويه پناه وغوښتله او د هرات او باد غيس او فوشنج له اسلامي حکمدار سره يې تر جزيې او ميليون درهمو منلو څخه وروسته روغه وکړه په ( ۳۲ هـ ) کال هراتي قارن له څلوېښتو زرو تنو سره د عربو په خلاف پورته سو ، خو دا سړی هم د نيشاپور د عربي حکمران عبدالله د خازم د زوی له خوا تر سختو جګړو وروسته وځپل سو .
د ( ۳۰ هـ ، ۶۰ ز ) کال په شاوخوا کې د خليفه له خوا ربيعه د زياد زوی سيستا ن ته راغی او د پهره ( فهرج ) زالق ( جالق ) تر نيولو وروسته ترهلمند پوري‌ پوري‌ تلو او د زرنج درې ميلۍ ته يې په ( زوشت ) کې سخته جګړه وکړه ؛ د سيستان ساتندوی يا د هقان اپرويز ( ياايران درستم زوی ) د روغې له لارې وروراندې سو ، زرنج يې مسلمانانو ته وسپارلو ، خو ربيع په مخ ولاړ او تر سناور او قرينن پورې چې د رستم د آس اخور ؤ ، ونيول او همداسې تر خواهش ( خاشرود ) او بست پورې ورسېد ، مګر سيستانيان خلک بيا وښورېدل او د ربيع نايب يې چې په زرنج کې ورته يو تن چې عبدالرحمان رضی

الله عنه د سمره زوی نومېدلو ، حسن بصري او د ډېرو فقهاؤ سره زرنج ته واستول سو ، ده په ( ۳۳ هـ ۶۵۳ ز ) کال هغه ښار کلابند کړ او دهغه ځای ساتندوی اپرویز ( ایران ) اطاعت ته غاړه کېښودله ، دوه میلیونه درهمه او دوه زره نابالغه مریان یې ومنل ، عبدالرحمان د اسلامي فقهاؤ په مرسته د اسلام په خپرولو پیل وکړ ، خو په دغه وخت دحضرت عثمان د شهادت خبر سیستان ته ورسېد ، نو عبدالرحمان له خپلې خوا امیر د احمر زوی په زرنج ې پرېښود او په خپله د بصرې خواته ولاړ ، دا مهال د سیستان خلکو بیا د عبدالرحمان له غیابه ګټه واخیستله او په امیر یې بلوا وکړه ، دی یې له ځایه یې وشړلو او په دې توګه سیستانیانو بیا وکړای سو ، چي دعربي حاکمانو د اطاعت له کړی څخه خپلې غاړې وباسي .

خوبدبختانه له یوې خوا جهالت اوله بلوري څخه دافغانانو دخپلواکی خوبونه په غیراسلامي چاپیریال کې لټول .

اوس چي افغانان څه ناڅه داسلامي افکارله خوندپوی شوي وداسلامي علوموزده کړي ورو ورو رائج سوي وي لیکن داسلام درېیم خلفه هم په شهادت ورسید هغه دافغانان دنوی اسلام ارمان له ځان سره یوور خوارمان چي اوس یې ددوي بې ساری قرباني اوداسلام څخه بی حد دفاع لیدلي وای

# د علي کرم الله وجهه د خلافت دوره

# (۳۵ - ۴۰ هـ)

حضرت علي رضی الله عنه په خپل خلافت کې عبدالرحمان د جروالطايي زوی د سيستان حاکم وټاکلو او په (۳۶ هـ ۶۵۶ ز.) کال يې سيستان ته راوستلو دا سړی په يوه جګړه کې چې د حسکه د عتاب زوی سره يې وکړه ووژل سو ، عبدالله دعباس زوی چې دبصرې والي وُ ، څلور زريز لښکر د ربعي بن کاس په مشرتابه د ابن عتاب د سرکوبۍ لپاره راولېږلو.

ربعي ابن عتاب يې ووژلو اوسيستان يې ونيو ، ثاغر بن دعور او حارث بن مره په مشرتابه تر تاقيقان (د بلوڅو اوسنی کلات) پورې پر مخ ولاړ.

شلو زرو قيقانانو سخته جګړه وکړه او تر خونړيو جګړو او کلابنديو وروستيو په داسې حال کې چې په زروتنه يې د مسلمانانو په لاس کې بنديان وو ، نور تيت او پرک سول (۳۸ هـ ۶۵۸ ز کال).

په ۳۶ ز کال د عربو يو لښکر د عبدالرحمان بن سمره په مشرتابه د سيستان او ارغنداو د ناوې له لارې په مخ ولاړ او کابل يې ونيو ، په دې جګړه کې پخپله کابل شاه ګډون درلد ، خو په پای کې يې د عربو لښکر ته ځان وسپارلو.

همدا راز د حضرت علي رضی الله عنه د خلافت په وخت کې د مرو ساتندوی ماهوي کوفې ته ولاړ او د اطاعت غاړې يې کېښودلو ، حضرت علي ده ته فرمان ورکړ چې د خراسان بزګران او سالاران دې ده ته جزيه ورکړي خو خراسانيانو بلوا وکړه ، څو چې جعده د هبيره مخزومي زوی (چې موريې هاني د ابو طالب لور وه) د دوی د ځپلو لپاره راغی ، مګر دغه شخص هم خراسان ونه نيول سو.

بياهم داسلام څرک ملت ډير متاثر کړي و ځکه دراتلونکو لښکرو لپاره ورځ تر بلي اسلامي مفکوره غوره کيدله.

خودعلي کرم الله وجهه په شهاد ت اسلامي لښکر مظلوم هم وي اوداسلامي رهبنتنولي ورځ تربلي راڅرګنديدله اودصحابه کرامو رضی الله عنهم نه ماتيدونکي هلې ځلي اوسرشندني متقابل اولسونه او اديان په شک کې اچولي چې يو سپېڅلی روح نه ماتېدونکي انقلاب و.

# اموي خلافت دوره
# (۴۱ - ۱۳۲ هـ)

په (۴۰ هـ ۶۶۰ ز) کال چي معاویه د ابو سفیان زوی د حجاز له بني امیه څخه واک ونیو او په اسلامي هېوادیې پرې پیدا کړ، نو ده اسلامي لښکر د خرسان شمالي او سویلي خواؤته په دوو جبهو وخوځولو ، په شمالي جبهه کې د هرات خواته قیس بن الهیثم سلمي ، بادغیس او فوشنج ونیول بلخ ته ورسېد او دهغه ځای د نوبهار مزدک (معبد) یې وران کړ. د ده تر لاس لاندې حاکم " عطا خشک " د بلخ په درو سیندونو درې پلونه جوړ کړل ، چي د عطا په پلو پېژندوی ؤ ، تر هغه وروسته تر (۴۵ هـ - ۶۶۵ ز) کال پورې د بلخ په شاو خوا کې عبدالله د خازم زوی په هرات ، بادغیس ، فوشنج او قادس کې نافع د خالد زوی او په تالقان ، فاریاب او مروالرود کې قیس د الهیشم زوی ، په مرو کې امیر د احمر زوی اودخراسان والي وټاکل سو ، چي د عربو لښکر یې د لومړي ځل لپاره دآمو پورې غاړې ته وخوځول. تر سعید وروسته عبدالرحمان د زیاد زوی د خراسان حکمران سو ، چي د معاویه تر مړینې پورې همدلته ؤ.

د معاویه تر مړینې وروسته د یزید له خوا اسلم د زیاد زوی د خراسان په امیری وټاکل سو ، ده د یزید تر مړینې وروسته مهلب بلوا وکړ ، ځکه نو سلېمان د یزید زوی په مرو ، تالقان او ګوزګان او عبدالله د خازم زوی د خراسان په نورو برخو امیري پیدا کړه په دغه مهال د عربي مشرانو تر منځ جګړه پېښه سوه او عبدالله خپل زوی موسی په

خپل ځای کېناوه او په خپله یې په هرات کې ربیعه او بني تمیم کلابند کړل ، تر یوه کال جګړې وروسته چي اته زره خلک ووژل سول هرات یې په زور ونیو او خپل زوی ته یې وسپارلو (تر ۶۴ هـ ۶۸۳ ز وروسته)

عبدالله د خازم زوی د عبدالملک اموي تر وختونو پورې په خراسان کې پاته سو او په (۷۲ هـ ۶۹۱ ز) کال وکیع د عمیره زوی د خلیفه له خوا وټاکل سو ، خو په (۷۸ هـ - ۶۹۷ م) کال خراسان د عراق د والي حجاج له خوا مهلب ته وسپارل سو ، مهلب تر مروالرود راتېر او تر بلخ په مخ ولاړ ، او له هغه ځایه تر آمو پورې ووت ، تر دوو کالو پورې په ماوراء النهر کې په جګړه بوخت ؤ بیا بېرته بلخ ته راوګرځېد .

په ۸۲ هـ کال چي مهلب د مروالرود په زاغول کې مړ سو حجاج د ده زوی یزید بن مهلب د خراسان امیر سو ، ده په (۸۵ هـ ۷۰۳ ز) کال بادغیس ونیو او په (۸۶ هـ ۷۰۵ ز) کال د عربو نامتو بریالی قتیبه د

مسلم زوی له سیستانه راوګرځېد او حجاج خلیفه عبدالملک ته منځګړی سو څو چي قتیبه یې د خراسان حکمران وټاکلو ، قتیبه مرو ته راغی او له هغه ځای څخه یې بلخ ، تالقان او تخارستان فتح کړل ، په بلخ کې یې ډېر مریان ونیول ، او تر هغه وروسته یې په ماوراء النهر کې په خپلو فتوحاتو لاس پوري کړ ، قتیبه خراسان ، تخارستان او بلخ د خپلو لویو لښکري سوقیاتو مرکز وټاکلو او هر وخت چي د ماوراء النهر له پرله پسې یرغلونو څخه راګرځېدلو په بلخ ، مرو او خراسان کې یې خپل ځواک نوی کاوه ( ۸۶ تر ۹۶ هـ پوري ) قتیبه کلک او کروړ سړی ؤ ، چي د خرسان په ولایت کې یې د تخارستان تر پایه پوري ټول مخالف عناصر د ۵۳ زرو تنو لښکر په واسطه له پښو وغورځول او ویې ځپل ، د افغانستان د شمالي سیمو له مدافعینو څخه یو هم بادغیسي نیزک دی ، چي د تخارستان د ییغو امیر له خوا حکمران ؤ ( ۸۴ هـ ) دی څه وخت د آمو د دواړو غاړو په فتوحاتو کې قتیبه ملګری ؤ ، خو چي د بلخ نو بهار ته ورسېد د خپلواکۍ بیرغ یې پورته کړ ، د بلخ مروالرود تالقان ، پاریاب ( اوسنی میمنه ) او ګوزګانان ( اوسنی سرپل ) خلک یې د قتیبه په خلاف له ځان سره کړل او له کابل شاه څخه یې هم د مرستې ژمنه واخیستله .

قتیبه د راتلونکي کال ( ۹۱ هـ ) په پسرلي کې له بلخ څخه په تخارستان یرغل او په تالقان کې د نیزک له لښکر سره جګړه وکړه ، نیزک ماته وکړه ، قتیبه د ده لښکر پوپنا کړ د نیزک ملګري یې تر څلورو فرسخو پوري په دار وځړول ، د نیزک دوه زامن یې ووژل ؛ په خپل نیزک په بغلان کې خپل مرکز ته راستون سوو ، او قتیبه سمنګان ونیو ،

نیزک یې تر دوو میاشتو په " دژکرز " کې کلابند کړ ، خو ویې نه نیولای سو ، په پای کې یې سلیم نومي د روغې لپاره نیزک ته ولېږله او نیزک یې په بې ځایه وعدو قتیبه ته بوت ، خو هغه نیزک او د ده دوه وربرونه سول او عثمان له ۱۲ زرو ملګرو سره ووژل او په دې توګه یې د افغانستان په ټولو شمالي ولایاتو کې سرغړونې له منځه یوو ړلې ( ۹۱ هـ ۷۰۹ ز ) خو قتیبه د اموي سلطنت د مرکز سلطنت د مرکز او ولیدبن عبدالملک مخالف سو او په خراسان کې یې په بغاوت لاس پوري کړ ، اموي دربار تر ډېر زیار وروسته دی د خپل لښکر د یوه مشر وکیع نومي په لاس ووژلو ( ۹۶ هـ ۷۱۴ ز ) تر قتیبه وروسته تر ډېر مهاله څه مهمه پېښه ونه سوه ، خو خلک تل د بني امیه مخالف ؤ او غوښتل یې چي خلافت بېرته آل رسالت ته په لاس ورسي ، څنګه چي بني امیه د بني هاشم او د امامت له کورنیو سره دښمني درلوده نو ځکه حضرت یحیی د زید زوی ( د علي رضی الله عنه له اولادې ) له کوفې څخه د بلخ په نیت راوخوځېد له ، د بلخ امیر چي د اموي دربار ګمارلی سړی او نوم یې عقیل د مفضل زوی ؤ ، دی ونیو او بندي یې کړ، خو په دغه وخت کې ( ۱۰۵ هـ ۷۲۳ ز ) اموي هشام مړ سو او

ولید د یزید زوی د خراسان امیر نصر سیار ته لیک واستولو، چي یحیی خوشي کړي، خو یحیی تر خوشي کېدلو وروسته په ګوزګان کې له اویا تنو سره د اموي لاسپوځیو ګوتو ته ورغی او تر یوې سختې جګړې وروسته شهید سو (د ۱۲۵ هـ د برات میاشت) د ده مړي د ابومسلم تر منځته راتګ پورې په دار ؤ.

د (۱۰۷ هـ ۷۲۵ ز) تر شاوخوا پورې په نورو پېښنو سربېره په غور او غرجستان کې د خراسان د عربي حکمران اسد د عبدالله د زوی پرمختګ او د غرجستان د سیمه ایز حکمدار "نمرون" او د غور له خلکو سره د ده جګړه وه، چي په دې جګړه کې د دې سیمې ښور ښت آرام او په نمرون یې اسلام و منلو.

**په جنوبي جبهه کې فتوحات او جګړې:**

په (۴۳ هـ ۶۶۳ ز) کال معاویه بیا عبدالرحمان بن سمره د دویم ځل لپاره د سیستان د حکمدار په توګه راواستولو، نوموړي تر ۴۴ هـ کال پورې د دې سیمې ټولې نا آرامۍ ارامې کړې او تر هغې وروسته د بست او کش (د کندهار کشک نخود) او د داور (د هلمند په غاړو زمینداور) او رخج (اراخوزیا، د ارغنداو د ناوې) خواته په مخ ولاړ او د زور غره ته (د زمینداو او غور تر منځ) او د هغه ځای لوی بودتون ته ورسېد، هغه لوی د سروزرو بت چي سترګې یې د یاقوت وې دعبدالرحمان په لاس مات کړای سو، ترهغه وروسته عبدالرحمان د زابل دسره غره لمونې ترنګ ناوې اوان تر غزني او کابل پورې ولاړ، دا ښار یې تر کلابندۍ وروسته د منجنیق د ډبرو په ویشتلو ونیو او ترڅه مودې هلته پاته سو، په دغو جګړو کې په ۴۴ هـ کال یو فاضل صحابي ابورفاغه عبدالله عدوي تمیم د اسید زوی (او په بل روایت ابوقتاده العدوي) په کابل کې شهید سو، چي قبر یې په کابل کې مشهور دی. په همدغه کال ابن سمره یو لښکر د فارس الفرسان مهلب د ابي صفره د زوی په مشرتابه ختیځو ولایاتو ته ولېږه، مهلب له کابله تر پېښوره په مخ ولاړ، او کابل شاه یې چي په لاره کې یې د او وژنده پیلانو په قوت (چي له هر پیل سره څلور زره سپاره وو) په خپله دفاع کوله مات کړ، او بنه او لاهور یې د سند د سیند ښۍ غاړې ته د مردان په ناوه کې ونیول، بیا نو عبدالرحمان، مهلب د سپه سالارۍ په منصب سر لوړی کړ او ده د سندها غاړې ته ګام واخیستلو په (۴۶ هـ) کال ربیع الحارثي د سیستان والي سو او په (۴۷ هـ) کال یې په بست او رخج (رخد) یرغل وکړ، د رتبیل (د زابلستان پاچا) سره ونښت او هغه یې مات کړ ربیع په زابلستان او د ارغنداو په ناوه او سیستان کې دخراج او محاسبې دیوان خلاص کړ، او دا هېواد یې د حسن بصري په مرسته تر اسلامي ادارې او قوانینو لاندې راوستلو، تر هغه وروسته په (۵۱ - ۶۷۱ ز) عبدالله د ابي بکره زوی سیستان ته راغی، د هغه ځای د ګبرګانو (زردشتیانو) سره ونښت او بیا تر بست رخج او کابل پورې په مخ ولاړ

، له رتبیل سره یې جګړه وکړه خو په دوو میلیونو درهمو یې ورسره روغه وکړه په دې توګه رتبیل غاړه کېښوده او دی بېرته سیستان ته ولاړ.
په (۵۹ هـ ۶۷۹ ز) کال د معاویه له خوا عباد د زیاد زوی د سیستان حکمران وټاکل سو، دی هم له هلمنده تېر، تر کندهار او کابله ورسېد، همدا عباد د معاویه د وختونو تر پایه د سیستان حکمدار ؤ، هغه وخت چې یزید د شاهي په تخت کښېناست، عباد له (۲۰) میلیونو درهمو او نورو مالو سره چې د کابل له غنایمو څخه یې د سیستان په خزانه کې راټول کړي وو، بصرې ته ولاړ، او د (۶۲ هـ ۶۸۱ ز) کال په لومړیو میاشتو کې یې یزید د زیاد زوی د سیستان په امیرۍ او ابو عبیده د زیاد زوی یې په سپاه سالارۍ وګمارل شول او سیستان ته راغلل، دا مهال بیا د افغانستان خلکو د کابل د پاچا په مشرتابه په عربي ګمارل سویو بلوا وکړه، او دخپلو اکۍ د ګټلو
لپاره پورته سول، یزید او ابو عبیده په کابل یرغل وکړ، خو له ډېر سخت مقاومت سره مخامخ او په خپله یزید له ډېرو مسلمانانو سره ووژل شو، سپه سالار ابو عبیده په کابل کې بندي سو، نو ځکه د اموي له درباره طلحة الطلحات او ورور یې عمر د سیستان د تنظیم لپاره راغلل، او د عربو هر یو سردار د افغانستان د یوې یوې غربي ناحیې واکې په لاس کې واخیستلې هغه وخت چې مروان الحکم په شام کې د اموي پاچاهۍ په تخت کښېناست عبدالعزیز د عبدالله عامر زوی یې چې له پلار او نیکه څخه یې د سیستان په چارو کې تجربه درلوده د سیستان حکمران کړ، ده تر (۶۴ هـ) وروسته په سیستان کې د طلحه لښکر راغونډ کړ او څنګه چې د افغانستان خلکو د عربي حکمرانانو اطاعت نه منلو، نو د بست او کابل خواته یې مخه وکړه او د زابل له پاچا رتبل سره بیا ونښت، هغه یې مات کړ د کابل او زابل تر نیولو وروسته له ډېرو ولجو او ګڼ شمېر مریانو سره سیستان ته راوګرځېد، دی تر (۷۲ هـ ۶۹۲ ز) کال د اموي عبدالملک تر وختونو پورې په سیستان کې امیر پاته سو، عبدالملک په همدغه کال حجاج د سیستان امیر وټاکلو او حجاج له خپل خوا امیه د عبدالله زوی سیستان ته واستولو، ده په (۷۴ هـ) کال په بست یرغل وکړ او د زابل له پاچا رتبېل سره یې جګړه وکړه دی یې په یو خروار زرو او دوو میلیونو درهمو اړ کړ، هم یې له هغه څخه د ځان لپاره درې سوه زره درهمه واخیستل، په (۷۵ هـ ۶۹۴ ز) کال عبدالملک اموي، عبدالله د سیستان له امیرۍ څخه لرې کړ، او د ده په ځای یې موسیٰ د طلحه زوی واستولو، خو په سیستان کې د کرکیچ له امله بیا همغه عبدالله د ابي بکره زوی (عبیده بن بکره) چې د سیستان په چارو ښه خبر ؤ، د نیمروز چارو ته وګمارل سو. ده په (۸۷ هـ) کال یو لوی لښکر د حریش بن بسطام په مشرۍ سیستان ته راوستلو، زرنج ښار یې ونیو، او د بکوا دښتې له لارې یې په بست زابل یرغل وکړ، خو رتبیل دا

لښکر له منځه يووړ چي د جيش الفنا په نامه ياد سو. عبدالله يې د ( ۷۰۰ ) زرو درهمو په ورکولو اړوبست کې مړ سو ، نو د ده زوی بوبردعه له رتبېل سره ونښت ، له هغه څخه يې ( ۷۰۰ ) زره درهمه واخيستل سيستان ته ولاړ او له هغې خوا حجاج لس زره مجهز سپاره ( جيش الطواويس ) د عبدالرحمان بن اشعث په مشرۍ په ( ۸۰ هـ ۷۰۰ ز ) کال سيستان ته راولېږل.

عبدالرحمان چي سيستان ته راغی ، د خوارجو ستر سالار هميان د عدي زوی له غښتلي لښکر سره په سيستان کې له ده سره جګړه وکړه ، خو هميان مات سو ، عبدالرحمان د خوارجو ډېر مشران ووژل بيا يې په بست يرغل وکړ او تر هغه وروسته يې د زابل له رتبېل سره سخت جنګ وکړ او له زياتو ولجو سره سيستان ته ولاړ ، همدا چي عبدالرحمان ته په سيستان زابل ، کابل او سند کې لوی ځواک په لاس ورغی نو ياغي ؤ ، له حجاج سره د جنګ لپاره عراق ته ولاړ ( ۸۲ هـ ) ، خو مانه يې وکړه او بېرته د سيستان زرنج ته راغی ، په دغه وخت کې حجاج د شمالي خراسان اميرمهلب ته ليک واستولو ، او هغه مفضل يې له لوی لښکر سره د عبدالرحمان دځپلو لپاره وګماره ، عبدالرحمان له سيستان څخه د بست خواته په شا سو ، د مفضل لښکر ورپسې ولاړ ، د بست او رخد تر منځ يې سخته جګړه وکړه ، دلته عبدالرحمان مات سو او د زابلستان رتبېل ته پناه يووړه ، خو حجاج ، عماره بن تميم دتبېل ته استازی واستولو ، ټول مالي تکليفونه يې هغه ته وبښل ، د تل لپاره يې د دوستۍ ژمنه ورسره وکړه . رتبېل عبدالرحمان او دهغه ملګري ابوالعنير ونيول او غوښتل يې چي د حجاج استازي ته يې وسپاري ، خو هغو دواړو ځانونه له بامه راوغورځول او مړه سول دا پېښې د کندهار د ارغنداو د ناوې په رخج ( رخد ) کې تر ( ۸۴ - ۸۵ هـ ) کال پورې منځته راغلي دي .

تر دې وروسته ( په ۸۶ هـ - ۷۰۵ ز ) کال مسمع د مالک زوی سيستان ته ولېږل سو ، له ابوخلده خارجي سره يې جګړې وکړې او هغه يې ونيو ، خوڅنګه چي مسمع په همدغه کال مړ سو ، د ده په ځای قتيبه د مسلم زوی راغی ، ده چي شمالي خراسان ته مخه وکړه ، اشعث د بشر زوی يې په سيستان کې پرېښودلو ، په ( ۸۸ هـ - ۷۰۶ ز ) کال يې په بست کې له رتبېل سره جګړه وکړه او تر ده وروسته عمرو د مسلم زوی ( د قتيبه ورور ) همدغه کار تکرار کړ او په اتو سوو زرو درهمو يې روغه وکړه ، څو کاله وروسته په ( ۹۴ هـ ) کال قتيبه دمسلم زوی له خراسانه سيستان ته ولاړ ، رتبېل له ده څخه ووېرېدلو او په کال يې يو ميليون درهمه خراج ومانه .

تردې وروسته تر ( ۱۰۸ هـ - ۷۲۶ ز ) کال پورې يو شمېر خلک د سيستان په اميرۍ وټاکل سول ، خو له سيستانه هاخوا په مخ ولاړ نه سول ، د هشام اموي په وخت کې اصفح د عبدالله زوی دمحمد بن جحش په سپه سالارۍ دلته راغی ، دی په ( ۱۰۹ هـ ) کال له سيستانه ووت او له زابلي رتبېل سره يې

سختې جګړې وکړې ، چې په هغو کې په خپله اصفح او نور ډېر مسلمانان ووژل سول ، تر هغه وروسته په سیستان کې د عربي تېرونو تر مېنځ بېلتون راغی چې تر ( ۱۳۰ هـ ۷۴۷ ز ) پورې یې دوام وکړ ، د اموي دولت له پلاز مېنې هم ډېر سرې د دغه ځای د امیرانو په توګه راغلل چې دا دوره په سیستان کې د اموي دولت تر سقوطه په کورنیو جګړو کې تېره سوه ، خو اسلامي لښکرو د دریاب له لارې د سند په ځمکه یرغل وکړ او په اموي عصر کې یې تر ( ۹۶ هـ ۷۱۴ ز ) کال پورې د هغه ځای لوی ښارونه لکه ارمابېل ، دېبل ، نیرون ، سیوستان ، اشیهار ، برهمن آباد ، ارور ( روهري ) بابیه ، ملتان او نور د لوی فاتح محمد بن تر شا وخوا پورې د اسلامي سالارانو تر امیری لاندې پاته سوه ، په دې توګه مسلمانانو د افغانستان د جبهې شاته هم خپل فتوحات په مخ بوتلل ، خو لکه چې ولیدل سول د افغانستان خلکو له مرو او سیستان څخه نیولې تر کابل او پېښور پورې څه د پاسه یو سل کاله د عربو د بریالیو لښکرو په مخکې مقاومت وکړ ، داغرونه تل د خونړیو جګړو ډګر ؤ او هغه وخت چې رتابله او کابل شاهانو په زابل او کابل کې د عربي بریالیو په لاس ماته کوله ، د جبهې شاته یانې ګردیز ، پېښور او ویهند ته یې پناه وړه ، د خپل ځواک تر پیاړیو وروسته یې بېرته په کابل او زابل یرغل کاوه ، او د عربو ساخلوګان یې پوپنا کول ، په دې توګه یوه پېړۍ په دغو جګړو کې تېره سوه او د افغانستان خلکو په دې مقاومتو کې په ډېره مېړانه خپلواکي ساتله ، دوی د اسلام دین هم ورو ورو ومانه ، په دې وختونو کې د ګندهارا ولایت له کابله تر پېښوره او ویهند ، کندر ، سند او ټکسیلا پورې د ګریکو بودیک د مدنیت او هنر مرکز ؤ ، او په دغه هېواد کې بودايي او برهمني لوی مزدکونه موجود وو .

**اخځونه** : د البلاذري فتوح البدان ، طبري ، چچ نامه ، تاریخ سیستان ، الاصابه ، افغانستان بیک نظر ، جغرافیایي تاریخي ایران ، دائرة المعارف اسلامي ، فتوحات عرب درآسیای میانه ، خلافت د میور په قلم ، معجم الانساب زمباور ، تاریخ یعقوبي د ابن اثیر الکامل ، د یعقوبي البلدان ، د ګردیزي زین الاخبار ، مجمل فصیحي ، سي یو کې د هیون څانګ ، راجه ترنګیني د کلهنه ، د ایلیت د هند تاریخ ، د افغانستان تاریخ ۱ – ۲ ، کتاب الهند ، مروج الذهب ، مادرزبان دري ، طبقات ناصري ، دندوی د سند تاریخ .

# د عباسیانو واکمني

# (۱۳۲ - ۲۵۶ ه)

په افغانستان کې د راشده خلافت او اموي امارت يو سل او دېرش کلنه اسلامي دوره په کړکېچ او جګړو تېره سوه ، د دغه هېواد خلکو لومړی د عربي دولت سياسي او لښکري واک نه مانه (اودنه منلو علت يې د، دویم دا چي د بني هاشم او بني اميه تر مېنځ په اختلاف کې د آل هاشم په خواږ وروسته ترهغو چي اسلام يې ومنلو او له وسلې څخه يې لاس واخيستلو ، تل يې دا هغه څه وه ، چي خلافت دې بېرته بني هاشم ته ورکړل سي او د دغه انقلاب په ترڅ کې يې زيار وايستلو ، چي خپله واکمني او خپلواکي بيا ټينګه کړي .

دهمدغه موخې لپاره دخراسان يو نوميالی عبدالرحمان په ابومسلم مروزي پېژندوی ( چي په ۱۰۰ ه زېږېدلی ؤ ) د بنداد هرمو د زوی له مرو څخه درې فرسخه لېرې دماخان له خلکو څخه د دې بلنې مخکې ( پېشوا ) سو . او په ( ۱۲۴ ه ۷۴۱ ز ) کال په ۲۳ کلنۍ کوفې ته ولاړ او په مکه کې يې له امام ابراهيم عباسي سره وکتل ، خلک يې دعباسي کورنۍ دبلنې تائيدولو ته راوبلل ، چي له هغه سفره بېرته هېواد ته راغی په ( ۱۲۹ ه ۷۴۹ ز ) کال يې دافغانستان په شمالي سيمو کې له مرو څخه نيولې تر تخارستان پورې خلک له ځان سره کړل ، او دعباسي کورنۍ خلافت يې اعلان کړ، تور بيرغ يې چي ددې بلنې نښه وه، ورپاوه او په خپله لښکري چوڼۍ کې يې لوی اوربل کړ، ځان يې د ( شهنشاه ) په لقب ونوماوه دخراسان د اموي حکمران نصر د سيار د زوی او ابومسلم تر مېنځ سخته دښمني پېښه سوه ، او مروان اموي په ( ۱۳۱ ه ۷۴۸ ز ) کال د امام ابراهيم سر د آهکو په بنۍ کې وپېچلو او ويې وژلو ورور يې عبدالله سفاح کوفې ته وتښتېد ، خو ابومسلم تر خراسان په مخ ولاړ او له خراساني لښکرو سره په کوفه ورننوت ، په ( ۱۳۲ ه ) کال يې دکوفې په لوی جومات کې د عباسي عبدالله سفاح په نامه خطبه وويله ، او د امويانو د دولت نسکورېدل يې اعلان کړل ، د دغه مهم کار او دعباس کورنۍ دخلافت تر بنسټ ايښودلو وروسته بېرته هم ونيو ، په ( ۱۳۶ ه ) کال په دېر شاهانه برم وپرتم مکې ته ولاړ، خو د سفاح ورور خليفه منصور دوانيقي د ابومسلم له ستر شخصيت څخه ووېرېدلو، دی يې په (۱۳۷ ه ۷۵۵ ز) کال په ۳۷ کلنۍ ووژلو او خراسان يې دعباسيانو په امپراطورۍ کې دننه وساته . خو په همدغه کال دابومسلم له سکروټو ډک نغري څخه بيا لمبې پورته سوې ، او د هرات لويديځ خواته د اهروا څخه له کلي څخه زدشتي فيروز سنباد له سلو زرو تنو لښکر سره دابومسلم د غچ او دخپلې خپلواکۍ داخيستلو لپاره دعباسيانو په ضد پورته سو، د تازي د

غرب او تبرستان خواته په مخ ولاړ، عباسي خليفه منصور ، جهور د مرارعجلي زوی د ده جنګ ته لوی لښکري ځواک سره راواستولو، چي سنباد په دې جګړه کې له خپلو شپېتو زرو پيروانو سره ووژل سو. د خراسانيانو بله هڅخه په (۱۴۱ هـ) کال د برازبنده په مشری تر سپين بيرغ لاندې وه چي خليفه منصور خپل زوی المهدي دهغه مخنيوي ته وګماره ، د برازبنده قواوې يې له منځه يووړې او په خپله يې هغه دجګړې په ډګر کې ووژلو. دا ماته د ۱۴۲ هـ کال د ربيع الاول په ۶ مه د دوشنبې په ورځ ده.

په (۱۴۴ هـ ۷۶۱ ز) کال د بست او کندهار خلک هم د منصور په خلاف وښورېدل او دسيستان د حکمران زهير د محمد ازدي له زوی ځخه يې سخته جګړه وکړه او بيا په (۱۵۰ هـ ۷۶۷ ز) کال استادسيس هروي له بادغيسه دحريش سيستاني په ملاتړ راپورته سو، خليفه ۲۴ زره تنه لښکر له خازم بن خزيمه سره د دوی مقابلې ته راواستول ، عمرو، او ابي عون د قتيبه زامنو هم دخليفه په امر له تخارستانه په دوی يرغل وکړ او د (۷۰ زرو) په شاوخوا کې د سيس پيروان يې ووژل او په خپله دی يې بندي کړ چي په بغداد کې ووژل سو، د ده لور " مرجيله " هارون وکړه چي دمامون مور وه ، په (۱۵۱ هـ) کال د زرنج ښار هم بلوا وکړه او دسيستان خلک دخپلو محلي مشرانو محمد د شداد د زوی او آذروبه د مرزبان زردتشي د زوی په مشرتابه دخليفه منصور په ضد وجنګېدل ، او د سيستان والي يزيد د منصور خليفه زوی يې مغلوب کو ، تر هغه وروسته په (۱۶۱ هـ - ۷۷۷ ز) کال يو بل سړی د هاشم بن حکيم په نامه په مقنع مشهور د مرو له ديه کازه راپورته سو ، او په هرات بادغيس او مرو کې يې د سپينو کاليو (سپيد جامه ها) په نامه يوه ډله له ځان سره کړه تر آمو هاخواته پورې وتل ، هملته له خپلو (۳۰ زرو) تنو سره دعباسيانو د لښکرو له خوا له منځه يووړل سول(۱۶۴ هـ) او هم د (۱۶۰ هـ ۷۶۶ ز) په شاوخوا کې په خراسان کې يوسف البرم پورته سو، چي په ميمنه، مرغاب او پوشنج کې يې د بلوا بيرغ ورپاوه ، خو په يوه جګړه کې دخراسان دحکمدار يزيد بن مزيد له خوا بندي او په بغداد کې ووژل سو.

د سيستان په جبهه کې دسفاح په وختونو يوه بستي سړي ، چي بو عاصم نوميد د سيستان امير سو، دا وخت د عباسي دربار له خوا سلېمان کندي له خراسانه راغی او ابوعاصم يې له منځه يووړلو ، په بست کې يې هم له رتبېل سره جګړه وکړه او هغه يې مات کړ ( ؟ - ۷۷۵ ز) خو

بیا د سیستان خلک د حضین بن رقاد په مشرۍ په ( ۱۴۱ هـ ۷۵۸ ز ) کال بلوا وکړه ، چي لومړۍ د عباس منصور له خوا هنادي السري او تر هغه وروسته په ( ۱۴۶ هـ ۷۶۳ ز ) د المهدي ماما یزید د منصور زوی د سیستان دحکمران په حیث راغی ، خو څه موده وروسته بېرته ولاړ ، او د ده په ځای په ( ۱۵۵۱ هـ ۷۶۸ ز ) کال معن د زایده زوی سیستان ته راغی او تر رخج ( د ارغنداو تر ناوې ) په مخ ولاړ او په هغه جګړه کې چي له رتبېل سره یې وکړه ، د هغه زوم یې چي ( ماوند - یاوماند ) نومېد له دېرشو زرو تنو لښکرو سره بندي ونیو او بغداد ته یې واستولو ، خو په ۱۵۲ هـ ) کال د سیستان خلکو د معن نس څیرې کړ په دې وخت کې په سیستان کې د خوارجو شورښت ډېر تېز ؤ ، په ( ۱۵۹ هـ ۷۷۵ ز ) کال حمزه د مالک زوی د مهدي خلیفه له خوا سیستان ته راغی ، او سیستاني خارجي نوح یې وځپلو د سیستان له نورو غوره پېښو څخه د تمیم د سعید د زوی واکمني وه چي د مهدي له درباره په ( ۱۶۹ هـ ۷۸۵ ز ) کال سیستان ته راغی ، د بست او رخج خواته یې لښکر ویوست ، له رتبېل سره یې جګړه وکړه او د هغه ورور یې بندي او عراق ته یې واستولو .

خو دهارون الرشید په وختونو کې له ( ۱۷۱ هـ ۱۸۷ ز ) کال څخه جعفر د محمد طوسي زوی او تر هغه وروسته عباس دجعفر زوی په ( ۱۷۳ هـ ) کال د خراسان حکمرانان وو ، او بیا په ( ۱۷۴ هـ ) کال خالد الغطریف ، په ( ۱۷۶ هـ ) کال حمزه د مالک زوی دخراسان په امیرۍ وټاکل سول ، په ( ۱۷۷ هـ ) کال فضل د یحیی برمکي بلخي زوی د بغداد د دربار له خوا د خراسان حکمران سو او په دغه ځای کې یې یو غښتلی لښکر دخراسان د لښکر په نامه جوړ کړ ، چي شمېر یې نیم میلیون تنو ته رسېدلو ، چي ډېر نفوذ یې پیدا کړ او په ( ۱۷۹ هـ ۷۹۵ ز ) کاله له خراسانه بغداد ته وګرځېد ، دی د خراسان د خلکو په مرسته د عباسي دربار یو سپین روبي نومیالی سو او همدا د بلخي برمکیانو نامتو کورنۍ د یحیی بن خالد برمکي له اولادې څخه وه ، چي د هارون الرشید په وختونو کې یې دوه زامن فضل او جعفر په عباسي دربار کې وزیران سول ، خو په پای کې د خلافت دبار د دوی له ډېر نفوذ څخه ووېرېدلو خراسانیانو چي تل د خپلواکۍ د اخیستلو لپاره هڅې کولې ، ځکه نو هارون الرشید دا ستره کورنۍ چي دعباسي دولت تول واک یې په لاس کې اخیستی ؤ ، د قتل په عام وسیله پوپناه کړه ( ۱۸۷هـ-۳-۸ز ) .

د فضل برمکي تر امارت وروسته علي د عيسى زوی دماهان لمسی په (۱۸۰ هـ) کال او بيا هرثمه د اعين زوی په (۱۹۱ هـ) کال او عباس دجعفر زوی په (۱۹۳ هـ) کال د خراسان اميران وو، خو په سيستان کې دهارون دجلوس په کال بلوا وسوه، چي کثير د سالم زوی دهغه ځای عربي حکمران بغداد ته وتښتيد، تر هغه وروسته عثمان د عامره زوی سيستان د ځان تابع کړ او له رتبيل سره يې په رخج کې جګړه وکړه، د بشر له فرقد د زوی او سيستاني حصين سره چي له خپلو سپرو سره بست او سيستان کې ياغي سوی ؤ، سختې جګړې وکړې او تر هغه وروسته په (۱۷۶ هـ - ۷۹۲ ز) کال داؤد د بشر سيستاني حصين سره چي له خپلو سپرو سره په بست او سيستان د ښورښتو دځپلو لپاره په خپله له سيستاني ورتيا ځخه کار واخلي، داؤد لومړی حصين له مېنځه يووړ او سيستان يې آرام کړ، خو د دې لپاره چي داؤد په نيمروز کې پښې ټينګې نه کړې، ژر يې لرې کړ، او د ده په ځای په (۱۷۸ هـ) کال يزيد د جرير زوی د سيستان په حکمرانۍ وګمارل سو، دغه سړي په زابل او کابل يرغل وکړ، او تر هغه وروسته په (۱۸۲ هـ) کال د سيستان حکمران عيسى نو نومي تر کابله په مخ ولاړ.

د دغه مهال له خورا مهمو پېښو ځخه يوه هم دا ده چي په (۱۸۲ هـ) کال په سيستان کې يو نامتو پهلوان چي اميرحمزه دعبدالله سيستاني زوی اد زوطهما سپ له کوله ؤ } ميدان ته راووتلو، دغه نابغ او اتل شخصيت د خراسان دپخوانيو آزادۍ غوښتونکو او خپلواکپالو نوميالیو په پيروۍ په سيمه کې د آزادۍ ولوله توده کړه او عيسى د علي زوی د هارون الرشيد حکمران يې وشاړه، په زرنج يې برې پيدا کړ او په عيسى پسې تر هرات او پوشنج پورې په وخ ولاړ، خو عيسى بېرته دی د سيستان خواته په شا وتمباوه حمزه په نيمروزکې نوی ځواک راغونډ اوبيا يې په نيشاپور يرغل وکړ، کلکې جګړې يې وکړې او په (۱۸۸ هـ) کال بېرته سيستان ته وګرځيد. له دې کبله چي د دغه نيمروزي پهلوان ميدان ته راتګ د عباسيانو د واکمنۍ بنسټ رېږدولی ؤ او خراسانيانو او نيمروزيانو بيا دخپلواکۍ غوښتلو آسمان لړزوونکي نارې پورته کړې وې، ځکه نو په (۱۹۳ هـ ۸۰۸ ز) کال خليفه هارون الرشيد په خپله خراسان ته راغی او حمزه له دېرش زريز تکړه لښکر سره د نيشاپور خواته وخوځيد خوځنګه چي د (۱۹۳ هـ) کال د دويمې خور په مياشت خليفه د خراسان په طوس کې مړ سو، حمزه د عباسيانو له پاتيو ويرجنو سره جګړه ونه کړه، بېرته سيستان ته ولاړ، دبلوچستان او

سند خواته یې برید پیل کړ، په ډېرو فتوحاتو بریالی سو، او په (۱۹۹ هـ ۸۱۴ ز) کال له دغه سفر څخه بېرته راغی او په (۲۱۳ هـ) کال ووژل سو. خو د ده د مېړانې او پهلوانۍ نکلونه تر ډېرو پېړیو دخلکو په ژبو ؤ، او دملي پهلوان په توګه ګڼل کېده، د ده په پیروۍ حرب د عمیده زوی له بسته پورته سو دی د سیستان دخاش له خلکو څخه ؤ او تر (۱۹۹ هـ) پورې له عباسي حکمرانانو سره جګړې وکړې، د آزادۍ غوښتلو نغړی یې تود وساتلو، تر هغه وروسته هم عباسي حاکمان سیستان ته راتلل، خو ریښتیني واک دطاهر د کورنۍ په لاس کې ؤ.

دافغانستان له هغو واکمنو کورنیو څخه چي دعباس کورنۍ دخلافت په جوړښت کې یې له ابومسلم خراساني سره ملګري وکړه یوه د غور د سوریانو کورنۍ وه، چي دماهوی دهمغه کهاله پایځوړ ؤ چي له مخه یې یادونه وسوه، له دې کهاله څخه د امویانو د پېر په پای کې شنسب د خرنګ زوی د غور په غرو کې امارت لرلو، او زوی یې امیرپولاد د (۱۳۰ هـ ۷۴۷ ز) په شاوخوا کې دخراسان په هڅو کې د ابومسلم ملاتړی ؤ، چي تفصیل به یې دغوریانو دحالات په شرح کې راوړل سي.

اخځ: طبري – البلاذري – تاریخ سیستان – طبقات ناصري – پټه خزانه – یعقوبي تاریخ برامکه – البرامکه – انسیکلوپیدیای اسلامي – ابن اثیر – مروج الذهب معجم الانساب – زین الاخبار ګردیزي – زین الاخبار ګردیزي – افغانستان بعد از اسلام لومړی ټوک – الکامل ابن اثیر – مجمل فصیحي – ابن خلدون.

اووم څپرکی

# په اموي او عباسي دوره کې
# د افغانستان ټولنیز او مدني احوال

لکه په تېرو څپرکیو کې چي مو وویل د راشده خلیفه ګانو او امویانو په مهال څو څو واره د خراسان خلک له هرات، مرو او سیستان څخه تر زابل، کابل او تخارستان پورې دعربو دسیاسي واک د خپرېدلو په خلاف وښورېدل، برهمني کابل شاهانو او رتبیلانو آن تر هجرت وروسته د (۱۸۰) کالو په شاوخوا کې هم په کابل، زابل، تخارستان او بلخ کې پاته ؤ، د افغانستان په لویدیځو سیمو لکه: سیستان، هرات، ګوزګانان او مرو کې هم د زدشتي کلتور نښې لیدل کېدلې.
خو دخلکو مقاومت که بودایي ؤ او که زردشتي ډېر کلک او سخت ؤ او د دغه هېواد له خلکو څخه وغوښتل چي د نورو د اطاعت رسۍ په غاړه کې پرېږدي، د امویانو پ، وخت کې د خراسان مشرانو دغه مقاومت ته اسلامي بڼه ورکړه په دې مانا چي د امویانو دامپراتورۍ په خلاف یې دهاشم کورنۍ د پناه غوښتونکو ټاټوبی سو. خو ښایي دا ټکی هېر نه سي چي دغه مقاومت که څه هم دهاشمیانو د پلوۍ بڼه پیدا کړې وه، خو له آره د دغو خلکو د خپلواکۍ غوښتلو په پټ حس ولاړ ؤ. او دلیل یې دا دی چي همدغو خلکو د امویانو د امپراتورۍ بنسټ له بېخه وایستلو، دعباسیانو د امپراتورۍ بنسټ هم دخراسانیانو په لاس کېښودل سو، خو لکه ومو چي لیدل په خراسان کې پرله پسې ښورښتونه او کړکېچونه غلي نه سول، او خراسانیان لکه چي له امویانو سره جنګېدلي وو له عباس کورنۍ سره یې هم جګړه وه، د خپلواکۍ د ګټلو لپاره په دغه هېواد کې ملي پهلوانان پیدا سوي وو او که له امویانو سره دخراسانیانو جګړې یوازې د هاشم کورنۍ په طرفدارۍ پورې تړلې وې، نو په بغداد کې د هاشم کورنۍ او عباسیانو تر ټینګښت وروسته باید په دغه هېواد کې جګړه درېدلي وای
.
خو خراسانیانو او د افغانستان خلکو یو وخت له پخوانیو دینونو څخه د دفاع په نامه، بل وخت د شعوبیه په نامه، کله د آل هاشم د دوستۍ په نامه او بیا د خوارجو او نورو په نامه یوازې یوه موخه په مخ بیوله، چي هغه د پردۍ واکمنۍ له مېنځه وړل او دخپلواکۍ ګټل وو، چي وروسته یې د آل طاهر او آل سامان او نورو محلي واکمنو په واسطه هغه ستره موخه ترلاسه کړه.
د افغانستان دخلکو لپاره دا دوه سوه کلنه جګړه ګټوره وه، په دې مانا چي د اسلام دین یې دهغه له نوي ترقي خوښوونکي روح سره ومانه، خو د پرله پسې جهاد په پایله کې د سیمه ایزو حُکومتونو

خاوندان هم سول ، خراساني کلتور یې له اسلامي او عربي روایاتو سره ګډ کړ او په راتلونکي کې د اسلام د خپرولو او دفاع لپاره غښتلي عناصر سول ، حال دا چې پخواني دینونه یې زاړه سوي او له خرافاتو او اوهامو ډک وو چې په هغه پېر کې د ګټې اخیستلو وړ نه ؤ .

په لومړیو دوو سوو هجري کلو کې په افغانستان کې د اسلام دیانت د زردشتي ، بودایي او برهمني ادیانو ځای ونیو ، عربي ژبه او لیکدود په ټول افغانستان کې خپاره سول خو تر دوو نیمو سوو کالو پورې هم د افغانستان په ختیځو سیمو کې سنسکریټ ژبه او لیکدود له عربي کوفي لیک سره یو ځای موجود ؤ ، لکه چې هغه ډېر پخوانی ډبرلیک چې په توچې ( ختیځ افغانستان ) کې ( ۲٤۳هـ – ۸۵۷ م – جمادي الاولی ) په یوه ډبره لاس ته راغلې په عربي او سنسکریټ دواړو ژبو ده ، چې اوس د پېښور په موزیم کې خوندي دي .

په خراسان ، هرات او سیستان کې هم پهلوي ژبې خپل ځای په همدغه وخت دري ژبې ته پرېښود ، اسلامي علومو تفسیر ، حدیث ، رجال او سیر هم په افغانستان کې دود پیدا کړ ، او په زرنج ، بلخ ، هرات ، مرو او نورو کې لویې اسلامي مدرسې مېنځ ته راغلې ، او هم لوی اسلامي پوهان او نامتو زاهدان لکه امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله د ثابت زوی او د زوطي لمسی ( د کابل د شمال ) ، ابن المبارک مروزي محمد د کرام سیستاني زوی ( د کرامي مذهب مؤسس ) ، ابراهیم بن طهمان باشاني ( هراتي ) محدث ، ابواسحاق ابراهیم بن یعقوب جوزجاني محدث ، ابراهیم ادهم بلخي صوفي ، ابوسلېمان موسی جوزجاني حنفي فقیه ، او ابراهیم بن رستم مروي د ابوحنیفه له ملګریو څخه ، ابوداؤد سجستاني د مشهور سنن خاوند ، ابوحاتم سهل بن محمد سیستاني محدث ، ابوجعفر بلخي منجم ، ابوقتیبه مروزي تاریخپوه ، بشاربن برد تخارستاني عربي شاعر ، علي بن الجهم خراساني عربي شاعر او نور له دې هېواد څخه پورته سول او دعباسي خلافت دربار ته عجمي مدنیت ، آداب او د اداري اصول هم دخراسان خلکو له برمکیانو او نورو یووړل ، د عربي ژبې کلمات په دري ژبه ګډ او اوسنی پارسي ځینې جوړه سوه ، چې په دې ځمکه یې عربي ( سامي ) نسل ګډون او په دغه هېواد کې د عربي آدابو ، دود او دستور خپرېدل پیل سول ، د دغه ځای په اوسېدونکو عربانو سربېره خورا ډېر عربي وسله وال عسکر هم په خراسان کې په جګړه اخته ؤ ، چې د ابن اثیر په وینا د امویانو په وختونو کې د قتیبه په مشرۍ نهه زره د بصرې خلک ، لس زره د بکر له ټبره ، لس زره د تمیم له قبیلې څخه ، څلور زره له عبد قیسه ، لس زره له ازد څخه ، او اووه زره د کوفې له خلکو څخه وو ، چې ټول ( ٤۷ ) زره خالص عربي توکه لښکر او اووه زره هم موالي د حیان بنطي تر مشرۍ لاندې ؤ ، قتیبه له سیمه ایزو خلکو څخه هم لښکر جوړولو ، لکه چې د خراسان له خلکو څخه یې هم له

لسو څخه نيولې تر شلو زرو تنو پورې لښکر راغونډ کړی ؤ، چي له عربي لښکرو سره يې خدمت کولو ، له دې څخه معلوميږي چي په خراسان کې د عربي دولت وسله وال عسکر تر سلو زرو زيات نه ؤ ، همدغه شمېر اسلامي فتوحات په ماوراء النهر کې د چين تر حدودو پورې رسولي وو.

په اموي او عباسي پېر کې اسلامي فتوحات د سند او لويديځ هند ګڼ شمېر ښارونو ته رسېدلي وو، ځکه نو د هند زياتره پيداوار لکه دارو، عقاقير او بدلي شيان او هندي مصنوعات د ملتان د بيل منصوره ، ويهند ، ارور ( رهري ) ، قنداييل ( ګنداوي ) مرکزو څخه له کشميره نيولې د سند د مهران د سيند تر مجري پورې د زابل سيستان او هرات له لارې ايران ، عراق او عربي متمدنو ښارونو ته لکه بغداد ، دمشق او نورو ته دتجارت لپاره وړل کېدل . د اصطخري او ابن حوقل په وينا د قزدار، مکران او توران ( اوسنی بلوچستان ) د فانيذ ( سپينې شکرې ) تجارت په ټول خراسان او عراق کې کېدله او لکه البشاري مقدسي چي وايي ، په توران کې د دانه دارې سپينې شکرې د لوړ ډول لويې کارخانې وې همدا راز د پنجاب تجارتي کاروانونه د اوسني پښتونستان له لارې کابل ، غزنه ، خراسان بخارا او ماوراء النهر ته هم تلل ، او له هغې خوا يې چيني مالونه هند ته وړل ، د خراسان او مرو ورېښمين ټوکران د سوداګرۍ غوره مالونه وو، چي کاروانونه به يې چين ته هم تلل او د صمد په وينا دغه تجارت په عباسي پېر کې بشپړه پراختيا پيدا کړې وه چي هندي لوښي ، د خراسان او سپنه ، د هند او سند عود ، قرنفل ، نارګيل ، د سپنسيو کالي او پيلان د افغانستان له لارې دعربي هېواد لويديځو سيمو ته وړل کېدل ، څنګه چي په خراسان کې د اسلامي حکومت دټينګښت له امله امنيت ټينګ ؤ، نو ځکه دسامانيانو په ښارونو کې دچين تجارت هم زيات سو او هم له بلې خوا څرنګه چي دسلطان محمود فتوحاتو دهند ارت هېواد له عربي هېوادونو سره ونښلاوه نو د منځنۍ آسيا د هېوادونو او ټول خراسان تجارتي بنې هم ځرګند پرمختګ وکړ.

ابوزيد سيرافي وايي چي له هندوستانه پرله پسې کاروانونه خراسان ته او له هغه ځايه هند ته ځي او راځي ، د دغو لويو کاروانونو لار په زابلستان ده چي له همدغه ځايه قزدار ، کيزکان ( کلات ) او مکران ته تلل او د شال ( کويټ ) او بولان د درې او سيبۍ ( سيوی ) له لارې يې له سند سره تجارت کاوه ، د ابن اثير په وينا د هرات او بدليو شيانو ډېر شهرت درلود ، چي له همدې کبله يې په عربي ژبه د هراتي کاليو سوداګر ته " هراء " ويل او هغه وخت چي مقريزي دمصر د مشهورو مسوجاتو د دولو نومونه اخلي يوه ټوټه د خراساني ټوټې په نامه هم د هغو ښکليو زربفتو او مخملو او نورو ټوټو په کتاز کې يادوي له دې څخه معلوميږي چي په مصر کې عربي صنعت ګرانو هم په همغه خراساني نامه او جنسيت دخراساني ټوکرو تقليد کاوه .

د جوزجاني په وينا بلهاري هم د هند له تجارتي مرکزو څخه ؤ، چي هلته د هند او خراسان سوداګر استوګن ؤ او د مښکو سوداګري یې مشهوره وه، همدا راز جلوت، بلوت، لمغان، دینور، ویهند د هند او خراسان تجارتي مرکزونه وو، چي د لومړي یاد سوي ښار تجارتي مالونه ګني (نیشکر) غوایي او پسونه، او د وروستي مښک، مرغلرې او ګران بیه کالي وو.
خو د حدودالعالم د لیکوال په وینا خراسان یو ودان او له نعمتونو څخه ډک ملک ؤ، چي د سرو، سپینو زور او غمیو کانونه په کې وو او د آسونو، کالیو، پېروزو، داروګانو، ورېښمو او مالوچو د پیدا کېدلو ځای او تجارتي لوی مرکزیې نیشاپور ؤ، د خراسان د ښارونو نامتو لاسته راوړلې دا وې. له هراته خمتا، شیرخشت او دوښا، له مالن څخه طایفي وځکې (مویز) له کروخه کشمش، له مرو څخه ښه مالوچ (پنبه) قزین جامونه او سرکه، له ګوزګانان څخه ښه آسونه، کراستي، د آس ټانګونه، زیلو او پلاس له تالقانه وځکې او کراسته، له کندرم کراسته، له بلخه ترنج، نارنج، ګني (نیشکر) او نیلوفر، له تخارستانه پسونه، غله او راز راز مېوې، له سمنګانه (اوسني ایبکه) وځکې او مېوه، له پنجهیره (اوسني پنجشیره) سره او سپین زر، له غوره پرده، زغره، ډال او ښه - وسله، له سیستانه فرشونه، زیلو، خرما او انکوزه، له بسته (د هند لوی تجارتي مرکز) وچې مېوې، ختما (کرباس)، سابون، له درغشه (زمیندارو) زعفران، له بدخشانه سپین او سره زر، بیجاده او لاجورد المانی فون کریمر وایي چي د شبرغان (اوسني شبورغان) تورې د عباسیانو په هېواد کې ډېرې مشهورې وې او دهندي تورو (مهند) تجارت هم له دې لارې کېده، دتالقان کراستي او نور دا وابیدو ورېن شیانو او قالینو شهرت درلود او دهغه ځای تاوده اوبدلي شیان به تېره بیا چوخه او پټو ډېر کارېدل.
هغه لوی ښارونه چي په خراسان، سیستان او زابل کې د تجارت مرکزونه وو د دغه هېواد د کرهنې، تجارت او صنعت په پرمختګ دلالت کوي.
ترکومه ځایه چي د تاریخ له پاڼو څخه معلومېږي دبغداد اموي او د آل عباس دولت له دې سیمو څخه دالاندې عایدات د خراج، جزیې، زکات، د غنایمو د خمس او د دولتي ځمکو د عایداتو او عشر په نامه درلودل.

د جهشياري او ابن خلدون په وينا له خراسانه (۰۰۰، ۰۰۰، ۲۸) درهمه، (۰۰۰، ۲) د زرو ټوټې، (۰۰۰، ۴) غاترې، (۰۰۰، ۱) مريان، (۰۰۰، ۲۰) کالي، (۰۰۰، ۳۰) رطله هرېړه. له سيستانه (۰۰۰، ۰۰۰، ۴) درهمه، (۳۰۰۰) کالي، (۲۰) زره رطله فانيذ (سپينه شکره.

له توران او مکران څخه (۰۰۰، ۴۰۰) درهمه له سيستانه (۰۰۰، ۰۰۰، ۱) درهمه له توران او مکران (۰۰۰، ۰۰۰، ۱) درهمه، خو د سيستان د تاريخ ليکوال تر اسلام وروسته د سيستان عمل د پخوانی روغې په اساس داسې ليکي.

د سيستان ګورتان ور: بست، رخد، کابل، زابل، نوزاد، زمیندار، اسفزاز، خجستان، زر زر درهمه (يو ميليون).

د خراسان عمل د اسلام د حد تر پايه د ۲۰۰ ه په شاوخوا کې اته دېرش ميليونه درهمه.

بيا همدا ليکوال د سيستان د خراج په څېړنه کې وايي. چي د سيستان ټوله ماليه (۵،۳۹۷،۰۰۰) درهمه دي، چي له هغه جملې څخه (۸۵،۰۰۰) درهمه خالص عايدات او جزيه، او پاته (۵،۳۱۲،۰۰۰) درهمه د خراج ډولونه دي خو ابن خردادبه د (۲۳۲ ه) په شاوخوا کې له غوره رسمي لاسوندونو څخه مهم معلومات راټول کړي دي، چي د خلافت اداري او مالياتي نظام همغه ؤ چي په خراسان کې يې تر اسلام د مخه دود درلود د طلا پيسې دينار وې، چي په ۴،۲۵ طلايي درلوده او د سپينو زرو پيسې درهم وې چي په ۲،۹۷ سپين زر يې درلودل، په جنسي مالياتو کې کيلي دود ؤ.

چي کر (د لومړي توري په پېښ) يې ورته ويل او له ۶ خرواره سره برابر ؤ.

ابن خردابذبه د خلافت د ختيځو ځمکو حاصلات داسې ليکي.

سيستان: (۶،۷۷۶،۰۰۰) درهمه رخج، زابلستان او زمیندوار تر تخارستان پورې (۱۴۷،۰۰۰) درهمه سرخس: (۳۰۷،۴۰۰۷) درهمه مروشاهجان: (۱،۱۴۷،۰۰) درهمه مرورود (۴۲۰،۴۰۰) درهمه بادغيس: (۴۴۰،۰۰۰) درهمه هرات او اسفزاز او کنج رستاق (۱،۱۵۹،۰۰) درهمه پوشنګ (۵۵۹،۳۵۰) درهمه تالقان د مروالرود او بلخ تر مېنځ (۲۱،۳۰۰) درهمه غرجستان د هرات او مرو رود او غزته تر مېنځ (۱۰۰،۰۰۰) درهمه او دوه زره پسونه د تخارستان سيمې د بلخ او جيجون ترمېنځ زم (۱۰۶،۶۰۰) درهمه فارياب: (۵۵،۰۰۰) درهمه قبروغن: (قته غن ؟) ۴،۰۰۰ درهمه بونده: (۲۰۰۰ درهمه) برمخان او بنجار: (۲۰۶،۵۰۰) درهمه ختلان او بلخ او غرونه يې: (۱۹۳،۳۰۰) درهمه مندجان: (۲۰۰۰) درهمه خلم: (۱۲،۳۰۰) درهمه روب او سمنګان: (۱۲،۶۰۰) درهمه باميان: (۵،۰۰۰) درهمه کابل: (۲،۰۰۰،۵۰۰) درهمه نغد او دوه زره وينځې د شپږ سوو درهمو په

بيه ريوشاران : ( ۱۰،۰۰۰ ) درهمه مکران : ( ۱،۰۰۰،۰۰۰ ) درهمه شغنان : ( ۴۰،۰۰۰ ) درهمه کست ( خوست ) ( ۱۰،۰۰۰ ) درهمه اخرون : ( ۳۲،۰۰۰ ) درهمه
په دغو عايداتو کې هغه پيسې چي له جزيې څخه لاس ته ورتلې ، له هندوانو او نورو آسماني دين پلويو نامسلمانو څخه اخيستل کېدلې . د امام ابويوسف په وينا په خراسان کې د هريوه سړي په سر درې ديناره تاکل سوي وو ، چي بېوزلي او غريبان په کې شامل نه وو ، دا پيسې د اموي عبدالملک په وختونو کې تاکل سوې وې خو د خراج په ډول کې د مقريزي په وينا په اموي پېر کې د تاکستاني يو جرېب په سر لس درهمه ، له نخلستان څخه اته درهمه او دګنيو له کښت څخه شپږ درهمه ، له مېوه لرونکي ځمکې څخه پنځه درهمه ، د غنمو د کښت له ځمکو څخه څلور درهمه او د اوربشو له ځمکې څخه دوه درهمه اخيستل کېدل .
اوس مونږ له پورتنيو تاريخي کتنو څخه دې پايلې ته رسېږو ، چي د خراسان له ځمکو څخه له نيشاپوره نيولې د سند تر سينده او له جيحو څخه تر عرب بحيرې پورې د عربي دولت ټول مالي عوايد د قدامه او د سيستان د تاريخ د ناڅرګند ليکوال په وينا د ۴۴ ميليونو درهمو په شاوخوا کې ، د ابن خرداد به په وينا د ۴۵ ميليونو درهمو په شاوخوا کې ؤ او که د مقريزي د وينا په بنسټ د هرو لسو درهمو وزن له ۶ څخه تر ۷ مثقالو پورې سپين زرو ګڼو او هر مثقال پنځه افغانۍ بيه ولري ، نو ټول به د ۲۲۵ ميليونو افغانيو په شاوخوا کې وګڼل سي .
د عربي دولتونو د مالي لاسته راوړلو نو په اړه راز راز معلومات سته ، خو له لګښتونو يې خبر نه يو . يوازې د سيستان د تاريخ ناڅرګند ليکوال په سيستان کې د دولت د لګښتونو يو دقيق فهرست ليکلی دی چي له هغه څخه په هغه وخت کې دحکومت لګښتونو ډولونه او اندازه څرګندېدلای سي او مونږ هغه راوړو ، چي د عربي کوچني موازنه د اوسني پېر د دود زېرمو په اساس لاس ته راسي .
نوموړي ليکوال د سيستان د خراج عمل د ( ۵،۳۹۷،۰۰۰ ) درهمو په شاوخوا کې ليکي او لګښتونه يې داسې بيانوي .
خاص دسلطان لپاره : ( ۲،۰۰۰،۰۰۰ ) درهمه د تيموق ؟ جوړول : ( ۲،۰۰۰،۰۰۰ ) درهمه ( بنايي چي د هلمند د رود بند وي ) .د کوره جوړول : ( ۴،۰۰۰ ) درهمه ( موخه يې سېلاب وړې ځمکې دي ) .
د ښارې جوړول : ( ۱۲،۰۰۰ ) درهمه ( د ښار د کلا جوړول موخه دی ) د نورو کلاو جوړول : ( ۵۰،۰۰۰ ) درهمه د بنديانو لپاره : ( ۳۰،۰۰۰ ) درهمه په لوی جماعت کې د روژې لګښتونه ( ۳۰،۰۰۰ ) درهمه ( هرقاري او د مسجد خادم ته د روژې په مياشت ۲۰ درهمه ) د موذنانو لپاره : ( ۲۰،۰۰۰ ) درهمه په هر کال کې د سلو مريانو آزادول ( ۵۰۰ ) درهمه د روغتون لپاره : ( ۱۰،۰۰۰ )

درهمه د بندونو تړل : ( ۲۵،۰۰۰ ) درهمه دشرط ( پوليس ) لپاره : ( ۳۰،۰۰۰ ) درهمه د خراج د بندار ( د ماليې رئيس ) او دهغه د منشيانو لپاره : ( ۵۰،۰۰۰ ) درهمه د صاحب مظالم ( عدليه ) لپاره : ( ۳۰،۰۰۰ ) درهمه د هلمند د پلنو ، لارو او کښتو د ويالو لپاره : ( ۳۰،۰۰۰ ) درهمه په پورتنيو تاکل سويو لګښتونو سربېره د سيستان د تاريخ ليکوال دا اشاره هم کوي چې نور پاته عايدات يې د ابناء سبيل ، ضعيفانو او غريبانو د کاليو او نفقې او نورو هغو لګښتونو لپاره سپمول او ساتل چې د والي په اختيار کې ؤ . سربېره په هغو سکو چې په اموي او عباسي دولتونوکې دخلفاؤ په نامه په ټولو اسلامي ولاياتو کې وهل کېدلې ، په خراسان کې د سند تر سينده د پښوانيو نامسلمانو دولتونو ځينې سکې هم دود وې ، او کله هم د ګندهارا ، پنجاب او باختر د ساساني پاچاهانو يا بوداييي شاهانو په پښوانيو سکو د خليفه نوم او کلمه طيبه هم وهل کېدل .

د خلافت واليان ، چې خراسان ته راتلل ذوي حق درلود ، چې په خپل نامه سکه ووهي . لکه حميد د قحطبه زوی ( د ۱۵۱ هـ په شاوخوا ) او عبدالملک د يزيدزوی ( د ۱۵۹ هـ په شاوخوا ) جعفر د محمد زوی . ( د ۱۷۱ هـ په شاوخوا ) علي د عيسی زوی . ( د ۱۸۰ هـ په شاوخوا ) او هرثمه دا عين زوی . ( د ۱۹۱ هـ په شاوخوا ) او غسان د عباد زوی . ( د ۲۰۲ هـ په شاوخوا ) د بغداد د عباسيانو د وخت هغه واليان وو چې په نيشاپور کې يې په خپلو نومونو سکې وهلې دي ، چې بېلګې يې سته ، او هم ابو مسلم خراساني د ( ۱۳۳ هـ په شاوخوا کې ) د ابو مسلم عبدالرحمان بن مسلم په نامه په مرو کې سکه وهلې ده چې تر اوسه سته .

د اسلامي لښکرو له فتوحاتو سره سم طبعاً د عربي دولت سکې په ټولو مفتوحه هېوادونو کې دود سوې او لکه مقريزي چې ليکي : په اسلامي عصر کې حضرت عمرفاروق د لومړي ځل لپاره د ( ساساني ) کسروي درهمو په وزن او شکل سکې خپرې کړې او په هغو باندې يې " لا اله الا الله وحده ومحمد رسول الله " وليکل ، د دغو درهمو وزن هر لس درهمه شپږ مثقاله سپين زر وو ، حضرت عثمان په هغو باندې الله وليکه ، د اميرمعاويه په وخت کې زياد د ابوسفيان زوی په بصره او کوفه کې داسې درهمونه رواج کړل چې هرو لسو درهمو يې اووه مثقاله سپين زر وزن درلود ، او په هغه سکه چې په دمشق کې د اميرمعاويه له خوا وهل سوې ، د داسې انسان بڼه ليدل کېږي چې توره يې په غاړه ده په اموي پېر کې مصعب د زبير زوی هم په عراق کې د اموي درهمو په بنسټ سکه ووهله او عبدالملک اموي هم په عراق کې د حجاج په ذريعه مصورو درهمونو دود لاره شپږ دانګ ( دوانيق ) وو او په هغو باندې يې " قل هو الله احد " هم ليکلي وو .

تر (۲۰۰ هـ) وروسته په خراسان کې د دغه ځای د کورنیو پاچاهانو لړۍ منځته راغله او د خراسان پاچاهانو لکه طاهریانو ، سامانیانو ، صفاریانو او غزنویانوچي د عباسي خلیفه گانو همهالي وو، یوه په نیشاپور ، طوس ، هرات ، زرنج ، بست ، غزنه ، بخارا ، سمرقند ، مرو، بلخ ، ری او دخپلو هېوادونو په نورو ښارونو کې دارالضرب درلود او د سپنو او سرو زرو سکې یې په کوفي لیکدود ، دود کړې وې چي د پاچا او خلیفه دواړو نومونه ورباندې لیکل کېدل ، دسلطان محمود ځینې سکې د سنسکریټ په لیکدود هم وهل سوې دي ، او ښایي چي دا سکې د هند په هغو ښارونو کې وهل سوې وې چي سلطان محمود فتح کړي وو.

د اصطخري او ابن حوقل په وینا د افغانستان په ختیځو سیمو کې تر سنده پورې یوه سکه د قنهري قنهریات ( گندهاري ) په نامه وه چي د کابل او راولپنډۍ تر منځ ( گندهارا ) ته منسوبه وه او اسماعیله او لودیه حکمرانانو په ملتان کې وهلې وه ، دا سکه له عراقي پنځو درهمو سره برابره وه او همدا رقم د سوچه سرو زرو سکه له هندي دریو درهمو سره انډول وه .

لکه مقدسي چي اشاره کوي ، په منصوره ، ملتان ، گندهارا او توران کې د " من "تول د مکې له منه سره یو ، ؤ او بلې پیمانې ته یې " کیجي " ویل ، چي په کیج او توران کې یې تول له څلوېښتو منو سره برابر ؤ.

خو د اموي هېواد سیاسي وېش داسې ؤ چي د خراسان او ماوراء النهر ټولو مفتوحه ځمکو تر کابل ، پنجاب او سند په عراق عجم پورې اړه درلوده د عراق د والي له خوا دوه تنه عاملان را استول کېدل ، چي د یوه مرکز دخراسان لپاره مرو او دبل مرکز د کابل ، پنجاب او سند لپاره ؤ، خو دغه وېش په عباسي پېر کې چي په افغانستان کې اسلامي فتوحات پراخ سوه ، بدلون پیدا کړ او په څو نورو مهمو او اساسي ولایت ووېشل سو لومړی د خراسان ولایت چي له مرو او هدایت څخه تر بلخ او تخارستان پورې پروت ؤ.

(د خراسان نقشه دې وکتل سي – ۳۹ ).

دوهم د سجستان ولایت چي تر کابله پورې رسېدله .

دریېم توران ولایت ، چي تر مکران او سند پورې رسېدلو او په دغو ولایاتو مالي نظام او د مالیو د اخیستلو د فترونه د هغه له وخت ځانگړیو اداري اصطلاحاتو سره موجود ؤ ، خوارزمي په دې اړه یوه گټوره شرح لیکلې ده ، او د ځمکو خراج یې هم په درې دوله :

لومړی محاسبه ( نغدي يا جنسي ) دویم مقاسمه ( په پیداوار مالیه ) درېیم مقاطعه ( هغه مالیه چي دحکومت او جاګیردار تر منځ ټاکله ) حکومت ته ورکاوه ، او په ټولو ولایاتو کې د خراج ( مالیاتو ) او برید ( پوسته ) او جیوش ( لښکرو ) نفقاتو دیوانونه ، رسایل ( مکاتبات ) . صدقات ، مصادرات ، اوقاف ، رواتب ( تنخواه ) شرطه ( پولیس ) قضا ( عدلیه ) او نور مجود ؤ ، د ابن خلدون په وینا لیکونکي ( کاتب ) مهمه عهده دلروده چي دعربي حکمدارانو ځانګړی باور سړی او صاحب السرو ، خو تنه یې په یوه وخت کې دغه کار ته ګمارل ، رسمي فرمانته او اسناد ټول د کاتبانو له خوا لیکل کېدل او استول کېدل او هغه کار چي نن یې وزیر او سکرټر کوي هغه وخت کاتبانو ته سپارل کېدلو ، تر کاتب وروسته حاجب د وزیر د دربار وظیفه درلوده ، چي زیاتې چارې د حاجب په واسطه اجرا کېدلې او عساکر چي د دیوانالجند یا دیوان الجیش له خوا اداره کېدل عمومًا د الفرسان ( سپاره ) او الرجاله ( پلی ) په ټولګیو وېشل سوي او وسله یې توري ، زغره ، خول ، نېزه ، غشي ، لیندۍ ، منجنیق ، د بابه او ضبور ( یو ډول ټانګ ) ؤ : د عسکرو کالي خت ، لنډ پرتوګ او څپلۍ ( لکه د غرو د پښتنو کالي ) وو ، د لښکر کتارونه په پنځه ډوله وو :

لومړی قلب ( منځ ) چي په هغه کې لوی مشر او قائد ؤ .

دویم میمنه ( راسته خوا )

درېیم میسره ( چپه خوا )

څلورم دبرلیک یا مقدمه ( دمخه خوا ) له بریالیو سره .

پنځم ساقه تر لښکر وروسته او لښکرو مشران هم غالبًا عربان وو خو د قضا نظام په اموي پېر کې داسې ؤ چي :

د صحابه ؤ او تابعینو ، عالمان او صالحان دخلیفه له حضوره او یاد ولایت دحکمرانانو له خوا په مهمو ښارونو او مرکزونو کې دقاضیانو په توګه ټاکل کېدل او دغو قاضیانو د قرآن ، سنت ، اجماع او قیاس یعنې له څلورګونو ادله وو سره سم دخلکو ترمېنځ شخړې حلولې ، په خپل اجتهاد کې آزاد ، خو دشریعت داحکامو په پلي کولو کې د امیرانو د سیاست له اغېز څخه خپلواک وو او دخلیفه عمر بن عبدالعزیز په وینا یې دا پنځه صفات ( پوهه ، بې تمه والی ، زغم ( حلم ) ، په آسمه پسې اقتدا او د پوهې او رایې له خاوند سره ګډون ) درلود ، په

مدونو مجلو یې د قضا فیصلې لیکلې ، ځینو قاضیانو د حکومت تنخوا نه اخیستله ، هغه چا چې اخیستله دکال تر زرو دیناو او دمیاشتې تر لسو دینارو پورې رسېدلو ، همدا راز د امرمعروف اونهی منکر ، د تول او وزن ، د بازار د معاملو د څارنې او د دیني احکامو د تبلیغ لپاره محتسبان مقرر و او په تېره بیا عربي پوهان او د امت صالحان د اسلام د دین د تبلیغ لپاره چې دخراسان مفتوحه هېوادو او په هغو پورې تړلیو سیمو ته راتلل ، لکه چې د (۴۷ هـ) په شاوخوا کې ربیع الحارثي عري حکمران په سیستان او زابلستان کې دحسن بصري (د خپل وخت د لوی عالم) په مرسته اسلامي قوانین پلي کړي وو .

**اخځونه :**

حدودالعالم ، دا السیایي تاریخ الاسلام – عربي – ۳ ټوکه ، البشاري اصطخري ، د البلذري فتوح ، کتاب الوزرا والکتاب ، د ابن خلدون سریزه ، د سیرافي سفرنامه ، د اموي پېر د تجارت تاریخ ، ابن حوقل حضارة الاسلام کتاب الخراج ابن قدامه ، کتاب الهندوا سند ، د امیرعلي مختصر تاریخ عرب ، فتوحات عرب درآسیای میانه ، الکامل ابن اثیر ، تاریخ ادبیات فارسي د صفا ، د ابن ندیم الفهرست ، د پېښور د موزیم دبرلیکونه ، تاریخ سیستان ، تاریخ تمدن ایران ساساني د نفیسي ، د امام ابویوسف کتاب الخراج ، دخلفاؤ په پېر کې د مشرق تهذیب (اردو) . معجم الانساب زمباور ، طبقات ناصري ، مفاتیح العلوم ، تاریخ التمدن الاسلامي د جرجي زیدان ، تهذیب وتمدن اسلامي درې ټوکه اردو ، نقود الاسلامیه د مقریزي ، شرق د رتخت اداره خلافت ، تاریخ عرب دهتي ، د ګوستاو لوبون تاریخ تمدن عرب .

# اتم څپرکی

# دافغانانو خپلواکه اسلامي دوره

## طاهریان

## (۲۰۵ - ۲۵۹ هـ)



اوس چي داسلامي خلافت لښکرو داسلام روح په افغانانو وپیژاند اودوی هم دافغانانو له خپلواک طبیعت سره اشنا شول نودوي هم دیوه خپلواک اسلامي حکومت لړی یوه په بل پسي وغوځولې چي دطاهرانو دوره یې پیلامه بلل کیدای شي ،د دغه کهاله لومړي سړي طاهر د حسین زوی ، د مصعب لمسی ، د رزیق کړوسی او دماهان کوسی ؤ، چي د پوشنگ ( د هرات لویدیځ خواته ننی زنده جان ) له ځواکمنو کهولو څخه ؤ، مصعب د رزیق زوی د بلاغت او ادب نومیالی پوه ؤ، چي دعباسیانو په وخت د پوشنگ حاکم ، او تر هغه وروسته یې زوی حسین ته د پوشنج حکومت لاس ته ورغی ، حسین چي په (۱۵۹ هـ) کال په ۱۸۰ هـ - ۷۹۶ ز ) په شاوخوا کې د پوشنج حکومت لاس ته ورغی ، حسین چي په (۱۵۹ هـ) کال په پوشنج کې زیږیدلی ؤ اود عباس کورنی له درباره دشام او بغداد حکمراني هم ورسپارل سوې وه ، په ( ۱۹۹ هـ ) کال مړ سو . د ده زوی طاهر د خراسان د آزادي پالیو په چاپیریال کې وده وکړه او په اسلامي خراسان کې یې د لومړني ملي حکومت بنسټ کېښود . د خپلواکۍ دلارې د هغو تېرو سربندویانو ستر آرمان دهمدغه ننګیالي په میړانه لاس ته راغی چي دوه سوه کاله یې د دغه سترې موخې لپاره زیات وایست ، په دې توګه :

د هارون الرشید تر مړینې وروسته یې د دوو زامنو "امین او مامون" تر منځ اختلاف پیدا سو ، امین چي په بغداد کې خلیفه سوی ؤ ، علي د ماهان زوی یې له ( ۶۰ ) زرې لښکر سره د خپل ورور جنګ ته واستولو ( ۱۹۸ هـ ) خو مامون چي په خراسان کې ؤ ، څلورخراساني لښکر یې د همدغه طاهر پوشنجي په مشرۍ ولېږل ، او د بغداد د لښکر مشرعلي د طاهر په لاس ووژل سو ، د امین لښکر ماته وکړه ، طاهر په بغداد یرغل او د امین سر یې پرې کړ ، مامون یې د بغداد په تخت کښناوه ، چي ستر برم یې پیدا کړ ، د دغو خدمتونو په بدل کې لومړی د شام حکومت او د بغداد کوتوالي وروسپارل سوه او بیا د خراسان حکمراني د ذوالیمینین له لقب سره ورکړل سوه . ( ۱۹۹ - ۸۱۴ ز ) .

طاهر چي خراسان ته راورسېدلو لومړی یې د خراسان د مرکزیت په ټینګښت او د اداري په یووالي زور واچولو ، او په دوو دریو کالو کې یې کرمان ، سیستان ، هرات ، نیشاپور ، مرو ، جوزجان ، بلخ او تخارستان په خپل مرکز پورې وتړل له دغو غوره فتوحاتو څخه تر ( ۲۰۵ هـ - ۸۲۰ ز ) پورې فارغ سو ، د خپلواکۍ نقشه یې طرح کړه خراسانیانو ته یې پخوانی برم ورپه زړه کړ او وروسته تر هغه چي د ولایاتو له مرکز څخه ډاډه سو ، او خراسانیان یې د ځان مله کړل د ( ۲۰۷ هـ - ۸۲۲ ز ) کال دڅلورمې خور په ۲۴ مه د جمعې په ورځ یې د خراسان دخپلواکۍ اعلان وکړ او دجمعې په خطبه کې یې د مامون نوم یاد نه کړ . دا تاریخي ورځ د خراسان په تاریخ کې لومړی هغه ده چي د آزادۍ په لاره کې د دې سیمې دخلکو تر دوو پېړیو یې هیله پوره سوه او په خراسان کې د ملي حکومت لومړی بنسټ د طاهر پوشنجي په لاس کېښودل سو ، خو له بده مرغه دا زړور او آزادي پال طاهر په همدې شپه وفات سو او د ده زوی طلحه چي یو پوه سړی ؤ او د پلار له خوا د سیستان امارت ورسپارل سوی ؤ ، د پلار په خپلواک مسند کښېناست ، شپږ کال یې په عدالت حکومت وکړ ، خلک یې وروزل ، د بغداد د خلافت دربار هم د ده حکومت په رسمیت وپېژاند او د خراسان دخپلواکۍ غوښتونکو خلکو له هیجان څخه ووېرېدلو .طلحه په ( ۲۱۳ هـ - ۸۲۸ ز ) کال په سیستان کې له خارجي حمزه سره ونښت خو په همدغه کال دا فاضل ، متدین او عادل امیر مړ سو ، ورور یې عبدالله د طاهر زوی ( په ۱۸۲ هـ زېږېدلی ) چي څه مهال په شام او مصر کې حکمران ؤ ، تر هغه وروسته یې د بغداد د دربار له خوا په پارس کې د بابک خرمي په خلاف جګړې کولې ؛ امیر سو ؛ د بغداد دربار دی رسماً د خراسان امیر وپېژندلو . د عبدالله رویه د بغداد له دربار سره ډېره صمیمانه وه ، او تل د خلافت له دښمنانو سره جنګېدلو ، دعربي دولت دښمنان یې له منځه یوړل لکه په ( ۲۱۹ هـ ۸۳۴ ز ) کال چي یې په تالقان کې امام زاده محمد د قاسم زوی بندي کړ د طبرستان حکمران دخلافت په ګټه مات کړ ، د ده حکمدارانو په سیستان کې څو واره دهغه ولایت شور ښتونه آرام کړل عبدالله اووه لس کاله په ټول خراسان او د افغانستان په لویدیځو سیمو حکومت وکړ ، او په ( ۲۳۰ هـ - ۸۴۴ ز ) کال مړ سو ، دی ادیب ، عالم او عمران خوښوونکی پاچا ؤ ، د ده په وختونو کې په ( ۲۲۴ هـ - ۸۳۸ ز ) کال په خراسان کې خوا زړه بوږنوونکې زلزله وسوه ، په ( ۲۲۰ هـ - ۸۳۵ ز ) کال په سیستان کې سخته وچکالي راغله او د هلمند اوبه وچې سوې وې .

تر عبدالله وروسته یې زوی دویم طاهر تر ۱۸ کالو پورې حکومت وکړ ، د ده په وخت کې د سیستان خلک د صالح د نصر زوی او یعقوب لیث په مشرۍ پورته سول او د صفار کورنۍ د امارت بنسټ کېښودل سو ، په دې مانا چي د طاهر له خوا ابراهیم د حضین زوی د سیستان حکمران ؤ ، ابراهیم خپل

نا اهله زوی احمد نومي د بست والي وټاکلو ، احمد له عثمان بن نصر او احمد بستي او بشاربستي سره چي دهغه ولايت نامتو خلک وو ونښت ، دبست او سيستان خلکو له طاهريانو څخه مخ وګرځولو، او په خپله طاهر په ( ۲۳۸ هـ ) کال يې په بست کې له صالح سره بيعت وکړ ، په دغه بحران او فتور کې يعقوب ليث صفاري قوت پيدا کړ او په ( ۲۴۶ هـ - ۸۶۰ ز ) يې سيستان د طاهر له واکمنۍ څخه وايستلو او په خپله طاهر په ( ۲۴۸ هـ - ۸۶۲ ز ) کال مړ سو .

محمد د دويم طاهر زوی او د ده ځای ناستي بې کفايته عياش او تنبل سړی ؤ ، يعقوب ليث صفاري له سيستانه په ده بری پيدا کړ او هغه يې په ( ۲۵۹ هـ - ۸۷۲ ع ) کال بندي کړي ، له دې کورنۍ څخه ابراهيم دمحمد زوی ، د طلحه لمسی ، د عبدالله کړوسی او د طاهر کوسی تر ۲۶۸ هـ پورې دريم طاهر د محمد زوی په نيشاپور کې حکمرانان وو ، خو د دغه کهاله پنځو پاچاهانو په لويديځ او شمالي افغانستان واکمني درلوده ، د افغانستان په سويلي او ختيځو ولاياتو کې رتبېلانو او کابل شاهانو پاچاهي کوله .د طاهريانو کهاله د بغداد خلافت له مرکز سره دوستانه اړيکې ساتل ، د دوی درباري او ادبي ژبه عربي وه او په افغانستان کې يې د زردشتي دين د پايځوړ په خلاف زيار وايستلو لکه په ( ۲۱۳ هـ ۸۲۸ ز ) کال چي عبدالله زردشتي کتابونه وسوځول .

د افغانستان د طاهريانو نومونه دا دي :

۱۰ - طاهر د حسين پوشنجي زوی ( ۲۰۵ - ۲۰۷ هـ ) .

۲۰ - طلحه د طاهر زوی ( ۲۰۷ - ۲۱۳ هـ ) .

۳۰ - عبدالله د طاهر زوی ( ۲۱۳ - ۲۳۰ هـ ) .

۴۰ - دويم طاهر د عبدالله زوی ( ۲۳۰ - ۲۴۸ هـ ) .

۵ - محمد د دويم طاهر زوی ( ۲۴۸ - ۲۵۹ هـ ) .

۶ - دريم طاهر محمد ( ۲۹۵ هـ ) .

**اخځونه** : طبري ، زين الاخبار ، تاريخ سيستان ، روضه الصفا - ابن اثير طبقات ناصري - تاريخ ايران دوره طاهريان - طبقات سلاطين اسلام، معجم الانساب زمباور- تاريخ ادبيات ايران د دکتور صفا - تاريخي اجتماعي ايران تاريخ ادبيات فارسي د سعيد نفيسي .

# د صفاریانو دواکمنۍ دوره
# (۲۴۷ - ۳۹۳ هـ)

د امویانو او عباسیانو په وختونو کې سیستان تل د سیاسي هیجانونو مرکز ؤ، په تېره بیا د خوارجو ډلې په دغه ولایت کې ځای نیولی ؤ او د عیارانو (د فتوت د خاوندانو) ډلې چې د دنتیو سیاسي او ټولنیزو گوندونو په رقم یوه ډله وه، هم په سیستان کې ځواکمن سول، له دې ډلې څخه یو سیستانی میړه چې دلیث زوی یعقوب ؤ، او د سیستان د قرنین په کلي کې زېږېدلی سرته راووت، او له خپل ورور عمرو لیث سره دسیستان دحکمران صالح د نضر د زوی په خدمت کې داخل سو، له درهم بن نضر سره (د ابن خلکان په وینا درهم د حسین زوی د مطوعه زعیم) چې دصالح له خوا د سیستان حکمدار ؤ، سپهسالارۍ ته ورسېد؛ یعقوب زړور او داعیه وغوښتونی سړی ؤ او غوښته یې چې په خراسان او سیستان کې یو غښتلی حکومت جوړ کړي، ځکه چې په دغه وخت کې طاهریان کمزوري سوي وو او د بغداد له ځواکمن خلافت سره یې دمقاومت توان نه درلود. هغه ؤ، چې یعقوب د (۲۴۷ هـ ۸۶۱ ز) کال د محرمې په ۲۵ د دوشنبې په ورځ د خپلو وسله والو عیارانو په مرسته درهم بن نضر او خوارج مات کړل او د سیستان له خلکو یې بیعت واخیستلو. صالح له زاول شاه رتبیل څخه مرسته وغوښتله، خو یعقوب رتبیل ووژلو او بست یې ونیو، په دې جگړه کې شپږ زره تنه ووژل سول، دېرش زره بندیان، زښت ډېر پیلان او زیات غنیمت د یعقوب لاس ته ورغلل.

صالح د نضر زوی د والشتان (د کندهار دشمال) خواته په شا سو، او زابل ته یې پناه یووړه، خو په پای کې د یعقوب لاس ته ورغی او په زندان کې ووژل سو په دې جگړه کې د رتبېل ورور او خپلوان د بندیانو په توگه سیستان ته بوتلل سول (۲۵۱ هـ - ۸۶۵ ز) او په همدغه کال یې عمار خارجي د سیستان په نیشک کې له مېنځه یووړ، په (۲۵۲ هـ) صالح بن حجر د رتبیل د تره زوی د رخج په کوهژ

(کوهک) کې یاغي شو ، یعقوب هغه تر (۲۵۳ هـ) پورې ووژلو او په همدغه کال یې والشتان ، زمیندار او بست هم تصفیه کړل او د تکین آباد (اوسنی کندهار ته نژدې) امیر یې وځاپه ، تر هغه وروسته په هرات کې طاهریانو له حکمران سره ونښت او هرات یې هم ونیو ، د (۲۵۴ هـ) په شاوخوا کې کرمان هم لاس ته راوستلو او په (۲۵۷ هـ) کال یې د رتبیل زوی کابل ته وتښتېد ، چې په (۲۵۸ هـ) کال یعقوب رخج زابل ، (د کندهار) پنجوایي ، غزنه او کابل ونیول او د گردیز په کلا یې چې د ابو منصور افلح د محمد د زوی او لویکی خاقان د لمسي په لاس کې وه یرغل وکړ ، افلح د کال لس زره درهمه خراج ومانه او یعقوب له هغه ځایه بامیان ، تخارستان او بلخ ته لاس راوړل ، په کابل شاه په قهر سو ، پیرو زوند (د کندهار په شاوخوا کې) او بست یې ونیول او سیستان ته ولاړ ، له هغې سکې څخه چې په (۲۶۰ هـ ۸۷۲ ز) یې په بنج هېر (د کابل په شمال کې اوسنی پنجشیر کې وهلې وه معلومېږي چې ټول کابلستان یې نیولی ؤ .

په (۲۵۹ هـ) کال یعقوب د خارجي عبدالرحمان د ځپلو لپاره دهرات کروخ تم ولاړ او هغه ولایت یې ونیو ، په همدغه کال عبدالله د محمد زوی او دصالح سگزی لمسی (اوس هم د سیستان په شاوخوا کې د پښتنو یوه پښنه ساکزی نومېږي) دیعقوب په خلاف په سیستان کې پورته سو ، خو یعقوب مات کړ نیشاپور ته وتښتېد او آل طاهر ته ورغی ، یعقوب ورپسې سو ، آل طاهر او سکزي یې له منځه یوورړل (۲۵۹ هـ تر ۲۶۳ هـ پورې) او لکه ابن خلکان چې وایې " د شاوخوا ټول ملکان لکه د ملتان ملک ، د رخج ملک ، د طبسین ملک ، د زابلستان ملک د سند او منکران ملکان یې د ځان تابع کړل " تر هغو وروسته یعقوب په پارس کې جگړې وکړې او د ۲۶۵ هـ - ۸۷۸ ز) کال د شوال په ۱۴ مه د دوشنبې په ورځ تر ۱۷ کالو پاچاهۍ وروسته د قولنج په ناروغۍ مړ سو .

په اسلامي دوره کې یعقوب لومړنی عادل ؛ واکمن او ښبونکی حکمران ؤ ، چې د افغانستان ټول هېواد یې د آمو له سینده تر سیستان او مکرانه او له بادغیسه ، مرو او هراته تر کابل گردیز ، زابلستانه ونیو ، دعسکرو او وسلو په تنظیم او د خزانو په ډکولو یې زیات وایستلو ، ځکه نو مسعودي دی د نړی له سترو پاچاهانو څخه گڼلی او یو لوی فصل یې د ده د ښه سیاست او ښه تدبیر په ستاینه کې لیکلی دی او وایې چې : د ده په لښکرو کې پنځه زره بختي اوښان اوولس زره صفاري غاترې وې د ده تر مړینې وروسته د سیستان په خزانه کې پنځوس میلیونه درهمه او اتیامیلیونه دیناره وو ، ده پخپل عجمي توکم ویاړل او په هغه منظوم لیک کې چې دبغداد خلیفه المعتمد ته به ولېږه ، د عباسیانو کهاله ته یې اخطار ورکړ چې له دغه هېواده ووزه که نه د تورې ، او قلم په زور به وایستل سي

لنډه دا چې دیعقوب تر مړینې وروسته عمرولیث د ده وروریې په ځای کېښناست ، د خلافت دربار هم هغه دخراسان ، سیستان ، فارس ، کرمان ، هند ، سند او ماوراء النهر په پاچاهۍ ومانه ، په لومړیو وختونو کې د ده سیاسي اړیکې له عباسیانو سره دوستانه وو ، خو تر لږې مودې وروسته المعتمد خلیفه د ده عزل اعلان او د ده قلع او العن یې د خراسان د یوې ډلې حاجیانو په مخ کې بیان کړ.

د ( ۲۶۶ هـ ۸۷۹ ز ) کال په شاوخوا کې د طاهري پاچاهانو د امیرانو له پاڅوړ څخه یوه سړي په خراسان کې پاڅون وکړ ، دا سړی احمد د خجستاني عبدالله زوی ؤ ، د هرات او سیستان تر بریدونو پورې په مخ ولاړ ، خو عمرولیث هغه مات کړ ( ۲۶۷ هـ ۸۸۰ ز ) او تر دې وروسته رافع د هرثمه زوی چې د ابن خلکان په وینا د معتمد خلیفه له خوا لمسیده په خراسان کې د عمرو په خلاف پورته سو ، هرات او فراه یې ونیول ، او د عمرو له لیرې والي څخه یې چې په فارس او عراق کې جنګېده ګټه واخیستله ، خو بیا هم عمرو په هغه بری پیدا کړ ، رافع ماوراء النهر ته ولاړ له ساماني پاچا نصربن احمد څخه یې مرسته وغوښتله او د خراسانیانو زیات یاغیان د ده ملګري سول ، خو عمرو دی له خراسانه تر خوارزم پورې په شا وشاړه او هلته په ( ۲۸۳ هـ - ۸۹۶ م ) کال د عمرو لیث د حکمران محمد بن حمدان د عمرو لیث له خوا د زابلستان والي سو ، او بردعالي د غزني عامل ؤ ، په دغه وخت کې د ګندهارا دوو تنو پاچاهانو ناسد او المان ( په تاریخ سیستان کې همدارنګه راغلي ) په غزني یرغل وکړ ، په داسې مهال چې عمرو لیث په بلخ کې د ( ۷۰ ) زرو نیزه والو سپرو په مرسته د ساماني اسماعیل بن احمد له لښکر سره په مقابله بوخت ؤ ، تر هغې چې په ( ۲۸۷ هـ - ۹۰۰ ز ) کال په یوه جګړه کې لاس تړلی بغدد ته واستول سو ، او هلته د ( ۲۸۹ هـ ۹۰۱ ز ) په شاوخوا کې ووژل سو ، عمرو هم عادل او عمران خوښې پاچا ؤ ، چې زر باطه ( د مېلمنو او بې وسو خلکو لپاره دمه ځایونه ) پنځه سوه لوی جماعتونه او یو زیات شمېر پلونه او لارې یې جوړې کړې ، د ابن خلکان په وینا د هېواد د چارو په ښه تدبیر او ښه سیاست کې یې ساری نه درلود او لکه ابن اثیر چې یې څرګندوي د خپل لښکر او لښکر د افسرانو په احوال ډېر ښه خبر ؤ ، هېڅا نه سوای کولای چې دعمرو له اجازې پرته چاته سزا ورکړي.

تر عمرولیث وروسته د صفاریانو دولت کمزوری سو او بلخي سامانیانو په شمالي افغانستان او هرات باندې د سیستان تر بریدونو بری پیدا کړ ، د صفاریانو پاته خلک تر څه مهاله پورې په سیستان کې حکمرانانان وو ، لکه په ( ۲۸۹ هـ ۹۰۱ ز ) کال چې د عمرو لمسیانو طاهر دمحمد زوی او د هغه ورور یعقوب د امارت خاوندان وو ، دوی یو څه موده په پارس کې په جګړه اخته وو او په ( ۲۹۱ هـ

۹۰۳ز ) کال تر بست او رخج پورې په مخ ولاړل تر هغې چې په ( ۲۹٦ هـ ۹۰۸ ز ) کال لیث د علي زوی دلیث لمسی له دې کهوله میدان ته راووت او طاهر او یعقوب یې د عمرو لیث د مریي سبکري په مرسته ونیول او بغداد ته یې واستول ، دی په خپله د ( شیرلباده ) په نامه په سیستان امیر سو ، تربست ، کش او فراه پورې د ده په نامه خطبه وویل سوه ، لیث خپل ورور معدل زابلستان ته واستولو او په ( ۲۹۷ هـ ۹۰۹ ز ) کال یې تربست رخج ( رخد ) او کابل پورې مال واخیستلو او په ( ۲۹۸ هـ ) کال یې په بست کې په خپل نامه سکه هم ووهله .

خو په پای کې لیث په ( ۲۹۸ هـ – ۹۱۰ ز ) کال په یوه جګړه کې د سبکري په لاس چې د المقتدر خلیفه له خوا یې ملاتړ سوی ؤ ورغی ، په بغداد کې بندي سو او د سیستان خلکو له دې کورنۍ څخه د علي یا ابو علي محمد د محمد د زوی او د لومړي لیث له لمسي سره په ( ۲۹۸ هـ ) کال بیعت وکړ ، تربست ، غزني او کابل پورې یې هم د ده په نامه خطبه وویله ، خو محمد د سیستان ساماني حکمران مات کړ ، بست ته ولاړ څو چې د ساماني احمد د اسماعیل د زوی جنګیالیو دی په ( ۲۹۸ هـ ) کال په رخج کې ونیو ، او بست ته یې راوستلو له نوموړي سبکري سره یې بغداد ته واستولو ، د همدغه کال په پای کې د سیستان خطبه د ساماني حکمران منصور اسحاق په مخکې بلوا وکړه او ابو حفص عمرو د یعقوب زوی د محمد لمسی او د عمرو لیث کړوسی د صفارې کورنۍ لس کلن هلک یې میدان ته راوایستلو او د مولي سندلی په مشرۍ یې چې د صفاریانو له موالیو څخه ؤ ، ساماني حکمران ونیو او د سیستان د عیارانو په مرسته یې د نوموړي ابو حفص په نامه خطبه وویله . خو ساماني دربار حسین د علي مروزي زوی سیستان تر زمینداور او زابلستان پورې تر واک لاندې راوستلو ( ۳۰۳ هـ – ۹۱۵ ز ) په دې توګه د ساماني دربار امیرانو تر رخج ارغنداو او ناوې پورې سیمې ونیولې او د طرابیل ( بنایي چې د رتابیل مصحف وي ) د پخوانیو زما مدارانو پایڅوړ یې په زابلستان کې له پښو وغورځولو ، په ( ۳۱۰ هـ ۹۲۲ ز ) کال احمد د قدام زوی او عزیز د عبدالله زوی د سیستان امیران وو ، چې په ( ۳۱۱ هـ ) کال بیا د سیستان خلک وپاړېدل او امیر ابو جعفر احمد د محمد زوی ، د خلف لمسی او د لیث کړوسی یې د صفاریانو له کورنۍ څخه راوایستلو ، د سیستان د امیرۍ واګې یې وروسپارلې او په رخه کې خطبه هم د ده په نامه وویل سوه ، د ده له خوا بیا حمک د رخج او محمد د بست حکمرانان وټاکل سول ، هېواد یې تر رخج او د هرات تر شاوخوا پورې ونیو ، او تر ( ۳۵۲ هـ – ۹٦۳ ز ) کال پورې یې خپلواک حکومت کاوه ، د ښو اخلاقو خاوند او مدبر سړی ؤ د ده د حکومت ورځې تر ځلوښتو کالو پورې په سیستان کې ډېرې ښې تېرې سوې خو په پای کې په ( ۳۵۲ هـ ) کال په سیستان ووژل سو . تر ده وروسته یې زوی امیر خلف بانو په ځای کښېناست ، خو د ده او د امیر طاهر

ابوعلي تر منځ چي د یعقوب لیث د نیکه د ورور له اولادې څخه ؤ، د سیستان په امارت اختلاف راوتوکېد. چي نوموړی طاهر په (۳۵۹ هـ - ۹۶۹ ز) مړ سو نو زوی یې امیر حسین له امیر خلف بانو سره جنګېدلو او په (۳۷۳ هـ) کال یې له امیر سبتګین څخه چي غزنی یې تر بست پورې نیولی ؤ، مرسته وغوښتله امیر سبکتګین مرسته ورکړه او په همدغه کال یې په منځ کې روغه وسوه، حسین چي مړ سو د سیستان امارت امیر خلف ته پاته سو، ده تر (۳۹۰ هـ ۹۹۹ م) پورې ښه خپلواک حکومت وکړ، څنګه چي دا مهال سلطان محمود له غزني څخه د سیستان امارت ګواښه، ځکه نو خلف د هغه اطاعت ومنلو چي هر کال به د غزني خزانې ته سل زره دیناره ورکوي.
خو سلطان محمود سیستان له خپله هېواده جلا پرې نه ښودلو او په (۳۹۳ هـ ۱۰۰۲ ز) کال یې په هغه ځمکه یرغل وکړ او خلف یې د سپهبد په طاق کې کلابند کړ دی سلطان ته ورغی، خو سلطان د خراسان ګوزګانان ته تبعید کړ او سیستان د سبکتګین کورنۍ د پاچاهۍ برخه سوه، دهمدغه خلف بانو له نسله د (۸۸۵ هـ - ۱۴۸۰ ز) تر شاوخوا او حتی د صوفیانو تر وختونو پورې په سیستان کې سیمه ایز امیران د ملوکو په نامه موجود وو، چي په سیستان کې یې د غزنویانو او نورو تر اطاعت لاندې حکمداري کوله. په افغانستان کې صفاري ملوک د اسلامي پېر لومړني علم دوسته، عمران خوښوونکي او عادل پاچاهان وو، چي په هېواد کې یې سیاسي او دیني یووالي راوستلو، دهمدغو صفاریانو په وختونو کې درې ژبه درباري او ادبي ژبه سوه او محمد بن وصیف سکزي لومړی درې بولله د صفاري پاچا په ستاینه کې وویله؛ په دغه مهال د افغانستان ختیځې سیمې لکه کابل او ګردیز د کابل شاهانو له لاسه ووتلې او له افغانستانه د رتبیلانو او کابل شاهانو کمبله ټوله سوه.
۱۰ - یعقوب د لیث زوی (۲۴۷ - ۲۶۵ هـ)
۲۰ - عمرو د لیث زوی (۲۶۵ - ۲۷۸ هـ) وژل یې په بغداد کې ۲۸۹ هـ -
۳۰ - طاهر د محمد زوی د عمرو لیث لمسي او ورور یې یعقوب د (۲۹۶ - ۲۹۸ هـ).
۵ - ابوعلي معدل دعلي زوی د لومړي لیث لمسی (۲۹۹ هـ).
۶ - ابوخعص عمرو دیعقوب زوی د محمد لمسی او د عمرولیث کړوسی (۳۰۰ هـ).
*۷ - امیر ابوجعفر احمد د محمد زوی د خلف لمسی د لیث کړوسی (۳۱۱ - ۳۵۲ هـ).
*۸ - ابواحمد خلف بن احمد (د ۳۴۴ هـ شاخوا - مړ په ۳۹۹ هـ) ابن بانو.
۹ - امیر طاهر ابوعلي د محمد زوی د طاهر لمسی (د مور له خوا صفاري) (۳۵۲ - ۳۹۵ هـ)
۱۰ - امیر حسین د طاهر زوی (۳۵۹ - ۳۷۳ هـ).
۱۱ - بهاء الدین طاهر د نصر زوی د احمد لمسی (۴۸۰ هـ).
*۱۲ - تاج الدین نصر د طاهر زوی د محمد لمسی (د ۴۸۲ هـ په شاوخوا کې مړ په ۵۵۹ هـ).

۱۳ – شمس الدین ابوالفتح احمد د نصر زوی (۵۵۹ هـ).
۱۴ – عزالملوک محمد د نصر زوی ؟
*۱۵ – تاج الدین حرب د محمد زوی (۵۶۲ هـ – مړ ۶۱۲ هـ).
۱۶ – شمس الدین یمین الدوله بهرامشاه د عثمان زوی (۶۱۲ هـ).
*۱۷ – تاج الدین نصر د بهرامشاه زوی (۶۱۲ هـ).
*۱۸ – رکن الدین ابومنصور د بهرام شاه زوی (۶۱۸ هـ).
۱۹ – شهاب الدین محمود د عثمان زوی (۶۱۹ هـ).
۲۰ – علي د عثمان زوی (۶۲۲ هـ).
۲۱ – شمس الدین علي د مسعود زوی د خلف لمسی د مهربان کړوسی د طاهر کوسی (۶۲۶ هـ).
*۲۲ – نصرالدین د ابوالفتح زوی د مسعود لمسی (۶۵۲ هـ).
۲۳ – شاه نصرت د نصرالدین زوی (۷۲۸ هـ).
*۲۴ – قطب الدین محمد د رکن الدین محمود زوی (۷۳۱ هـ).
۲۵ – تاج الدین د محمد زوی (۷۴۷ هـ).
۲۶ – سلطان محمود د شاه علي زوی (۷۵۱ هـ).
*۲۷ – عزالدین د رکن الدین محمود زوی (۷۳۳ هـ).
۲۸ – قطب الدین د عزالدین زوی (۷۸۴ هـ).
۲۹ – شاه شاهان تاج الدین د قطب الدین زوی (۷۸۸ هـ).
*۳۰ – قطب الدین د تاج الدین زوی (۸۰۵ هـ).
*۳۱ – شاه شاهان شمس الدین د قطب زوی (۸۲۲ هـ).
۳۲ – نظام الدین یحیی د شمس الدین زوی (۸۴۲ هـ).
۳۳ – شمس الدین محمد د یحیی زوی (۸۸۵ هـ).
۳۴ – سلطان محمود ؟
۳۵ – امیر محمد مبارزالدین – (د ۸۴۵ هـ شاوخوا).
۳۶ – قطب الدین علي (۸۲۲ – ۸۴۲ هـ).
۳۷ – شاه حسین د ملک غیاث الدین محمد زوی د احیاء الملوک مؤظف په (۱۰۲۷ هـ) کې.

اخځلیکونه : گردیزي، تاریخ سیستان، تاریخ ادبیات د براون – طبقات سلاطین اسلام – ابن اثیر، طبري، طبقات ناصري وابن خلکان، تاریخ الاسلام السیاسي، مروج الذهب، تاریخ عرب، روضة الصفا، لب التواریخ، گرزیده، معجم البلدان، معجم الادباء، تاریخ تمدن اسلام جرجي زیدان، احیاء الملوک د تهران چاپ، تاریخ ادبیات د دکتور صفا تاریخ ادبیات فارسي د سعید نفسي. په سیستان کې د صفاریانو د ماڼیو د کنډوالو انځور – (۳۲ نومره عکس).

# دسامانیانو دواکمنۍ دوره
# (۲۷۹-۳۹۸ هـ)

د سامانیانو کورنۍ د (سامان خداه) له اولادې څخه وه، چې یو نجیب سړی ؤ، دی د بلخ په کلیوالي سیمو کې حکمران او دین یې زردشتي ؤ؛ د ګردیزي په وینا دی د (۱۹۷ هـ - ۸۱۲ ز) په شاوخوا د مامون الرشید په هڅه مسلمان سو، اسد د سامان زوی د مامون حضور ته لار پیدا کړه، دغه اسد څلور زامن لرل: نوح - احمد - یحیی - الیاس - چې دخراسان دحکمران غسان د عباد د زوی له خوا سمرقند وسپارل سول. د احمد بن سامان زوی چې امیرنصر نومېد په (۲۶۱ هـ ۸۷۴ ز) کال د معتمد خلیفه له خوا د ماوراء النهر په امارت وپېژندل سو، د ده د بخارا حکومت خپل ورور اسماعیل د احمد زوی ته پرېښودلو، خو په (۲۷۵ هـ - ۸۸۸ ز) کال په بخارا کې د دوو ورونو تر مېنځ سخته جګړه پېښه سوه، نصر د اسماعیل لاس ته ورغی او سمرقند ته واستول سو، په (۲۷۹ هـ - ۸۹۲ ز) کال مړ سو، ټول ماوراء النهر او خراسان د اسماعیل په لاس کېووت او د معتضد او مکتفي خلیفه ګانو دربار هم دی رسماً په پاچاهۍ وپېژندلو، هغه د آل سامان د سلسلې بنسټ اېښودونکی دی چې په (۲۸۷ هـ - ۹۰۰ ز) کال یې ځواک پیدا کړ او د بغداد د خلافت دربار هم دی د سیستان د آل صفار په مقابل کې چې د خپلواکۍ غږ یې تر خولې ویوست پیاوړی کړ، په همدغه کال یې په بلخ کې صفاري عمرو لیث بندي کړ او شمالي او لویدیځ افغانستان یې له تخارستانه تر مرو - هراته ونیول او د اېران شمال او ماوراء النهر هېوادونه یې د ساماني هېواد برخه کړل. د مجمل فصیحي په وینا د هند په ځینو لویدیځو سیمو هم د اسماعیل لاس بر سوی ؤ، چې بنايي د فصیحي مو خه ګندهارا وي، محمد د محمد زوی د عبدالله بلعمي لمسی د دري ژبې د تاریخ طبري ژباړن د دغه پاچا پوه وزیر ؤ، اسماعیل په (۲۵۹ هـ - ۹۰۷ ز) کال مړ سو (د اسماعیل ساماني د قبرعکس - ۴۳ نومره).

د اسماعیل تر مړینې وروسته یې زوی احمد په ځای کښېناست، دی په (۲۹۷ هـ - ۹۰۹ ز) کال هرات ته راغی او حسین د علي مروزی زوی یې سیستان ته ولېږلو، آن چې صفاري حکمرانانو معدل ابوعلي چې تر بست او رخجه پورې واکمن وو له مېنځه یووړل، سیستان یې د ساماني اسحاق زوی منصور ته ورکړ، خو لکه له مخه چې وویل سول د سیستان خلکو د سندلې په مشرۍ هغه ونیو (۳۰۰ هـ - ۹۱۲ ز). احمد په (۳۰۱ هـ) کال د خپلو مریانو په لاس ووژل سو، خلکو د هغه اته کلن زوی نصربن احمد په تخت کښېناوه، خود هېواد چارې د هغه پوه وزیر ابوعبدالله محمد د احمدالجیهاني زوی اداره کولې.

په ( ۳۰۲ هـ ۹۱۴ ز ) كال په خراسان كې منصور د ساماني اسحاق زوی ياغي او له سيستان او هراته حسين علي مروزی هم ورسره يو ځای سو.
خو له ساماني درباره سپه سالار احمد د سهل زوی هرات ته راغی ، همدا چي منصور په نيشاپور كې مړ سو ، حسين په ( ۳۰٦ هـ – ۹۱۸ ز ) كال تر سختو جګړو وروسته غاړه كېښودله او وبښل سو . د نصر په وخت كې لكه چي له مخه وليكل سول د سيستان ولايت د ساماني سيمه ايزو حكمرانان او اميرانو تر مينځ لاس په لاس ګرځېدله . د دغه پېر نورې پېښې د افغانستان په تاريخ پورې اړه نه لري.
نصر په ( ۳۳۱ هـ – ۹۴۲ ز ) كال تر دېرشو كالو پاچاهۍ وروسته مړ سو ، او لومړی نوح د ده زوی په ساماني تخت كښېناست .
د ده د وخت له غوره پېښو څخه دافغانستان په شمالي سيمو او خراسان كې د ابوعلي چغاني د محتاج زوی چي د هغو سيمو حكمران ؤ ، سرغړاوی ؤ، چي د ختلان د امير په مرسته يې په بلخ ، ګوزګانان ، سمنګان او تخارستان كې لښكر راغونډ كړ ، خو د اميرنوح لښكر هغه مات كړ، په ( ۳۴۱ هـ ۹۵۲ ز ) كال بيا د ساماني دربار له خوا د خراسان په امارت وپېژندل سو. نوح په ( ۳۴۳ هـ ۹۵۴ ز ) كال مړ سو او زوی يې لومړی عبدالملک په تخت كښېناست . د ده په وخت كې په ( ۳۴۵ هـ – ۹۵٦ ز ) كال ابوالحسن سيمجور د خراسان په سپه سالارۍ وټاكل سو ، خو له هغه څخه خلكو شكايت وكړ او په ځای يې ابومنصور عبدالرازق خراسان ته راغی ( ۳۴۹ هـ – ۹۵٦ ز ) كال ابوالحسن سيمجور د خراسان په سپه سالارۍ وټاكل سو، خو له هغه څخه خلكو شكايت وكړ او په ځای يې ابومنصور عبدالرازق خراسان ته راغی ( ۳۴۹ هـ – ۹٦۰ ز ) ، تر هغه وروسته هم الپتګين حاجب الحجاب د خراسان په سپه سالارۍ وګمارل سو ، او ابوعلي محمد بلعمي د هغه ځای حكمران ؤ.
د ابن مسكويه په وينا : دابوعلي محتاج د له مېنځه وړلو لپاره د مالک زوی بكر وټاكل سو ، چي هغه له خراسانه ورک كړي ، بكر هم هغه د خراسان تر پايه وځغلاوه ، څو چي لومړی عبدالملک په ( ۳۵۰ هـ۹٦۱ ز ) كال مړ سو او وروريې منصور د لومړي نوح زوی د ده په ځای كښېناست ، ده ابومنصور عبدالرزاق د خراسان په حكمدار او د الپتګين د مخنيوي لپاره وګماره دا سړی په ( ۳۵۰ هـ ۹٦۱ ز كال ) له نيشاپوره په شا سو، بلخ ، خلم ، تخارستان او غزني ته راغی او د غزنوي دولت بنسټ يې كېښود .
په ( ۳۵۳ هـ – ۹٦۴ ز ) كال سرهنګ ابوعلي محمد د عباس زوی د هرات د تولک په حصار كې ياغي سو ، د ابوالحسن سيمجور له خوا چي د خراسان حكمران ؤ ، ابوجعفر نومي د هغه د مخنيوي

لپاره پازمن سو چي د تولک تر حصار نیولو وروسته یې د غور ځینې کلاوې هم ونیولې . د منصور په پېر کې د سیستان حکمران خلف د احمد زوی د ساماني دولت له خوا تقویه سو. خو تر هغه وروسته نوموړي خلف په سیستان کې د سامانیانو له اطاعته سر وغړولو ، منصور له هغه سره اووه کاله جګړه وکړه ، چي په پای کې یې روغه سره وکړه ( ۳۷۳ هـ ) خو همدا پېښې د ابن اثیر په وینا د ساماني دولت د کمزورتیا سبب سوې او شاوخوا حکمرانانو ته د مرکز په اړه خامه هیله پیدا سوه.
منصور په ( ۳۶۶ هـ - ۹۷۶ ز ) کال مړ سو او په ځای یې دویم نوح د منصور زوی کښېناست ، د ده په پېر کې یې تر مړینې ( ۳۷۸ هـ - ۹۸۸ ز ) د خراسان حکمراني په ابوالحسن سیمجور پورې اړه درلوده دا وخت الپتګین له دنیا تللی او په ځای یې زوم سبکتګین د غزني د چارو واګې په لاس کې نیولې وې او ابوعلي سیمجور چي د خپل پلار ابوالحسن تر مړینې وروسته یې خراسان تر لاس لاندې ؤ ، د بلخ له حکمران فایق خاصه سره یې لاس یو کړ او په خپل سر سو ، نوح د دوی د ځپلو او د خراسان د چارو د سمولو لپاره د خپل دربار یو سړی چي ابوالعباس تاش نومېدلو ، خراسان ته واستولو او له سبکتګینه یې مرسته وغوښتله ، سبکتګین له خپل زوی محمود سره د دویم نوح ملاتړ ته ورغی ، په ( ۳۸۴ هـ - ۹۹۴ ) کال یې د هرات ښار ته نژدې ابوعلي مات کړ او هغه د دیلمیانو دربار ته پناه یووړه ، دویم امیر نوح سبکتګین ته د " ناصرالدین " لقب ورکړ او د خراسان حکمدار په توګه یې تر غزني ، کابل او بلخ پورې وپېژندلو ، د هغه زوی محمود یې د " سیف الدوله " په لقب د نشاپور حکمدار وټاکلو. دویم امیرنوح او سبکتګین دواړه په ( ۳۸۷ هـ ) کال مړه سول او دویم منصور د دویم نوح سپین زني زوی په ساماني تخت کښېنول سو ، خو د سامان د کهاله د نظام رسۍ وشلېدله ، ایلک خان بخارا ونیوله او بکتوزن دویم منصور ړوند کړ ( ۳۸۹ هـ - ۹۹۸ ز ) وروریې دویم عبدالملک د دویم نوح زوی په تخت کښېناوه ، خو سلطان محمود د هغه ړانده پاچا د کسات اخیستلو لپاره مرو ته ولاړ او په پای کې یې له بکتوز او فایق سره داسې وکړ چي هرات او بلخ ( یاني د افغانستان ترکابله ) دې د محمود وي او نیشاپور او مرو دې د دوی . محمود په ( ۳۸۹ هـ ) کال له دې جګړې راوګرځېد ، او په همدغه کال ایلک خان بخارا ونیوله ، دویم ساماني عبدالملک یې په اوزګند کې بندي کړ او همغلته یې ووژلو. ابونصر ابراهیم منتصر د دویم نوح زوی د سامانیانو وروستني شاهزي په ډېره زړورتیا د محمود له ورور نصر او ایلک سره جګړه کوله، چي په پای کې د محمود په لمسانه په (۳۹۵ هـ ۱۰۰۱-ز) کال ووژل سو، چي همدا د سامانیانو د لړۍ پای ؤ.
د دغه مهال له علمي او اداري نومیالیو څخه دوه نامتو وزیران یو محمد د احمد جیهاني زوی ( د ورکې جغرافیا ټولوونکي ) او بل محمد د محمد بلعمي زوی ( په دري ژبه د طبري تاریخ ژباړن ) او

د دري له پخوانيو شاعرانو څخه هم ابوشکور بلخي ، رودکي دقيقي بلخي ، او ابومحمدهاشم (په بست کې د پښتو شاعر چي په ۲۹۷ ه مړ دی) او نور وو.
د سامانيانو په مهال ، اسلام دين د اسلامي مدنيت له عربي ژبې او ادب سره تر کابله رارسېدلی ؤ، خودهېواد دختيځو سرحدونولکه : ننګرهار، لغمان، کونړ او دخوست او منګل د غرونو اوسېدونکي په خپلو پخوانيو اديانو ، ژبو او مدينت پاته وو او درې ادبياتو ښه وده کړې وه.
(۴۴ نومره د سامان د کورنۍ نسب پاڼه)
۱ - لومړی نصر د احمدساماني زوی (۲٦۱ - ۲۷۹ ه).
*۲ - اسماعيل د احمد زوی (۲۷۹ - ۲۹۵ ه).
*۳ - احمد د اسماعيل زوی (۲۹۵ - ۳۰۱ ه).
*۴ - دويم نصر د احمد زوی (۳۴۲ - ۳۵۰ ه).
*۵ - لومړی نوح د نصر زوی (۳۳۱ - ۳۴۳ ه).
*٦ - لومړی عبدالملک د نوح زوی (۳۴۲ - ۳۵۰ ه).
*۷ - لومړی منصور د نوح زوی (۳۵۰ - ۳٦٦ ه).
*۸ - دويم نوح د منصور زوی (۳۸۷ - ۳۸۹ ه).
*۹ - دويم منصور د دوهم نوح زوی (۳۸۹ ه).
*۱۰ - دويم عبدالملک د دوهم نوح زوی (۳۸۹ ه) د ده تر وژلو پورې په (۳۹۵ ه).
۱۱ - ابوابراهيم منتصر د دويم نوح زوی (۳۹۰ ه) د ده تر وژلو پورې په (۳۹۵ ه).

اخځونه :
ګرديزي - ابن اثير - طبقات ناصري - دايرة المعارف اسلامي - تاريخ سيستان تجارب الامم - تاريخ الاسلام السياسي - مختصر تاريخ ايران د پاول هورن - روضة الصفا ، طبقات سلاطين اسلام ، معجم الانساب زمباور - تاريخ بخارا - لب التواريخ تاريخ يميني - دبارتولد ترکستان - حبيب السير.

نهم څپرکی

## دپښتنو واکمني

(دېړ۳هـ شاوخوا)

له هغه ډېر پخواني کهاله ، چي د کسي ( سلېمان ) په غره ، د غور په غرو او د هغو سيسو په شاوخوا کې يې د پښتنو واکمني او لاربښوونه کوله د کيس عبدالرشيد پښتون ( پټهان ) درې زامن مشهور دي ، چي غرغښت ، بيټني او سړبن نومېدل . د دغه پښتانه کهاله په اړه ډېرې سيمه ايزې افسانې سته ، خو هغه څه چي د پښتنو پخوانۍ تاريخپوه سلېمان ماکو د ( ۶۱۲ هـ - ۱۲۱۵ ز ) په شاوخوا کې په خپله تذکره کې ليکلي او تر هغه وروسته نورو تاريخپوهانو لکه ابوالفضل علامي په ايين اکبري کې ( ۱۰۰۶ هـ - ۱۵۹۷ ز ) ، اخون درويزه ( چي په ۱۰۴۸ هـ - ۱۶۲۸ ز مړ دی ) په تذکرة الابرار او مخزن اسلام کې ، نعمت الله هروي په مخزن افغاني کې ( ۱۰۱۸هـ - ۱۰۶۹ز ) شيخ امام الدين خليل ( چي په ۱۰۶۰ هـ مړ دی ) په تاريخ افغاني کې تائيد کړی دی او تاريخي حقايق دي . دا راښيي چي دغو درې واړو ورونو د ( ۲۵۰ تر ۳۰۰ هـ پورې ) په افغانستان کې د غور له غرو څخه د سلېمان تر غره پورې واکمني او روحاني او قبيلوي نفوذ درلود . د شيخ بيټني ځينې پښتو مناجاتو څخه په پښتو ادبياتو کې منقول او په لاس کې سته ، تر هغه وروسته د سړبن زوی خښبون د سلېمان له غره څخه د غلزيو د کلات سره غره او د غونډان تر غره پورې واک درلود او په ( ۴۱۱ هـ - ۱۰۲۰ ز ) کال د سلېمان په غره کې واکمني او روحاني نفوذ درلود ، د ده د واکمنۍ لمن د سلېمان غره لويديځ پلو ته له " وازې خوا " څخه تر غزني پورې رسېدلو له دغو دوو تنو څخه هم د پښتو پخواني اشعار راپاته دي ( د ۴۰۰ هـ - ۱۰۰۹ ز په شاوخوا ) د خرښبون دري زامن : کند ، زمند او کاسي د پښتنو د ټبرو نوميالي نيکونه دي ، چي د دوی کول لړۍ په افغاني نسب پانو کې معلومه سوې ده .




پاته دې نه وي چي خرښبوني پښتانه د افغانستان په لويديځو سيمو کې خپاره وو ، لکه عبدالرازق سمرقندي چي په غزني او برمل کې د " افغان خرشواني " په نامه د هغو يادونه کوي ، ( ۸۲۰ هـ ) شاوخوا ( مطلع سعدين دويم ټوک لومړی برخه ۳۵۹ مخ ، لاهور چاپ ) . د افغاني انسابو په کتابونو کې دا درې ورونه غرغښت - بيټني او سړبن د پښتنو ټبرو د لړۍ سرونه ګڼل سوي دي ،

**اخځونه :** د سلېمان ماکو تذکرة الاولياء ، پښتانه شعراء لومړی ټوک ، ايين اکبري ، مخزن افغاني ، د درويزه تذکرة الابرار ، پټه خزانه ، د پښتو ادبياتو تاريخ ۲ ټوک ، مطلع سعدين ۲ ټوک ، حيات افغاني ، شوکت افغاني ، صوالت افغاني خورشيد جهان ، د سر اولف کيرو پټانان ، د صوبه سرحد او بلوچستان ګزيټير ، د افغانستان ګزيټير ، تاريخ سلطاني .

# د فریغونیانو دوره

## (ۍ۲۵ - ۍ۴۱ هـ شاوخوا)

دغه کهاله د سامانیانو او غزنویانو په مهال په ګوزګانان کې واکمني درلوده او له دواړو سلطنتي کورنیو سره یې دوستانه اړیکې ساتل، علم روزونکي او سوله پال، پوه پاچاهان وو، د دوی د حکومت شمالي وېش امو سیند او سویلي وېش یې غرستان، غور او تالقان (د کروان رباط ته نژدې) د زمینداور او هلمند تر شاوخوا پورې رسېدله، په غور کې هم د فریغونیانو تر لاس لاندې یو حکمران ناست ؤ. دی غورشاه نومېد. په خپله ګوزګان د سرپل شاوخوا ته ویل کېده، دا کهول تر اسلام له مخه د "ګوزګان خداه" د پاچاهانو له پښت څخه ؤ، چې د فریغون په رباط یې اړه درلود، دا رباط د مقدسي په وینا له اندخود (اوسني اندخوی) او کرکې څخه د یوې ورځې لارې واټن ؤ. د افریغ ویي د دغه هېواد په لرغونیو نومونو کې تر خوارزمه لیدل کیږي خو په خپله د فریغون (د دغه کهاله د لړۍ د مشر په اړه) څه معلومات نه لرو پرته له دې چې دا لعتبي په وینا د درېیمې هجري پېړۍ په شاوخوا کې د افریغون رباط ته نژدې اوسېدله، خو د ده زوی احمد بن فریغون د اسلامي پېر په تاریخ کې د دغه کهاله لومړی سړی دی، چې مونږ یې پېژنو. نرشخي وایي:

په (۲۸۷ هـ - ۹۰۰ ز) کال چې امیر اسماعیل ساماني له عمرو لیث صفاري سره جنګېدلو، امیر احمد فریغوني د عمرو لیث له خوا هم د بلخ حکمران وپېژندل سو. قابوسنامه دی د ډېرو اسونو د ګلو خاوند ګڼي، چې د ورځې یې زر ارزق بهاڼان راوړل او دا خبره مبالغه نه ده، ځکه چې د دې سیمو خلک تر اوسه د آسونو د ګلو په ساتنه او روزنه مشهور دي.

د دغه کهاله یو بل واکمن ابوالحارث محمد د احمد زوی دی چې مونږ هغه د دري ژبې د پخوانی جغرافیې کتاب (حدود العالم) له مخې پېژنو، دی پوه پالونکی واکمن ؤ، چې دا کتاب په (۳۷۲ - ۹۸۲ ز) کال ده ته وړاندې سوی ؤ او د دې کورنۍ د ډېر ځواک په وخت کې حکمران ؤ، اصطخري د (۳۴۰ - ۹۵۱ ز) په شاوخوا کې هغه یاد کړی دی. د بارتولد په وینا (۳۶۵ - ۹۷۵ ز) کال یې خپله لور ساماني زلمي پاچا نوح د منصور زوی ته ورکړه، د العبتي په وینا تر (۳۸۰ هـ - ۹۹۰ ز) کال وروسته نوح د منصور زوی دی د فایق جګړې ته راوغوښت، خو ماته یې وخوړه. ابن اثیر وایي چې په (۳۸۳ هـ) کال نوح له خراسانه ګورګان ته راغی او ابوالحارث د سبکتګین د ملاتړ لپاره هرات ته راغی او د العبتي په وینا، په همدغو وختونو کې خپله بله لور د سبکتګین زوی محمود ته ورکړه او د سبکتګین یوه لور یې خپل زوی ابوالنصر احمد د محمد زوی ته په نکاح کړه، په (۳۸۶ هـ -

۹۹۶ ز ) کال چي سبکتګين مړ سو ، همدغه ابوالحارث د محمود او دهغه د ورور اسماعيل تر مېنځ روغه وکړه ، له محمود سره غزني ته ولاړ او په ( ۳۸۹ هـ - ۸۹۸ ) کال محمود د اسماعيل نيول هم ابوالحارث ته وسپارل دا د تاريخ په پاڼو کي د ابوالحارث وروستی يادونه ده .
العبتي په ( ۳۹۴ هـ - ۱۰۰۳ ز ) کال د فريغون بن محمد په نامه يو تن يادوي چي محمود هغه له بلخ څخه په وروستني ساماني شهزاده منتصر پسې د اندخود او مرورود خواته استولی ؤ ، خو د ده پوره احوال لاس ته رانه غی . د دې کورنۍ يو بل سړی ابونصراحمد د محمد ابوالحارث لاس ته رانه غی .
د دې کورنۍ يو بل سړی ابونصراحمد د محمدابوالحارث زوی دی چي العتبي او ګرديزي په وينا د ګوزګانان وو ، په ( ۳۹۸ هـ - ۱۰۰۷ ز ) کال په هغه جګړه کې چي د قراخانيان او دمحمود ورور تر مېنځ په پل چرخيان کې وسوه دمحمودي لښکر د مېنځ ( قلب ) مشرو او په ( ۴۱۰ هـ - ۱۰۱۰ ز ) کال په پېښنو کې ليکي چي په همدغه کال محمود دغور جګړو ته ولاړ ، خو د ده شهزادګان مسعود او محمد په څوارلس کلنۍ په زمينداور کې د اميرفريغون ګوزګانان له زوی حسن نوي سره او سېدل په همدغه کال اميرابوالحارث مړ ؤ ، ځکه نود ده زلمی زوی حسن دسبکتګين د لورله نسبه د ګوزګانانو د تاج او تخت نامزد ؤ ، خو داسمه معلومه نه ده چي د احسن د همغه فريغون بن محمد زوی ؤ ، که د ابونصر ؟ خو په دې خبر يو چي سلطان محمود العتبي او عوفي په وينا د ابونصر فريغوني لور خپل زوی محمد ته وکړه او د ګوزګانان ولايت يې بېرته ابونصر ته ورکړ او ابو محمد حسن د مهران زوی يې دهغه ځای د چارو په کفالت له ده سره وګمارلو ګواکې د ګوزګان سيمه په ( ۴۰۸ هـ - ۱۰۱۷ ز ) کال بشپړه د غزنويانو تر واکمنۍ لاندې راغلې وه ، ناصر خسرو علوي په دغه بيت کې اشاره ورته کړې ده :

کجاست آنکه فريغونيان زهيبت او
زدست خويش بدادند ګوزګانان را

په دې توګه نو دفريغونيانو کهول د افغانستان د لويديځو شمالي سيمو ، سيمه ايز پاچاهانوو، چې په عدالت نېکنامي او د علومو په پالنه يې شهرت درلود . د فريغون په دربار کې نامتو پوهان او ليکونکي روزل سوي دي چې له هغې جملې څخه : بديع الزمان همداني ، ابو الفتح بستي ، د مفاتيح العلوم خاوند خوارزمي او د حدود العالم ناڅرګند ليکوال دی.

د دغه کهاله نوميالي :

۱ - امير فريغون (۲۵۰ هـ).

۲ - امير احمد د فريغون زوی (۲۷۹ - ۳۳۷ هـ شاوخوا).

۳ - ابو الحارث محمد د احمد زوی (۳۳۷ - ۳۸۹ هـ).

۴ - فريغون د محمد زوی (۳۹۴ هـ شاوخوا).

۵ - ابو نصر احمد د محمد زوی (۳۹۰ - ۴۱۰ هـ).

۶ - حسن د ابو نصر احمد زوی ؟ (۴۱۰ هـ).

---

اخځليکونه :
العبتي ، ګرديزي ، اصطخري ، نرشخی ، مقدسي ، بيهقي ، قابوس نامه ، عوفي ، ابن اثير، مينورسکی د حدود العالم په لمنليکونو ، د بار تولد جغرافيای تاريخي ايران ، معجم الانساب - د مينورسکي مقالې د لندن چاپ.

# د ملتان دلودیانو دوره

## (دې۳۷ - اې۴ هـ شاوخوا)

د ( ۳۶۶ هـ ۹۷۶ ز ) سبکتګین په غزني کې واکمن او ساماني واکمن ، بې واکه او کمزوري سول ځکه نود افغانستان ښارونه له تخارستان او بلخه تر ګوزګانان هرات ، سیستان ، بست او د کابل تر ګردیزه د غزني په پایتخت پورې وتړل سول . ( ۳۶۸ هـ ۹۷۸ ز ) .

په دغه وخت کې دافغانستان ختیځو سیمو تر ماورای سند او ملتان پورې د ملتان د لودیانو په نامتو کهاله اړه درلوده او له لاهوره تر خیبره جیه پاله کابل شاه حکم کاوه هغه وخت چي سبکتګین په کابل او ننګرهار یرغل وکړ، جیه پاله وړاندې ورغی او د غزني په شاوخوا کې یې ورسره جګړه وکړه خو مات سو ، د جګړې د تاوان تر ورکولو وروسته بېرته لاهور ته وګرځېد او د قنوج ، ډهلي ، اجمیر او کالنجر راجه ګان یې له ځان سره ملګري کړل له یولک چمتو سپرو سره تر خیبره راتېر او د کابل سیند په غاړه لغمان ته راورسېد .

سبکتګین له هغه سره جګړه وکړه په زرګونو سرې یې ځینې ووژل او نور یې په شا وشړل ، د سند تر سینده پسې ولاړ، په پېښور کې یې خپل یو امیر له اوو زرو سپرو سره پرېښود او په خپله غزني ته راغی ( ۳۸۱ هـ - ۹۹۱ ز ) په دغه وخت کې ملتان د لودي شیخ حمید په لاس کې ؤ، ( لودي د پښتنو یو نامتو ټبر دی ) دغو لودیانو چي د سبکتګین واک ورځ په ورځ په ډېرېدو ولید له هغه سره یې روغه وسوه او چي جیه پاله ماته وکړه شیخ حمید په ملتان کې په خپل ځای پاته سو او له سبکتګین سره یې تړون وکړ ( ۳۸۲ هـ ) د ده وراره شیخ رضی په اخبار اللودي کې د احمد لودي په وینا د پښتو ژبې له شاعرانو څخه ؤ، چي د حمید لودي په وختونو کې یې د افغانانو په غرو ( سلېمان غره ) کې د اسلام تبلیغ کاوه ، له دې څخه معلومېږي چي د سند او غزني تر مېنځ ځینو افغانانو لا تر دغه وخته د اسلام دین نه ؤ منلی ، لکه چي په ( ۳۷۲ هـ ) کال د ( حدودالعالم ) جغرافیا لیکونکی د کندهار ښار ( د اندس په غاړه ) د برهمنانو او بتانو او لغمان د بتتونو ( بتکدو ) او بتانو او لغمان د بتتونو ( بتکدو ) او بنیهار ( بنیر ) د بت پرستو هندوانو او افغانانو ځایونه بولي ، حال دا چي په همدغه وخت بست غور او رخد اسلامي ښارونه وو او کابل یو داسې ؤ، چي نیمایي مسلمانان او نیمایي یې هندوان وو . د شیخ حمید د مړینې خبر په تاریخ کې نسته خو دومره ښکاري چي په ملتان کې د ده واکمني د سند تر غاړو او د سلېمان تر غره او د سلېمان تر غره پورې رسېدلو . لاهور تر ټکسیلا او ویهند تر کندهاره ( د سند د سیند په غاړه ) په جیه پاله پورې اړه درلوده ، خو په ( ۳۹۲ هـ ۱۰۰۱ ز ) کال محمود ویهند ونیو او په ( ۳۹۶ هـ ۱۰۰۵ ز ) کال چي یې په ملتان لومړی یرغل وکړ. د ملتان حکمران ابوالفتح داؤد د نصر زوی ؤ، نو معلومه سوه چي نصر د شیخ حمید زوی د لودیانو دویم حکمران د ( ۳۹۰ هـ - ۹۹۹ ز ) په شاوخوا حکومت کاوه ، دی تر حمید وروسته دهغه په ځای کښېناست له غزنویانو سره د لودیانو

د کورنۍ په سياسي سيالۍ کې د سلطان محمود له خوا په بده عقيده او د اسماعيلي ملا حده ؤ، دين ته په کروهېدلو تورن سوی ؤ. مګر د پښتو له هېوادنيو اخځونو لکه پټه خزانه او د ده له پښتو شعره ځرګندېږي چي دا تور ناسم او دی ملحد او بې دينه نه ؤ.
ابو الفتح داؤد تر نصر وروسته د ملتان تخت ته ورسېد او په ( ۳۹۵ هـ ۱۰۰۴ ز ) کال سلطان محمود د بهاتيه په حکمران ( بجي راو ) باندې يرغل وکړ، داؤد څه اعتنا ورته ونه کړه، ځکه نو په دا بل کال محمود له نوي لښکر سره د ننګرهار له لارې ورغی، لومړی يې راجه آئنند ه پاله په پېښور کې مات او بيا ملتان ته ورسېد او تر اوو ورځو کلابندۍ وروسته داؤد لودي په کال دوه لکه او په بل روايت دوه کروړه يې د روغې تړون وتړلو او تر ( ۴۰۱ هـ ۱۰۱۰ ز ) کال پورې يې په ملتان او د افغانستان په ختيځو سيمو حکومت وکړ، خو په همدغه کال محمود په ملتان يرغل وکړ او هغه يې ونيو، د کندهار د شمال د غورک په کلا کې يې بندي او همغلته مړ سو. که څه هم چي د داؤد په مړينې د پخوانيو لوديانو کهول له مېنځه ولاړ، خو د داؤد اولاده تر هغه وروسته هم په ملتان کې وه، او د فخرمد برپه وينا د داؤد زوی شيخ د سلطان مسعود تر مړينې وروسته په ملتان بلوا وکړه، چي د سلطان مودود له خوا يو لښکر د لوی حاجب احمد محمد او فقيه سليطي په سپه سالارۍ د ده د سرکوټلو لپاره وګمارل سو، همدا چي لښکر د وايوه کلا ته ورسېد، نوموړی شيخ ته خپلو ملګريو سره منصوره ته ولاړ او غزنوي لښکريانو ملتان ونيو، دا په ملتان کې د لودي کهاله د پياځوړ وروستۍ يادونه ده.
دا کهول په هند کې د اسلامي او افغاني کلتور لومړني ممثل دی، د دغه کهاله دوه تنه شيخ رضي د حميد وراره او نصر د حميد زوی د پښتو ژبې شاعران وو. د دوی شعرونه او ژوند پېښې د پښتو شاعرانو تذکري پټې خزانې د شيخ احمد ابن سعيد اللودي د کتاب اعلام الوذعي في اخبار اللودي ( ۶۸۶ هـ ۱۲۸۷ ز ) په حواله راوړي دي، " ملائکه " هم د هغو افغانيات ليکلي دي مونږ وينو چي لوديانو په ( ۸۵۵ هـ ) کال بيا د بهلول لودي په مشرۍ په هند کې د سلطنت دويمه کورنۍ جوړه کړې او سل کاله يې حکومت کړی دی ( ۹۳۲ هـ ) خو د لوديانو لومړی کهول د افغانستان په تاريخ اړه لري او د بهلول کورنۍ په هند کې پاچاهي کړې ده.
د لومړي کهاله نوميالی.
۱ - شيخ حميد لودي ( د ۳۷۰ هـ شاوخوا ). ۲ - شيخ رضي د حميد وراره ( د ۳۸۰ هـ شاوخوا ). ۳ - نصر د حميد زوی ( د ۳۹۰ هـ شاوخوا ). ۴ - ابو الفتح داؤد د نصر زوی ( ۳۹۵ - ۴۰۱ هـ شاوخوا ). ۵ - شيخ د داؤد زوی ( د ۴۳۲ هـ شاوخوا ).

**اخځونه** : تعلقات هندوعرب - زين الاخبار - د پښتو ادبياتو تاريخ، ۲ ټوک - شوکت افغاني - تاريخ يميني - ملائکه - طبقات اکبري - حدود العالم - تاريخ سند - ابن اثير حيات افغاني - خورشيد جهان - پټه خزانه - آداب الحرب.

# د تخارستان د باينجور کورنۍ

## (۲۳۲ - ۳۷۲ هـ)

د دې نرۍ اميرانو په تخارستان ، بلخ ، خلم ، ترمذ ، اندراب ، پنجهير ، باميان او وخش کې حکمراني کوله او په هغه باينجوره اړه لري چې د عباسي خليفه ګانو منصور او مهدي همهالي وو ، کېداى سي چې تر اسلام له مخه د تګين شاهانو پايځوړ وي .

*۱ - له هغې ډلې څخه : داؤد د الياس زوى چې د ۲۳۲ هـ په شاخوا کې يې سکه وهلې او په ( ۲۵۸ هـ ) کال يعقوب ليث صفاري له ده څخه بلخ ونيو . دى له ۲۳۳ کال څخه تر ۲۵۸ هـ پورې د بلخ او تر ۲۷۹ هـ پورې د تخارستان ، جوزجان ، ختلان او ترمذ واکمن ؤ .

* ۳ - ابوجعفر احمد د محمد زوى او د احمد لمسى ، چې د ۲۷۹ هـ په شاوخوا واکمن ؤ او په ۲۸۸ هـ کال يې په اندراب کې سکه وهلې ده .

* ۴ - جعفر د احمد زوى او د محمد لمسىَ چې تر ۳۱۰ هـ وروسته يې حکومت کولو او په -۳۱۳ ۳۱۰-۳۱۲ -هـ يې په ختل کې سکه وهلې چې اوس هم سته .

* ۵ - احمد د جعفر زوى او د احمد لمسى چې د ۳۷۲ هـ په شاوخوا کې حکمران ؤ او د ګرديزي په وينا د چغانيانو د ابي علي احمد د محتاج د زوى ملګرى ؤ .

د دې کورنۍ ځينې نور خلک هم حکمرانان وو ، لکه داؤد د باينجور زوى چې په ۲۰۶ هـ کال د بصرې عامل ؤ ، هاشم د باينجور زوى چې د وخش او هلاورد حکمران ؤ ، په ۲۴۳ هـ کال مړ دى ، ببګ د عباس زوى او د باينجور لمسى د ختل خاوند ، حارث چې له ۲۷۲ هـ پورې په شاوخوا کې ژوندى ؤ ، حاتم د داؤد زوى او د باينجور لمسى چې د ( ۲۵۱ هـ ) په شاوخوا کې ژوندى ؤ ، حاتم د داؤد زوى او د باينجور لمسى چې د ( ۲۵۱ هـ ) په شاوخوا کې د جوزکرمان حاکم ؤ ، او الياس د هاشم زوى چې په ۲۱۱ هـ کال د مصر سرلښکر ؤ . ( " ۴۶ " ، وګورئ د دې کهاله نسب پاڼه ) .

# د غرســـتان شـــاران
# (۲۸۹ - ۵۵۵ هـ)

لکه مار کورات چي په ایرانشهر کې څرګنده کړې ده . د " شار " کلمه له " شیر " او " شاه " سره ګډه رېښه لري او دا د افغانستان د مېنځنۍ سیمې د یو شمېر واکمنو لقب ؤ، چي د واکمنۍ سیمې یې ختیځ خواته د بامیان د شیرانو د هېواد ګاونډۍ وې او لکه د دغه کتاب په لومړیو څپرنو کې چي مو وویل دا شاهي کهولو څخه د دغه هېواد د هپتالي کوشاني عناصرو پایڅوړ دی او د حکمرانۍ مرکز یې په بشین کې ؤ ، چي شورمین او بغشور هم دهه ځای ښارونه وو او د دغه هېواد ار نوم په اوستایي تلفظ " غرستانه " او په طبقات ناصري کې هم " غرستان " ( په پښتو د غر { کوه } په مانا + ستان ) دي فردوسي یې په شاهنامه کې د " غرچګان " په نامه یادوي او معرب یې غرجستان یا غرشستان دي . د دې سیمې شاران حکمرانان په نیاو (عدل) او داد مشهور وو،

ناصر خسرو قبادیاني په دغه بیت کې د دغو کورنیو او د دوی د حکمرانۍ د مرکزو داسې یادونه کړې ده :

استاده بد به بامیان شیری بنشته بعیز در بشین شاری (۱)

داسې ښکاري چي د غرستان شاران تر اسلام له مخه هم د دې سیمې حکمرانان ؤ ، د دوی د نیکونو یو تصویر چي لاس ته راغلی ، کټ مټ د هپتالي (هیاطله - هون) پاچاهانو ښو ته ورته دي .
په اسلامي پېر کې د غرستان د شارانو یادونه د سلطان محمود د فتوحاتو او د غزني سلطنت تر اداري لاندې د هېواد له اداري تمرکز سره مېنځ ته راځي ، چي یو له دې غرستاني شارانو څخه " شار رشید " په ۳۸۹ هـ کال د سلطان محمود سیاسي مشرتابه او هېواد اداري یووالي ته غاړه اېښې وه ، بل شار

---

۱ - د ناصر په دېوان کې دا بیت ناسم لیکل سوی ، چي سم سو .

ابو نصر محمد ، د اسد زوی دی چي په ۴۰۵ ه کال سلطان محمود بندي کړ او په ۴۰۶ ه کال په هرات کې مړ سو .

۳ - شارشاه ابو محمد د محمد زوی ؤ ، چي د پلار په ژوندانه دغه په ځای کښېناست او له سلطان محمود او ابو علي سیمجور سره وجنګېد او تر ۴۰۶ ه کال مخکې مړ سو .

۴ - شارارد شیر .

۵ - شارابراهیم دارد شیرزوی .

۶ - شارشاه د ابراهیم زوی ، چي لوریې " حور ملکه " د سلطان حسین جهانسوز غوري ماندینه وه .

هغو شارانو چي د سلطان محمود تر وخت وروسته تېر سوي د غزني او غور تر مرکزي واکمنی لاندې ژوند کولو ، خو پوهان او علم پالونکي خلک وو .

اخځیک :

ابن اثیر - تاریخ یمیني عتیبي - دایره المعارف اسلامي ، د غرجستان ماده - نامهای ایراني حبستي - روضة الصفا - تاریخ گزیده - معجم الانساب زمباور - ابن خرد اذبه ۳۹ - معجم البلدان ۳ - ۷۸۵ .

# د اندراب امیران

دا امیران هم د هپتالي کوشانیانو د پخوانیو حکمرانانو له پایخوره ښکاري چي په اسلامي پېر کې یې اسلام منلی او د اندراب په غرونو کې پاته سوي دي ، له دې کبله چي د دوی د حکمرانی سیمه د ستغو غرو په مېنځ کې وه ، نو ځکه د جهانګیرانو له واکمنی خوندي پاته وو .

له دغو امیرانو څخه یوازې د دوو تنو نومونه د دوی له سکو څخه لاس ته راغلي دي او دا سکې د ارمیتاژ په موزیم کې سته :

*۱ - مکتوم د حرب زوی ( د ۳۵۹ ه په شاوخوا ) .

*۲ - سهلان د مکتوم زوی ( د ۳۶۵ له شاوخوا څخه تر ۳۷۴ ه پورې ) .

**اخځیک** : معجم الانساب زمباور - د مارکوف د ارمیتاژ فهرست .

# چغـــانیـــان امیران - آل محـــتاج

چغان (معرب یې صغان) تر آمو ها خو یو ځا دی چي اوس د شوروي تاجکستان جمهوریت سویلي برخه ده په نوموړي ځای کې له پخوانیو زمانو څخه یوه سلطنتي کهاله د " چغان خدات " په نامه حکومت کاوه، چي له آریایي تاجیکو عناصرو څخه ؤ؛ د اسلامي دریمې پېړۍ په سر کې امیر محتاج نومي هلته حکمران او چغان خدات ته منسوب ؤ، چي تر هغه وروسته یې کورنۍ په تاریخ کې د "آل محتاج " په نامه مشهوره سوه ، له دې کورنۍ څخه عادلان او پوهان امیران مېنځته راووتل ، د سامانیانو او غزنویانو په وختونو کې یې د آمو سیند په دواړو غاړو بلخ او تخار باندې د هندوکوش تر شمالي لمنو پورې حکومت کړی دی د محتاج پلار دا یادونه چي احمد نومېدلو د یاقوت په معجم الادباء کې راغلې ده، ژوند یې په (۲۵۰ هـ) اټکلدای سي . د دې کورنۍ نور غړي دا دي .

۱ - له محتاجه یو زوی د ابو سعد مظفر په نامه پاته سو چي د ۴۰۰ هـ په شاوخوا کې یې ژوند او حکومت کاوه ، زوی یې ابوبکر محمد بن مظفر د ساماني نصربن احمد د دربار امیر او په ۳۲۱ هـ کال په محرمه د اسماعیل ساماني د زوی احمد له درباره د سیستان د نیولو لپاره استول سوی ؤ، او په گرگان کې حاکم سو ، په خراسان کې د ده د واکمنۍ ورځې له (۳۲۱ هـ) کاله د ده د مړینې تر کاله (۲۹۳ هـ) پورې وې ، دغه سړي د خراسان په پېښو کې تل د یوه غښتلي او اغېزمن واکمن په توگه لاس درلود او په چغانیان کې ښخ دی .

۲ - ابوعلي احمد د محمد زوی او د مظفر لمسی چي په ۳۲۷ هـ کال د پلار د ناروغۍ په وخت د خراسان سپه سالار او حکمران ؤ، په ۳۲۹ هـ کال په جرجان اوري کې له ماکان بن کاکي سره وجنگېد او هغه یې ووژلو، خو په ۳۳۳ هـ کال چي د امیر نوح بن ساماني د دربار له خوا د خراسان له حکمرانۍ څخه لرې کړایسو، نو سر یې له اطاعته وغړاوه ، نوح یې خلع کړ، په خپله یې د خراسان د چارو واگې په لاس کې ونیولې او د ژوند تر پایه یې د سامانیانو له دربار سره اخ وډوب درلود ، څو چي د ۳۴۴ هـ کال د برات په ۲۹ مړ او په چغانیان کې ښخ سو .

۳ - ابوالعباس فضل د محمد زوی او د مظفر لمسی په ۳۳۳ هـ کال د خپل ورور ابوعلي له خو د بلاد جبل (عراق عجم) په حکومت مامور سو ، او تر هغه وروته د ساماني عسکرو لوی سپه سالار ؤ چي له خپل ورور سره یې هم جنگونه وکړل او په ۳۳۶ هـ کال په بخارا کې بندي سو .

۴ – ابو المظفر عبدالله د احمد زوی ، د محمد بن مظفر لمسی چي تر ۳۳۷ هـ وروسته د ساماني امیر نوح په دربار کې درهین په توگه اوسېدلو ، په ۳۴۰ هـ کال له آسه ولوېد ، مړ سو او په چغانیان کې ښخ دی .

۵ – ابومنصور د احمد زوی ، د محمدبن مظفر لمسی چي په ۳۴۰ هـ کال دچغانیانو دحکمرانی مرستیال ؤ .

۶ – ابوالمظفر طاهر دفضل زوی د محمد لمسی ، د مظفر کړوسی ، د چغانیان والي او ادب پالونکی فاضل سړی ؤ . منجیک ترمذي د ده له ستایونکو څخه ؤ او په ۳۷۷ هـ مړ دی .

* ۷ – فخرالدوله ابوالمظفر احمد د محمد زوی ادبپال والي ، دقیقي او فرخي ستایلی ؤ ، چي د داغگاه مشهوره بولله " تا پرند نیلگون بر روی پوشد مرغزار " د ده په ستاینه کې ده ، سکه یې هم وهلې وه .

د آل محتاج امیرانو په ټولنیزه توگه د سامنیانو او غزنویانو له سلطنتي کورنیو سره خپلې ښې اړیکي ساتل ، د هغو د ساتنې او ملاتړ تر سیوري لاندې یې د هندوکوش د شمالي ولایاتو حکمراني له بدخشان او تخاره نیولې تر مېنځ او جوزجان پورې کوله ، دا کورنۍ د دري ادب له پالونکو څخه گڼل کیږي .

**اخځلیکونه** : تعلیقات چهار مقاله د دکتور معین – معجم الانساب زمباور – ابن البیر – تاریخ یمیني – معجم الدباء – رودکي د سعیدنفیسي – ابن خلدون – روضة الصفا – دائرة المعارف اسلامي – دیوان فرحي – د عروضي سمرقندي چهار مقاله .

وگورئ ۴۷ مه نومره نسب پاڼې دحبیبي مرحوم لند تاریخ )

# سیمجوریان

د " سیمجور " وییې د جستي په وینا په " نامهای ایراني " کې د زرین گور خر ( سیم کور ) په مانا ده او دا د خراسان د یوه سردار ابوعمران سیمجور نوم دی چې د ساماني اسماعیل د احمد د زوی په دربار کې یې د سرمنشي ( دوات دار ) دنده درلوده ( ۲۸۷ هـ ) نو ځکه یې دی " وایي " باله چې د خراسان یوه لویه کورنۍ وه .

۱ - ابوعمران سیمجور د واتي په ۲۹۸ هـ کال د ساماني اسماعیل د زوی احمد له درباره د سیستان په حکمرانۍ وگمارل سو . خو یو کال وروسته ( ۳۰۱ هـ ) سیستانیانو له نصربن احمد سره مخالفت وکړ او سیمجور له هغه ځایه ووت . په ( ۳۱۴ هـ ) کال چې امیر نصر د احمد زوی " ری " ونیو د هغه ځای حکومت یې سیمجور ته ورکړ و دی د خپل مهال زړور او جنگیالی ؤ ، چې په ۱۳۶ هـ کال د خراسان په څنډو کې د ابوالحسن د ناصر اطروش له زوی سره هم جنگېدلی دی .

* ۲ - ابوعلي ابراهیم د سیمجور زوی تر خپل پلار وروسته د مرو ، هرات ، نیشاپور او قهستان حاکم ؤ ( ۳۳۳ - ۳۳۵ هـ ) نوح د نصر زوی ، دی د ابوعلي احمد چغاني تر کوښه کولو وروسته د خراسان په حکمرانۍ وټاکلو ، او څه مهال هم د گرگانو والي ؤ ، ، چې په ۳۳۶ هـ مړ دی .

* ۳ - ابوالحسن محمد د ابراهیم زوی او سیمجور لمسی د پلار تر مړینې وروسته د خراسان سپه سلار او لق یې ناصرالدوله ؤ ، په ۳۵۶ هـ کال له یوه لښکر سره د " ری " نیولو ته وگمارل سو او د ۳۷۸ هـ کال په ذیحجه مړ دی .

* ۴ - ابوعلي محمد مظفر د محمد زوی د ابراهیم لمسی د پلار ت مړینې وروسته د هغه په ځا ی کښېناست او حاجب الباب ؤ ، څه مهال هم د پلار په ژوندانه د هرات حاکم ؤ ، خو تر هغه وروسته په نیشاپور کې د خراسان واکدار او سپه سالار وټاکل سو ، سکه یې هم وهلې ده ، د خپلواکۍ دعوه یې کوله د خپلواکۍ دعوه یې کوله ، تر هغې چې د بلخله حکمران سره یې لاس یو کړ او د ساماني امیر نوح په مقابل کې یاغیان سول ، خو امیر سبکتگین او زوی یې محمود له دوی سره وجنگېدل او د ۳۸۴ هـ کال د روژې په ۱۵ مه ورځ یې په طوس کې مات کړل ؛ ابوعلي خوارزم ته وتښتېد او هلته د ( ۳۸۶ هـ ) کال په روژه کې ونیول سو ، په پای کې سبکتگین ته په لاس ورکړ چې د گردیز په کلا کې بندي ؤ او په ۳۸۸ هـ کال مړ سو .

۵ - ابوالقاسم علي د محمد زوی او د ابراهیم لمسی د هرات والي ؤ او په ۳۸۶ هـ کال نیشاپور ته ولاړ د سبکتگین د دربار له خلکو سره یو ځای سو ، د قهستان حکمراني یې پیدا کړه ، د تیتوالي او

پاسوالي تر لیدلو وروسته له ساماني منتصر سره یو ځای سو ( ۳۹۱ هـ ) په سرخس کې یې د سبکتګین له زوی نصر سره جګړه وکړه ، ونیول سو او غزنه ته یې واستولو.

۶ - ابوالحسن دابوعلي سمجوري زوی : په ۳۸۵ هـ کال چې یې پلار له برمه پرېووت ، دی "ری" ته ولاړ ، خو په نیشاپور کې د امیرمحمود لاس ته ورغی غزني ته واستول سو او په ګردېز کې بندي ؤ.

۷ - ابوسهل د ابوالقاسم علي زوی او د محمد لمسی : د ۳۸۸ هـ په شاوخوا کې ژوند کاوه.

د دې کورنۍ نومیالیو په خراسان د ساماني د وخت او د غزنوي پېر د پیل په پېښو کې لویه ونډه درلوده ، ډېره مهال یې په بشپړ ځواک او خپلواکي حکومت کړی دی ، کله یې هم د پاچا په عنوان سکه وهلې ده ، چې د ابوالحسن محمد ناصرالدوله سکه سته له ۳۷۲ څخه یې تر ۳۷۷ پورې حکومت کړی ، او یوه لوریې د نوح بن منصور ساماني پاچا ښځه وه.

همدارنګه ابوعلي محمد مظفر عمادالدوله ( ۳۷۷ - ۳۸۷ هـ ) هم سکه وهلې وه او خپلواکي یې درلوده وګورئ دافغانستان لنډ تاریخ څخه ۴۸ مه نومره نسب پاڼه ).

**اخځلیک** : دافغانستان لنډ تاریخ څخه

الکامل - تاریخ یمیني - طبقات ناصري - نامهای ایراني ، دبار تولد ترکستان د زامباور معجم ۳۱۰.

لسم څپرکی

# دغزنويانو واکمنو دوره

(۳۵۱-۵۸۳هـ ق)

کله چې د ساماني واکمني کمزورې شوه او واليانو يې د خپلواکۍ اعلان وکړ، نو لدې ډلې څخه يو هم سبکتگين (۳۶۶هـ تر ۳۸۷هـ) ؤ، چې نني افغانستان د پلازمېنې سوېل لورې ته د غزني ولايت په ۳۶۶هجري سپوږميز کال د يو خپلواک دولت په توګه اعلان کړ.

چې دا واکمني په تاريخ کې د غزنوي واکمنۍ او آل سبکتگين په نامه يادېږي. د خپلواکۍ په اعلان سره سم يې په خراسان سمدلاسه بريد وکړ او ترخپلې ولکې لاندې يې راوړ. د همدې سبکتگين په پېر کې د لومړي ځل لپاره د خيبر له درې څخه د لومړي ځل لپاره تېر او پېښور، لاهور او ملتان ښارونه يې خپلې واکمنۍ لاندې راوستل. پې د وخت کې د لاهور واکمن يو هندو راجا جيپال ؤ. ددې راجا واکمني له لاهور څخه نيولې تر پېښور او کابل پورې غزېدلې وه. او د واکمنۍ بريدونه يې د سبکتگين له واکمنۍ سره نښتي ول. کله چې راجا جېپال د سبکتگين واکمني ځواکمن کېدو پر لور وليده، نو هوډ يې وکړ ترڅو غزني تر خپلې ولکې لاندې راولي. نو په همدې هيله د يوه غټ پوځ سره مخ په غزني را هی شو، او بريد يې پيل کړ. مګر پدې جګړه کې د سبکتگين له لاسه يې سخته ماتې وخوړه، او جېپال يې ژوندې ونيوه. جېپال د سبکتگين اطاعت ومانه او ځان يې پدې بانه وژغوره چې کلنۍ خراج به د غزني واکمن ته رالېږي. نو پدې هيله بېرته لاهور ته راپرېښودې شو. کله چې جېپال ورسېد نو له وعدې څخه يې سرغړونه وکړه او د خراج له ورکول يې له وعدې سره سم ونه کړل. نو لدې وجې سبکتگين د بريد تکل وکړ او پېښور يې خپلې ولکې لاندې راووست.

## غزنوي واکمني او محمود

سبکتگين له ۲۰ کاله واکمنۍ څخه وروسته ومړ. غزنوي واکمني له ۹۷۶زېږيز کال څخه نيولې تر ۱۱۸۶از (۳۵۱ - ۵۸۳هـ ق) پورې غزېږي. ددې واکمنۍ پلازمېنه د افغانستان د غزني ښار ؤ. ددې لړۍ نامتو واکمن سلطان محمود غزنوي ؤ، چې پر هندوستان يې ۱۷ ځلې بريد وکړ او په هرځلې بريالې راووت. د سومنات جګړه يې ډېره مشهوره ده، چې پدې جګړه کې يې د سومنات بت دړې وړې کړ او ځان يې په تاريخ کې د بت شکن په نامه ثبت کړ.

له دغه وروسته یې زوی محمود غزنوي د واکمنۍ پر ګدۍ کښېناست. محمود د سبکتګین کورنۍ له ټولو څخه نامتو واکمن ؤ. د اسلامي تاریخ له نامتو واکمنو څخه یو هم سلطان محمود غزنوی دی، چې پر هندوستان یې ۱۷ ځلې برید کړې، چې لدې امله د شهرت لوړو پوړیو ته ورسېد. محمود له کوشنیوالي څخه زړور ؤ، او له پلار سره په ډېرو جګړو کې ملګرې ؤ. واک ته له رسېدو سره سم یې د واکمنۍ په سمبالولو لګیا شو. لومړې یې داخلي اړودوړ کرار کړ، او بیا د واکمنۍ پراخولو پسې شو. شمال کې یې خوارزم او بخارا ونیوله، او د سمرقند د علاقې وړو، وړو واکمنو دده اطاعت و مانه. لومړې یې د بخارا سمرقند، کاشغر چې د ایلک خاني واکمنو تر ولکې لاندې ؤ تر خپلې واکمنۍ لاندې راوستل، او خوارزم کې یو کوشنې خپلواکه واکمني چې د آل مامون په نامه چلېده هغه یې هم له منځه یوړه. سوېل کې یې د رې، اصفهان او همدان چې د بني بویه تر ولکې لانې ول، فتحه کړل. ختیځ کې یې تقریبا هغه ټولې سیمې ونیولې چې نن سبا د پاکستان په نامه یادېږي. محمود د عدل او انصاف او پوهې او ادب خوښوونکې ؤ. دده په پېر کې د وخت نامتو شاعران او ادیبان لکه فردوسي او البېروني ژوند کاوه او دده په دربار کې اوسېدل.

## سلطان ابراهیم غزنوی

د غزنوي واکمنو له ډلې څخه سلطان ابراهیم (۴۵۱هـ تر ۴۹۲هـ) هم د یادولو وړ دی. ده په خپله ۴۰ کلنه واکمنۍ کې غزنوي واکمني ښه ټینګه کړه. له سلجوقیانو سره یې ښې اړیکې ټینګې کړې، او هندوستان یې تر خپلې پوره پوره تر خپلې ولکې لاندې راوست. دده په پېر کې هندوانو غوښتل چې مسلمانان له پنجاب څخه وشړي، مګر پدې کار کې بریالي نشول. ابراهیم تر ډلې پورې سیمې په غزنوي واکمنۍ کې ورګډې کړې، او د بنارس ښار هم ونیوه. ابراهیم یو دیندار او ولس خوښې واکمن ؤ، د شپې به د غزني په کوڅو ګرځېده او اړو او بې وزله خلکو سره به یې مرسته کوله. دې ډېر ښه خط لیکونکې ؤ، په کال کې به یې یو ځل ټول قرآن کریم په خپل خط لیکه، یو کال به یې مکې معظمې ته لیږه، او بل کال به یې مدینې منورې ته لیږه.

ده له ودانیو سره زیاته مینه لرله. داسې ودانۍ به یې خوښولې چې عامه خلکو ته ترې ګټه ورسي. په خپله واکمنۍ کې یې ۴۰۰ داسې ودانۍ د مدرسو، خانقاګانو، مساپرخانو او جوماتونو لپاره جوړې کړې. د غزني په شاهي ودانۍ کې یې داسې یوه درملتون جوړ کړ چې عوامو ته به په وړیا توګه درمل ورکول کېده. پدې درملتون کې د سترګو د ناروغیو ډېره ښه درملنه کېده، او ډېرې ښې دوایانې پکې مېندل کېدې.

## دغزنوي واکمنۍ پای اوزوال

د سلطان محمود زوی، سلطان مسعود په وروستي وخت کې د منځني اسیا سلجوقي ترکانو د غزنوي واکمنۍ شمالي او لویدیځې برخې تر خپلې ولکې لاندې راوستې. نو پدې وخت کې یواځې د غزنوي واکمنۍ سره ختیځ افغانستان او د ننني پاکستان سیمې پاتې شوې .

چي بیا هغه هم د۵۸۳ هجری کال په وروستیوکی دمعزالدین اونورو غوري واکمنوله لوري د وروستي غزنوي واکمن خسروپه وژل کیدوسره پای ته ورسیده .

۵۴۵هجري سپوږمیز چې له ۱۱۵۰زېږیز کال سره سمون خوري د غور یو واکمن چې علاؤ الدین غوري نومېده ولکه ټینګه کړه او غزني یې د ۷ شپو او ۷ ورځو لپاره وسوزاوه. د نړۍ دا ښار چې په تاریخ کې د (عروس البلاد) په نامه یادیده لولپه او خاورې ایرې شو. علاؤ الدین ددې ناوړه عمل له امله په تاریخ کې د جهانسوز په نامه یادېږي ،خوټول تاریخ پوهان دغزنی سوزولو په اړه متفق نه دي . لدې څخه وروسته د غزنوي دوه وروستیو واکمنو پلازمېنه له غزني څخه لاهور ته راغله، چې دا واکمني هم په ۵۸۲هـ سپوږمیز کال د سلطان شهاب الدین غوري په لاس ړنګه او د پای ټکې ورته کښېښود.

## دغزنوي واکمنيو اهمیت

غزنوي وکمنو تقریبا ۲۰۰ کاله په هندي نیمې وچې واکمني وکړه، دوي هغه خلک ول چې هند نیمې وچې خلکو ته یې د ژوند کولو لارې چارې وروښودلې. دوي یې مهذب ګړل، او د اسلامي تهذیب ښخونه پدې وچه کې کلک او ټینګ کړل، او د لاهور ښاریې د لومړي ځل لپاره د پوهې او ادب مرکز جوړ کړ. د علم او ادب سرپرستي غزنوي واکمنان د علم او ادب ډېر زیات خوښوونکي ول، په ځانګړي دول سلطان محمود غزنوي د پېر فردوسي او البېروني کارنامې نن هم نړۍ د یادولو وړ بولي.

د فردوسي شاهنامه د پارسي شاعرۍ یوه غټه نمونه ده. البېروني د خپل پېر له ټولو څه لوی څېړونکې او ساېنسپوه ؤ، هغه په ریاضی، علم هیئت، تاریخ او جغرافیه کې داسې ګټور کتابونه لیکلي چې تر نن ورځې پورې لوستل کېږي او د اعتبار وړ دي. غزنوي واکمنۍ کې لاهور د لومړي

ځل لپاره د پوهې او ادب مرکز په ښېر راوښوکېده. پدې پېر کې د پارسي ژبې نامتو شاعران لاهور ته راغلل، چې لدې ډلې څخه مسعود سعد سلمان او روفي د يادولو وړ دي. د ادواره شاعران د سلطان ابراهيم او له هغه څخه وروسته واکمنو په پېر کې اوسېدل. دلاهور په پوهانو کې چې د غزنوي واکمنو سره دې ښار ته راغلي ول، د علي بن عثمان هجوېري (۴۰۰هـ تر ۴۶۵هـ) دیادولو وړ دی. دی یو لوی ولي ؤ، دده له وجې په لاهور کې اسلام خپور شو او زیاتره هندوانو اسلام ومانه. هجوېري نن سبا د داتا گنج بخش په نامه سره یادېږي. ده ۴۰ کاله د اسلامي نړۍ سفرونه وکړل او په اخره کې د لاهور ښار ته راغې. دده مقبره د لاهور ښار په مرکز کې ده. هجوېري د "کشف المحجوب" په نامه کتاب په پارسي ژبه کښلې چې د تصوف په پوهه کې لومړنۍ پارسي کتاب گڼل کېږي. دا کتاب یې د لاهور په ښار کې کښلې دی. د غزنوي پېر دوه سترې ستې ابو سعید ابوالخیر (۳۵۷هـ تر ۴۴۰هـ) او سنائی (۴۶۵هـ تر ۵۴۵هـ) دي. ابو سعید ابو الخیر د خپل پېر لوی صوفي او ولي ؤ. ددده دشهرت وجه دده پارسي څلوریزې دي، ځکه دې د پارسي ژبې اومړنې لوی څلوریزې ویوونکې شاعر دی. دده د څلوریزو موضوع له څښتن تعالی سره مینه، اخلاقي ښوونه او داسې نورې موضوعگانې دي.

سنايي د غزنوي پېر د وروستيو شاعرانو څخه یو ستر شاعر دی، چې د پارسي ژبې صوفيانه شاعرۍ بنسټ اېښودونکو څخه دی. دده کلام د سوز او گداز او اخلاقي ښوونې څخه ډک دی. د سنايي پلرنې ښار د غزني ښار دی، نن سبا دده مزار د غزني په ولایت کې دی. د عربي ژبې نامتو ادیب بدیع الزمان همداني (مړ ۱۰۰۷ء) هم پدې پېر کې ژوند کاوه. هغه د هرات اوسېدونکې ؤ. دده د "مقامات" کتاب د عربي ژبې د ادب لوړه نمونه پېژندل کېږي.

## دخواهموجګړو نېټه لیک

(«۱»د ملتان برې ۱۰۰۵ء «۲»د پېښور جګړه ۱۰۰۸ء «۳» د قنوج د راجه اطاعت، ۱۰۱۷ء «۴»د کالنجر د راجه اطاعت ۱۰۲۲ء «۵»پر سومنات برید ۱۰۲۵ء)

## غزنوي ټبراو واکمنې ډلي

آلپتګین (۹۶۳–۹۷۷) سبکتګین، *(ابو منصور)* (۹۷۷–۹۹۷) اسماعیل (۹۹۷–۹۹۸) محمود *(یمین الدوله)* (۹۹۸–۱۰۳۰) محمد *(جلال الدوله)* (۱۰۳۰–۱۰۳۱) مسعود اول *(شهاب الدوله)* (۱۰۳۱–۱۰۴۱) محمد (جلال الدوله (دوهم ځل) *(۱۰۴۱)* مودود *(شهاب الدوله)* (۱۰۴۱–۱۰۵۰)مسعود دویم (۱۰۵۰) علي *(بهاالدوله)* (۱۰۵۰) عبدالرشید *(عزةالدوله)* (۱۰۵۳) توغرل (**Tughril**) *(قوام الدوله)* (۱۰۵۳) فرخ زاد *(جمال الدوله)* (۱۰۵۳–۱۰۵۹) ابراهیم *(ظاهر الدوله)* (۱۰۵۹–۱۰۹۹) مسعود دریم *(اعلی الدوله)* (۱۰۹۹–۱۱۱۵) شېرزاد *(کمال الدوله)* (۱۱۱۵) ارسلان شاه *(سلطان الدوله)* (۱۱۱۵–۱۱۱۸) بهرام شاه *(یمین الدوله)* (۱۱۱۸–۱۱۵۲) خسرو شاه *(معزالدوله)* (۱۱۵۲–۱۱۶۰) خسرو ملک *(تاج الدوله)* (۱۱۶۰–۱۱۸۷)

---

**پایځوړ**

دافغانستان لنډکی تاریخ (نامتو لیکوال: استاد حبیب الله رفیع «۳۰صفحه)
دافغانستان لنډ تاریخ (افغان نامتو تاریخپوه استاد عبدالحی حبیبي ۱۵۷ تر ۱۶۶صفحی پوري)
دافغانستان ملی تاریخ ( )

### دنیټ او انګریزی تاریخونو پایځوړ

۱. ↑ ۱.۰ ۱.۱ Bosworth, C.E, "Ghaznavids" in, Encyclopaedia of Islam, ۲۰۰۶/۲۰۰۷ Online Edition; Brill, Leiden;
۲. ↑ ۲.۰ ۲.۱ ۲.۲ C.E. Bosworth: The Ghaznavids. Edinburgh, ۱۹۶۳
۳. ↑ Bosworth, C.E, "Ghaznavids" in, Iranica Encyclopaedia, ۲۰۰۶ Online Edition, (LINK)
۴. ↑ ۴.۰ ۴.۱ Encyclopedia Britannica, *Dynasty Ghaznavid*, ۲۰۰۷ Online Edition (LINK)
۵. ↑ M.A. Amir-Moezzi, *"Shahrbanu"*, Iranica Encyclopaedia, Online Edition, (LINK): *"... here one might bear in mind that non-Persian dynasties such as the Ghaznavids, Saljuqs and Ilkhanids were rapidly to adopt the Persian language and have their origins traced back to the ancient kings of Persia rather than to Turkish heroes or Muslim saints ..."*
۶. ↑ E. Yarshater, Encyclopaedia Iranica, Iran: Islamic Period - Ghaznavids.
۷. ↑ ۷.۰ ۷.۱ ۷.۲ ۷.۳ ۷.۴ ۷.۵ ۷.۶ Encyclopedia Iranica, *Ghaznavids*, Edmund Bosworth, Online Edition ۲۰۰۷, (LINK)

یوولسم څپرکی

## دغوریانو اوسوریانو واکمنۍ (یا مینځنۍ پیړۍ)

### (۴۰ - ۶۱۲ هق)

غوری واکمنو داسلام دځوانۍ په مهال اوهم ترهغه وړاندې واکمنۍ اوورې پاچاهی کړی خوهغه ترغور اونژدې ولایتونوپورې محدودې وي ،دحضرت علي کرم الله وجهه دخلافت په مهال ددې کورني یوه سترشخصیت (شنسب) داسلام دمقدس دین په منلوسره داسلامي لښکرو له لوري په واکمني پاته سوهم دارنګه امیرپولاد غوری ابومسلم په ملاتړ اوملتیا دعباسی خلافت په رامینځته کولوکې خورا پراخ لاس لرلو ،خودومره ویلای شوچي په مینځنۍ پیړۍ کی یې نه هیریدونکی له ویاړ او ارزښتونو ډک اسلامپاله رول لوبولي دي.



دغوری اوسوري واکمنیوته تاریخ لیکونکی ډیرځلی دخلجیو پیړنیزه واکمني هم ویلي غرزی ، غلجی ، خلجي (( په عربي ژبه : *ملوک الجبال* ))نومول شوی . د پښتني ګڼ شمېر قبایلو بشپړتېرنی نوم دی چې په تدریجي ترګه د غرزي نه غلجي یا خلجي جوړ شوی او په سیمه کې مشهوره شوی. دا تېرد افغانستان په تېرونو کې تر ټولو غټ تېر دی او ډېر لرغونی تاریخ لري . د غرزیو (غلجیو ، غلځیو) په اړه ډېر سپړنی او څېړنې شوې دي،خوخلجی یو اسلامپاله وطن دوسته وګړی دي ، د معاصرو څېړونکو له کتاره محمد معصوم هوتک په خپل کتاب د( پښتني قبیلې او روایتي شجرې ) کې لیکي : په پښتنو کې غلجي (غرزي) قبایل هم د شمېر له مخې او هم په تاریخ کې د خپل ځانګړي نقش له مخې د یادونې وړ موقعیت لري . ,, له دې قبیلې څخه لودیانو د څلورمې هجري پیړۍ په سر کې په ملتان کې د یوې درنې پاچهۍ تاداؤ کېښود چې نیمه پیړۍ یې دوام وکړ او د غزنوي سلطان محمود له خوا په ۴۰۱ هـ س ورانه شوه . تر دې وروسته په هند کې دغلجي شاهانو اوږده دوره پیل کېږي چې پیل یې په ۱۲۰۶ زېږیز کې و او څه د پاسه درې سوه شل کاله یې دوام وکړ.

غلجی د پښتنو قبیلو تر ټولو لوی قوم دی چی د قلات غلجی څخه نیولی تر ټول کاکرستان کابلستان پیښور او د افغانستان او پښتونستان په ټولو سیمو کی ژوند کوی چه په پښتو ژبه خبری کوی دوی

ددی سیمی تر تولو لرغونی اوسیدونکی دی او در خلج خلخ غلج په نامه یاد شوی دي ددوی تر ټولو مشهور کورنی چه په خراسان او هندوستان کښی پادشاهی دړلود عبارت دی غوری سلسله خلجیه سلسله تغلقیه سلسله د ملتان لودی سلسله د دهلی لودی سلسله د دهلی سوری سلسله دکندهار هوتکي سلسله او داسی نوري وړوکی پادشاهی او واکمنۍ چی په هندوستان افغانستان او ایران کښی تیر شوی دی دنورتفصیل لپاره دافغانستان لنډتاریخ وګورئ ،خواوس دهمدي ټبرونو پاچاهی یوه په بل پسی ذکرکوو چي غوریان اوسوریان یی دسرواکمن وګڼ دي چي داسلام له پیل څخه یی یوه خپلواک ټبراوسیدلی چي ان ۳۷ هجری قمری څخه یي دواکمن دورپیلیږي بیادپاسه ۶۱۲کلونو پوري .

دي دورته تاریخ پوهان مینځۍ پیړۍ هم وایی چي په پخوانیو تاریخي او جغرافیایې اثارو کي دسور، غور او غوریانو په اړه زیات داسې زرین سرلیکونه او ویاړني کښل شوي او ثبت دي چي نه یوازې د افغانستان د لرغوني او پخواني تاریخ ارزښتمن سرلیکونه دي ، بلکې د سیمې لپاره هم ستر ارزښت لري . د غور او غوریانو د تاریخ له پیژندنې پرته د افغانستان او سیمي بشپړ تاریخ نشي پیژندل کیدای . لرغوني غوریان د کلتور او تهذیب ، سیاست او واکمنۍ ، پوهي او هوښیارۍ په ډګرونو کي داسې لاس ته راوړني لري چې د بیلابیلو تاریخي پیرونو بړم او ډبدبه پکښي نغښتې ده .
غور په اوسنۍ بڼه د افغانستان د څلور دیرش ولایتونو څخه یو دی ، چي د هېواد د اتو نورو ولایتونو سره د برید کرښې لري . شمال لور ته یې د فاریاب ، بادغیس لویدیځ ته یې د هرات او فراه سهیل ته یې د هلمند او دایکنډي او ختیځ ته یې د بامیان او سر پل ولایتونه پراته دي . د غور ولایت ارتوالی اته ویشت زره شپږ سوه نه شپیته ( ۲۸۷۷ ) کیلو متر ه مربع ته رسیږي ، او اداري پلازمېنه یې چغچران دی . د غور په ګاونډیو ولایتو نو کي د لرغونپوهانو له خوا د څیړنو په ترځ کي د پخوانیو زمانو زیات شمیر اثار او لاسوندونه تر لاسه شوي دي ، چي د یو شمیر هغو لرغونتیا په زرګونو کاله پخوانیو زمانو ته رسیږي ، د بیلګي په توګه په فاریاب کي د دشلي لرغونې سیمه ده ، چي لرغونتیا یې لږ تر لږه د څلورو زرو کالو څخه تر دریو زرو کالو پخوانیو زمانو ته رسیږي ؛ د بامیانو لرغوني سیمه چي د بودایې پیر زښت زیات لرغوني اثارلري ، او په روزګان ولایت کي د کوشاني او یفتلي پیرونو اړوند زیات شمیر اثار یادولای شو . خو له بده مرغه په غورولایت کې د لرغونو زمانو په تړاو ځانګړي څیړنې او سپړنې نه دي تر سره شوې ، چې له امله یې تر اوسه د لرغوني غور په لمن کي د پخوانیو مېشتو وګړو په اړه بشپړې څرګندونې نشي کیدلای . خو د هغو

ځېرنو څخه چي د ويدي او اوستايې مدنيتونو په اړه تر سره شوې ، د غور سيمې ، غرونه ، او د اوسيدونكو په تړاو يو شمير څرګندوني شته چي د افغانستان په اساطيري تاريخ كښې ځانګړې دريځ لري . هيرودوت پر خپل مهال د نورو تاريخي پيښو تر څنګ دا يادونه هم كړې ، چي د هخامنشيانو په وړاندي د هغوی ځتيځ ګاونډيانو هم پر له پسې پاڅونو نه كړي دي ، خو چي د خشيار شاه ( ۴۰۴ _ ۳۵۹ تر ميلاد وړاندي كالونه ) په دربار كې د يوناني طبيب كتي سيس ( Ktesies ) يادښتونه لولو . په هغو كې د هخامنشيانو پر ضد په وار وار د سوريانو پاڅونونه ياديږي . ( بوخارد برينتس : ۵۳ پاڼه ) په سيستان كې د ساكانو د دولت تر جوړېدو وروسته ټولي هغه سيمي چي د يوناني او پارتي دولتونو په ولكه كي نه وې راغلي او د هغوی ترمنځ پرتې وې ، ورو ورو خپل كړې چي يونانيانو اندو ساتيا ( Indo_Seythia ) ياد ساكانو د سيند هيواد نوم ور كړ او چيني سرچينو هغه د كيپين ( Kipin ) په نوم ياد كړېدی . موګا لومړنی واكمن وو چي د ساكانو واكمني يې په ۷۲ تر ميلاد وړاندي كال كي پيل كړه او تر هغه وروسته ازيس په ۵۸ تر ميلاد وړاندي كال او ورپسې ازيليس په ۴۰ _ ۴۵ تر ميلاد وړاندي پر ټوله اندو سايتيا واكمن پاته شويدی ( پښتو او پښتانه : ۴۲ پاڼه ) او لرغونی غور هم د همدې واكمنی په لمن كي ارزښتمن دريځ درلود . د كوشاني ستروا كی پر مهال د غور او هري سيمي د سيستان له واكه ووتلې . كوشانيان ، چي د ساكانو له ستمې څخه وه ، نوموړي سيمې تر خپل واكمنی لاندې كړې ، او په ايران كي د ساسانې واكمنی سره ګاونډ شوه . د زابلستان د غوړېدو پر مهال د يفتليانو لپاره غور او اړوندي سيمي د اعرابو په وړاندي يوه ستره او ډاډمنه اډه ( پايګاه ) وه . د پيتروشفسكي او زيات شمير نورو مورخينو په باور د ساسانيانو واكمني په ٦٥۱ ميلادي كال د اعرابو په وسيله پای ته ورسيده خو د ساساني امپراتورۍ ختيځ لور ته يو شمير خپلواكو سيمو د اعرابو په وړاندي پاڅونونه كول چي د هغو څخه كابل ، غور او ديلم د اعرابو تابع نه شوه . طبري په خپل تاريخ كي ثبت كړيدي چي : علي ابن محمد وايې چي اسد د غور غزا ( غزی ) ته ولاړی خو د هغه سيمو اوسيدونكو خپل هر څه پټ كړي او يايي لوړو ځايونو ته وړي وه چي هلته رسيدل د چا په توان كي نه وه . د تاريخي متونو پر بنسټ د سوريانو واكمني د اوسني غور د اوسيدونكو له خوا تر ټولو پخوانۍ څرګنده واكمني منل شوېده ، چي نوم يې په بيلا بيلو تاريخي پاڼو كي ثبت دی . منهاج سراج جوزجاني د هغو زياتو نورو مورخينو له شميره دی چي د سورې كورنۍ په اړه يې د بيلا بيلو نامتو كسانو نومونه را ياد كړيدي ، د هغه په وينا سور او سام د ضحاک دوه ورونه دي او د سوري كورنۍ څخه زيات شمير كسانو د غور پر سيمه واكمني درلوده ، چي د ماهوی سوري ( ۳۸ هجري ) او ملک شنسب ابن خرنک څخه

پیلیږي او د امیر پولاد تر زمانې ( ۱٦۰هجري ) واکمن پاته شوي دي . ( افغانستان بعد از اسلام : ۱۲۷ _ ۱۳۲ پاڼه ) په زیات شمیر تاریخي متونو کي د سوري کورنۍ نامتو کسان لکه ماهوی سوري ( ۳۱ _ ۳٦ هجري ) شنسب ابن خرنک ( ۳٦ هجري ) امیر پولاد ( ۱۳۰ هجري ) امیر کروړ ( جهان پهلوان ) ( ۱۳۹ _ ۱۵۴ هجري ) امیر ناصر ابن امیر کروړ ( ۱٦۰ هجري ) امیر منجی بن نهاران ( ۱۷۰ هجري ) امیر سوری ( ۲۵۳ هجري ) او د اسي نور یاد شویدي .( تاریخ مختصر افغانستان ؛ ۱٦۵ پاڼه )

د غوري پاچاهانو په نوم د همدې سوریانو له پښته بله هغه کورنۍ ده چي د تاریخي افغانستان زیاتي سیمي یې تر خپل واک لاندي راوستي دي ، او د افغانستان په تاریخ کي د برم او ویاړ با ب ګڼل کیږي . د غوري پاچاهانو په دې لړۍ کي تر ټولو زیات نامتو پاچاهان لکه قطب الدین محمد غر شاه ( ملک الجبال ) ( وفات ۵۴۱ هجري= ۱۱۴٦ میلادي ) بهاالدین سام ( د واکمنۍ نېټه ۵۴۱ هجري = ۱۱۴٦ میلادي ) سلطان غیاث الدین غوري ( ۵۵۸ _ ۵۹۹ ) سلطان بهاوالدین غوري ( ٦۰۷ هجري ) سلطان علاوالدین غوري ( جهان سوز) ( ٦۰۷ _ ٦۱۱ هجري ) او نور یادولای شو . د غوري کورنۍ د واکمنۍ پر مهال او په ځانګړي توګه د سلطان غیاث الدین غوري در بار د پوهانو ، هنر مندانو او اد ب پوهانو پلازمینه بلل شوېده . (۱) دکتاب په دې برخه کي د همدې کورنۍ د واکمنۍ پر مهال د هغو یو شمیر فاتحو میړنیو افغاني پاچاهانو یادونه کوو چي د هیواد په تاریخي اوهنری سرلیکونو کي یې ارزښت ځانګړې دی .

له تاریخي نګاه دلته دشیرشاه سوری او غیاث الدین غوری یادونه ضروري ګڼل کیدای شي .؟

---

[1]سرچینې

۱دافغانستان لنډ تاریخ ۲٦۴ – مخ ۲۷۷صفحی پوری

۲پښتني قبیلې او روایتي شجرې (محمد معصوم هوتک) څلرم څپرکی (غرزی ، غلزی ، خلجي ، غلجي ، ۵٦مخ)

۳تاریخ مختصر افغانستان ؛ ۱٦۵ پاڼه )

۴دافغانستان لنډکی تاریخ حبیب الله رفیع ۳۰ صفحه

۵حیات افغانی دویم جلد (دمحمد حیات خان)

# شېر شاه سوري



شیر شاه سوری (۱۴۸۶ - ۱۵۴۵ ,۲۲ May) -), چې د شېرخان (), په نوم هم یاد شوی یو ځواکمن افغان (پښتون) امپراتور ؤ چې په هند یې خپله واکمني چلوله. لومړی هغه د مغولو په لښکر کې یو سرتېری ؤ چې بیا سرلښکر او بیا د هند په بیهار ولایت کې والي شو. په ۱۵۳۷ ز. کال کې چې کله مغول پاچا همایون په سفر وتلی و، نو شېرشاه سوري بنګال د خپل ولکې لاندې کړ او په همدې توګه یې د نوې سوري امپراتورۍ بنسټ کېښوده. [۸۱] دشیرشاه دواکمنۍ دوره په هند کې له (۱۵۳۹ څخه تر ۱۵۴۵ پوری) په هندوستان کې د سوری واکمنۍ بنسټ اېښودونکی شیرشاه سوري د میا حسن ځوی او دابراهیم لمسی و .ابراهیم سوری دسلطان بهلول د واکمنۍ په دوران کی د ډهلي او غزني تر منیځ د آسونو سوداګری کوله،
چې د سلطان بهلول د واکمنی پرمهال ډهلی ته تللی اوهلته د جمال خان په جاګیر کی یوه ټوټه ځمکه د جاګیر په توګه ورته وسپارل شوه.

میاحسن ولیدل چې په دومره لږه ځمکه چې د حکومت لخوا یي پلار ته په جاګیر سپارل شوي، چی په خپله د ابراهیم سوری ګوزاره پری نه کیږي، نو ځکه میا حسن د جلا نوکری د پیداکیدو په لټه کی شو. چې بالاخره د دولت خان لودی په جاګیر کې یې نوکری پیدا کړه .او هلته یي د پلار د مړیني تر وخت خپله دنده سرته ورسوله، مګر میا حسن د خپل پلار دمړینی وروسته ساسرام ته راغلی او هلته خپل پلارنی جاګیر ورته د حکومت له خوا وسپارل شود. د شیر خان سوری پلار څلور میرمنی درلودی چې دری تنه میرمنی د هند اوسیدونکی او د شیر خان مور د میاحسن مشره او افغانی میرمنه چې دمیا حسن د پامه ولولیده وه او شیرخان له همدی امله دخپل پلار سره تل خوابدی وه. نو ځکه یي د پلار جاګیر پریښود او جینپور ته ولاړ.

جینپور په هغه مهال د علم ،پوهی او فرهنګ لوی مرکز ګڼل کیده. شیرخان سوري هلته د رسیدو سره سم د دینی علومو او فقی تر څنګ تاریخ او ادب ته خاص پاملرنه وکړه، چی د همدی زدکړی او ذهنی ودی له امله د جینپور د عوامو او حکومتی چارواکو د پاملرنی وړ وګرځیده.

کله چې میا حسن د جینپور حکومت ته د سلاح مشورې او د ستونزو د حل لپاره ولاړ د هغه سیمې حکومتي چارواکو میاحسن ته د شیر خان سره د ښه سلوک سپارښتنه وکړه، نو ځکه میاحسن خپل ځوی ساسرام ته بوت او خپل جاګیر يې ورته وسپارل شو.

کله چې شیر خان ته د ساسرام او خواصپور جاګیر وسپارل شو ، ټول مامورین ،بزګران او د ځمکو خاوندان يې راوغښتل او يوه هراړخیزه وينا يې ورته وکړ او له همدې نیتې وروسته يې یو منظمه ځاګیرداری ترتیب او تنظیم کړه.

د میا حسن میرمن د شیرخان پرمختګ ونه شو زغملی، نو ځکه يې خپل میړه د شیر خان سوري پر خلاف ولمسوه تر څو د هغې څخه د جاګیر صلاحیت بیرته واخلي او پدې توګه شیرخان سوري د ساسرام پرېښودو ته اړ شو او د ډهلي پر لور وخوزیده . هلته د سلطان ابراهیم لودی د وزیر دولت خان لودی لخوا په دنده وګمارل شو او دمیا حسن د مړینې وروسته د دولت خان لودي په سپارښتنه او د سلطان ابراهیم لودي په حکم ساسرام ته ولیږل شو او دشیرخان میرنی ورونه د سلیمان په ګډون د محمد خان سوری واکمنی (جینپور) ته وتښتدل، محمد خان سوری يو زرو اوپنځه سوه تنه پوځ سلیمان ته وسپاره، ترڅو د پوځ د مقابلې په ترځ کې شیرخان سوري د ساسرام څخه وشړي. شیرخان سوري او ورور يې نظام ناچار شو ، په خپل ګاونډ کې د ګورګاني پوځ مشر جیندبرلاس څخه مرسته وغوښته او هغې د ګورګاني پوځ په ملاتړ شیرخان سوري ساسرام ته ولیږه .او پدې توګه یوځل بیا شیرخان ته د ساسرام او خواصپور جاګیر وسپارل شو .

په همدي وخت کي جیندبرلاس ډهلي ته د تګ اراده وکړه شیرخانسوري ته يې هم د ډهلي په لور د تګ بلنه ورکړ، کله چې ډهلي ته ورسیدل شیرخان سوري يې خپل ورور میر خلیفه ته چې په ګورګاني حکومت کې د وزارت دنده درلوده وروپیژنده او د نوموړی ټول خصوصیات يې میرخلیفه ته بیان کړي وو.

همدارنګه کله چې جیندبرلاس د ډهلي څخه خپلي سیمې ته د بیرته تګ اراده وکړه شیرخان سوري يې ډهلي کي پرېښود تر څو هلته اوپه ډهلي کې پوځي دنده سرته ورسوي او د ظهیر الدین بابر په پوځ کې شپې او ورځې تیرولی . يو ورځ ظهیرالدین بابر د پوځ لوړ رتبه منصبدارنو ته ډوډی برابره کړی وه او شیر خان سوري ته يي هم د ګډون بلنه ورکړي وه ، کله چې ډوډی د ملیمنو پر مخ کیښودل شوه د شیرخان سوري ځینې حرکات د ظهیرالدین بابر خوښ نشو او میر خلیفه ته يې وویل : چې د دې سړی حرکتونه مې خوښ نشو نظربند يې وساته

.شیرخان سوري هم د ظهیر الدین بابر د تندی په کونجو او ځینی نور اشارو وپوهیده، نو ځکه په مناسب وخت د غونډی وواته او په هماغه شپه د خپلو ملګر سره د ساسرام په لور وخوځیده.

کله چې شیرخان سوری ساسرام ته ورسیده، جیند برلاس ته یې خبر ولیږه چې زه د اجازې پرته رغلی یم او ماته په جاګیر کی څه مشکل پیښ شوي و. د همدی نیتی څخه وروسته شیرخان سوری د ګورګانی امپراتوری پر خلاف په مبارزه لاس پوری کړاو د ګورګانی امپراتور همایون، د غولونی لپاره یې د چل او فریب څخه کار اخیسته.

شیرخان سوری په ۱۹۳۹ م کال همایون ته ماتی ورکړه او د ډهلی تاج او تخت یې ونیو. نوموړی په خپله لنډ مهالی واکمنی کې د هند یووالی ته ملا وتړله او د دغه هیواد خلکو ته یې په دی لنډ مهال دوره کې ستر خدمتونه وکړل چې دهغی جملی څخه مونږ د سکو رواجول، د لویو لارو او سړکونو جوړول، د پوست او مخابراتو رواجول او عدل او انصاف یي د هند په ګوډ ګوډ کي رواج کړد نوموړي د واکمني کي مسلمانانو او هندیانو د توپیر پرته ژوند کوه چي ژوندی مثالونه دي. د هند اکثریت خلک او مورخین د شیرخان سوری په کارنامو ویاړی او دهغه روح ته د عقیدت او درنښت پیرزونی وړاندی کوی.

## اسلام شاه سوري

د پښتون شاهنشاه شېر شاه سوري زوی دی چې په سليم شاه او تر پاچايي دمخه يې اصلي نوم جلال خان ؤ. د شېرشاه سوري تر مړينې وروسته څنګه چې د ده مشر ورور شهزاده عادل خان له مرکزه ليري د رنتهور په کلا کې ؤ نو د شېرشاهي دولت مخورو او مشرانو شهزاده جلال خان چې په پټنه کې ؤ د کالنجر کلا ته راوغوښت او په ۹۵۲ هـ کال د پاچايي پر تخت کېناوه، سکه او خطبه يې د ده په نامه جاري کړه او ځان ته يې د اسلام شاه خطاب وټاکه او خپل مشر ورور ته يې وليکل چې: "ما د فتنې او آشوب د آرامولو او د سپاه د ساتلو دپاره دا جرات کړی دی، خو په حقيقت کې يې د امر له اطاعته بل منظور نشته"

هغه ؤ چې شاهزاده عادل خان هم له رنتهوره راغی او په آګره کې سره يو ځای شول او اسلام شاه خپل ورور شهزاده عادل خان ته يې ووييل چې تر اوسه پښتانه له تفرقې څخه ساتل شوي دي اوس يې تا ته سپارم، مشر ورور انکار وکړ او اسلام شاه يې تر لاس ونيوه پر تخت يې کېښناوه او لومړی ده ورته مبارکي ووييله او بيا د ده نورو ملګرو سر ورته ټيټ کړ.

اسلام شاه تر ۹۶۰ هـ. کال پورې په ډېره مړانه پاچايي وکړه، او ګڼو جګړو چې يې د مخالفينو سره وکړې په ټولو کې بريالي ؤ اودژوند ټول دوريې په ميړانه تيري کړي چي دهمدي کلوپه وروستي کې يې لدې فاني نړۍ رخصت شو.

## سلطان علاؤالدين غوري

سلطان علاوالدين غوري د شنسباني سوري غوري پادشاه په ختيځ تاريخ کې د جهانسوز په نامه پېژندل شوی دی. دی يو مېړنی افغان او د ډېرو صفاتو خاوند وو. لکه اديب، عالم، پهلوان او ځوانمرد .....د غور پادشاهانو د سلطان سنجر سلجوقي رعايت کاوه او هر کال يې وسله ورلېږله، علاوالدين غوري هغه بنده کړه. علاوالدين هم د جګړې لپاره چمتو شو. سلطان سنجر يو هوښيار او مېړنی سړی وو. هرات ته نږدې د ((ناب)) په سيمه کې سره مخامخ شول. د غور د لښکر ښي لاس ته شپږ زره کسان د سنجر خواته واوښتل او په دې توګه د علاوالدين غوري لښکر مات شو او دی د سلطان سنجر په لاس کې کېښوت. کله چې د سلطان سنجر خلکو (افسرانو) د علاوالدين پښو او لاسونو ته ځنځيرونه واچول، ده ووېل: يو مطلب لرم، چې بايد يو په يو سلطان سنجر ته

وويل شي . خبره سنجر ته ورسېده ، هغه ورته وويل ، چې مطلب دې وايه ! علاوالدين وويل : ماته داسې زولنې او ځنځيرونه راوړئ ، چې زما په نظر کې وو ، چې سلطان سنجر به پرې ترم . سنجر وپوښتل ، هغه څه ډول وو ؟ علاوالدين غوري په ځواب کې ورته وويل ، ما تاته د سپينو او سرو زرو ځنځيرونه راوړي وو ، ځکه چې ته پادشاه يې ، په هر حالت کې بايد له عادي خلکو توپير ولري . کله چې سلطان سنجر هغه د سپينو او سرو زرو ځنځيرونه او شاهانه جامې ولېدي ، له ځان سره يې فکر وکړ ، چې دغسې يو سړی د دوستۍ دی ، نه د دوښمنۍ . نو سلطان سنجر پر علاوالدين غږ وکړ ، علاوالدينه ته زما وروريې ، زما ځاروی او خزانه درسره يوسه ، گټه يې اخله ، که غزان مې مات کړل ، بېرته به يې وغواړم ، که هغوی زه مات کړم ، ښه به دا وي چې ته يې وخوري ، چې د هغه لايق يې . سلطان علاوالدين له ډېر مال او ځارويو سره فيروزکوه ته راستون شو . له سلطان علاوالدين غوري نه وروسته دده زوی سيف الدين محمد پادشاه شو . دی يو ښه منظر ، عادل ، جواد او پر خلکو زړه سواندی پادشاه وو .

اخځونه


۱. قدرت الله حداد ( فرهاد ) ، د افغان ملي تاريخ ، ۲۳۱ - ۲۳۳ مخونه ، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز د ۱۳۸۳ لمريز کال چاپ .
۲. دافغانستان لنډ تاريخ (له ۱۷۱ تر ۶ صفحي پوري)

## ابراهيم لودي


سلطان ابراهیم لودي (۹۲۳ هـ ق)
Sultan Ibrahim Lodi (1517)

سلطان ابراهیم لودي) په هند کې د لودیانو پښتنو د پاچایانو د سلسلې وروستنی پاچا ؤ چې د خپل پلار سلطان سکندر لودي تر مړینې وروسته د ۹۲۳ هـ کال د ذي الحجې د میاشتې په اوومه د یکشنبې په ورځ په ډېر شان او شوکت د پښتنو مشرانو او امیرانو له خوا په پاچاهۍ وټاکل شو. خطبه او سکه یې په نامه جاري شوه. د فرشته تاریخ لیکي چې نوموړی ډېر هوښیار، قابل او بهادر پاچا ؤ او دا هم زیاتوي چې د ده پلار د قاعدې نه برخلاف د عزیزانو او پښتنو سردارانو سره ناوړه سلوک شروع کړ، دوی یې د خپلو حقوقو نه محروم کړل او ده به ویېل چې د پاچا عزیزان نه وي ټول نوکران دي، مشران امیران چې د سلطان بهلول او د سلطان سکندر په مجلس کې به په عزت ناست ؤ. هغوی به په ناچارۍ لاس په نامه د ده د تخت په مخ کې ولاړ وو او په زړه کې یې د ده برخلاف تجویزونه جوړول. د دوی دا غرض ؤ چې پاچایي تقسیم شي.[۱]

تر ټولو لومړی یې د خپل سکه ورور شهزاده جلال خان سره مخالفت څرګند شو او هغه دا چې جلال خان هم د پاچاهۍ ادعا درلوده خو پښتنو مشرانو ده ته د سلطان جلال الدین خطاب ورکړ او د پوره پوځ او سامان سره یې جونپور ته ولېږه او هلته یې خپلواک حکومت جوړ کړ.

سلطان ابراهیم د دې دپاره چې د نورو بغاوتونو مخه ونیسي خپل څلور نور میریزي ورونه محمود خان، اسماعیل خان، حسن خان او شهزاده اعظم همایوني یې د هغې ځلا ته نظر بند ولېږل او هر یوه ته یې دوې ښځې او د ژوند ټول مایحتاج ورسره ورکړل خو بیا هم د سلطان جلال الدین د خپلواک حکومت د اعلانولو په وجه په یوه ملک کې دوه پاچایان منځ ته راغله چې د هغه وخت دور اندېشه پښتنو مشرانو او امیرانو د دې کار کلک مخالف وو.

څلور میاشتې وروسته چې د رايرې حاکم لودي یا لواني خانجهان د سلطان ابراهیم دربار ته راغی او د هېواد د وېش سره یې سخت مخالفت څرګند کړ. د وېش سلا ورکوونکي امیران له هرې خوا پرې راټول شول او خانجهان د پاچا په مخ کې د وېش سلا ورکوونی امیران خورا وغندل او پاچا ته یې وویېل «د پاچاهي هېواد وېش تېروتنه او د هغه منل ناپوهي ده باید پوه شي چې پاچاهي په ګډه نه شي کېدای او په یو تیکی کې غبرګې تورې نه ځايېږي»[۲][۳]. د خانجهان خبرې پر پاچا اغېزه وکړه او

د خپلو خاصانو سره یې وویيل چې شهزاده خو په لاره دی او جونپور ته لا نه دی رسېدلی ښه به دا وي چې ورته ولیکو چې د یوې ضروري مشورې لپاره ستا راتلل ضوروري دي. هیبت خان یې د دې کار لپاره وګوماره خو شهزاده لا پخوا له دې چارې خبر شوی ؤ نو ځکه د هیبت خان په خبرو و نه غولېده.

پاچا یوه بله د امیرانو جرګه ورولېږله، خو هغې جرګې هم څه و نه کړای شول، ځکه نو پاچا د جونپور امیرانو ته خطونه ولېږل چې د شهزاده سره دې تعلقات نه ساتي او تله راتله دې نه کوي او ځینې امیرانو ته چې د پوره طاقت خاوندان وو او دوي د پرش، څلوېښت زره سواره لرل لکه دریا خان لوانی د بهار حاکم، یا نصیر خان د غازي پور حاکم او یا شیخ زاده محمد فرملي د اوده حاکم او نورو ته خاص خلعتونه او آسونه ور ولېږل او هغه یې د شهزاده مخالفت ته ولمسول .خوبیاهم خبره تروخت تیره وه اودپښتنوپاچاهانو دزوال حالت رانزدي وه ،متاسفانه چي پښتانه واکمن تل خپلو مشاوریرینو غولوي وي. دښه نور تفصیل لپاره یې لاندې سرچنې وګورئ.

سرچینې


۱. 1د هندوستان تاریخ – د فرشته تاریخ پښتو ترجمه – ۳۹۷ مخ
۲. 1مرقع افغان – ۱۷ مخ
۳. 1لودي پښتانه – ۲۴۴ مخ

## دولسم څپرکي

# دچنگیزیانوتاړاکونه اودیرغلونودور

## (۶۱۶- ۶۴۰هق - ۱۱۱۸هق)

چنگیز خان د ۶۰۰ هـ ق کال شا او خوا دمنگولیا په قراقروم کې یه لویه امپراتوری جوړه کړه او دمنگولیا دسل میلیونی وحشي قبیلونه یې یو پیاوړی لښکر تیار کړ او فتوحاتو ته یې ملا وتړله. داوخت دهیواد شمالی برخې دخورزمشاهیانو په لاس کې وې.



دچنگیزلښکرې په ۶۱۶ هـ ق کال دافغانستان پولوته راورسیدي. طلطان علاؤلدین خورزمشاه دچنگیز سفیر وواژه او دهغه تجارتي کاروان یې لوټ کړ. چنگیز په ډیره غصه له دوه سوه زره لښکر سره دخورزمشاه پروا کمنی برید وکړ. دماوراء النهر دبخارا، سمرقند، حجنداو نوربښارونه یې په ډیر وحشت وران او وکړي یې قتل عام کړل خوارزمشاه توس ته وتښتید او دافغانستان بېلا بېل ښارونه یې بېلابېلو کسانو ته وسپارل چي دفاع یې وکړي، خو دچنگیز قواوي ترآموراواوښتې، بلخ یې ونیو؛ هرات ته ولاړل او ترپوشنگ پورې یې خلک قتل عام کړل او په خورزمشاه پسی یې ځان تو ته ورساوه، چنگیز په خپله دآمو پرغاړه ترمذته راغی تر یوولس ورځنی جګې وروسته یې دهغه ښار خلک قتل عام کړل او په خوارزمشاه پسی یې ځان توس ته ورساوه. چنگیز په خپله دامو پرغاړه ترمذته راغی تر یوولس ورځنی جګړې وروسته دهغه ښار خلک قتل عام کړل. بلخ ته راواوښت هلته یې هم ټولو ژنې وکړې. دهیواد نوربښارونه یې هم په وحشت ونیول؛ بیا یې پربامیان برید وکړ. هلته دچنگیز لمسی مو توچن ووژل شو چي جنگیز یې په غچ کې پر انسانانو سر بیره دبامیانو ښاروی هم ووژل او نوموړی ښاریې « بدمرغه وداني» وبلله او داسې یې وران کړ چي بیا څوک پکې ونه اوسیدل. داوخت جلال لدین خورزمشاه له هرات څخه غزنی ته رالی؛ ملي لښکرې ورسره ملې شوې اوپه پروان کې یې چنگیزی لښکروته ماته ورکړه، خو فاتح لښکرې په خپل منځ کې سره ولویدې او خپل منځي خونړی جګړې یې پیل کړې او چنگیز له موقع نه په استفادې سره تازه دمې لښکرې تیارې کړې او پر غزني یې یرغل وکړ؛ خوارزمشاه ترې وتښتېد خو چنگیز دده خپلوان او یواته کن زوی ووژل او په پېښور او پنجاب کې یې درې میاشتې ډلوزنې وکړې، چنگیز په ند کې دناوړې هواله امله ناروغه شو، ماوراء النهر ته راستون اوهمدلته په ۶۲۴ هـ ق کال کې ومړ. افغانانو بیا په هر ځای کې پاڅونونه وکړل، خو دچنگیزاخلافو یو ځل بیا دوحشت، ورانولو او ډلوژنې له لارې له پاڅونوهنو سره مقابله وکړه اوپر

افغانستان او سیمه یې د لاسپوڅو حکمرانانو اویا په مستقیم ډول واکمنی چلوله؛ څویې په ۶۴۳ هـ ق کې زوراو به او دواکمني ختمه شوه.



چنګیز یانو به خپله پنځه وېشت کلنه واکمنی کې هغه لوی ښارونه په اسیا کې چې دمدنیت، ثقافت او اسلامی علومو مرکزونه وو، وران کړل، خلک یې په ډیره بې رحمی دلې - دلې ووژل، په زرګونو لویې کتابخانې یې وسوځولې او افغانستان یې دسند تر پولو پورې په تمامه معنی وران کړ او زموږ ټولې هغه مادي او معنوي شتمنی یې چې دتاریخ په اوږده بهیرکې رامنځ ته شوې وې خاورې او ایرې کړې.

## وران وطن او محلي واکمنی

«ال کرت» دغوري واکنو له ټبره وو چې دچنګیز دبري پروخت یې په غور او خیسار کې واکمنې وه، له چنګیزي استازو سره یې ملا یمت وکړ او دچنګیزي له خوا بیرته ددې سیمو حکومت وروسپارل شو اوبیا ددې کورنی یو مشر شمس الدین محمد کرت په ۶۴۵ هـ ق کال دمنکوخان له خود ټول اوسنی افغانستان واکمن وګڼل شو او دآمو ترسیند پورې یې ټولې سیمې ورپرېښودې، داوخت دهیواد په بېلابېلو برخو کې محلي واکمنی وې چې ځینې ورته تسلیم شوې خو له ځینو سره جګړې ته اړشو او دزور له لارې یې سیمې ترې ونیولې او ټول افغانستان یې دهرات له پلازمیني نه اداره کاوه او دچنګیزیانو له خو په ور ن اوویرمن هیواد کې یې دوحدت ساورپوه کړله. دې کورنی تر ۷۸۳ هـ ق کال پورې واکمني وکړه او کله چې امیر تیمور هرات ونیو ددې کورنی وروستي باچا غیاث الدین یې له خپل زوی او ورور سره ماوراء النهر ته وشړل اوبیا یې په ۷۸۶ هـ ق کال ووژل او دکرت دکورنی لړۍ په همدې ځای وشلیدله. آل کرت علم دوسته کورنی وه او له ودانیو سره یې مینه وه، ددوي په وخت کې علم، ادب او صنعت دچنګیزیانو دورانیو سره سره بېرته ځان ونیو، علما وپرې راټول وو او داخت ګټور کتابونه ولیکل شول.

## يو بل ربښناک اوتاړاک

تر کافرو چنګيزيانو وروسته ددوی مسلمانو اخلافو دامير تيمور «صاحبقران» په مشری ديوه بل تاړاک تابيا وکړه . ده تر ۷٦۱ هـ ق کال وروسته شهرت ومکوند . دماوراء النهر ترنيولو وروسته په ۷۸۲ هـ ق کال تر آموراواوشت ، اندخوی، سرخس ، پوشنګ ، هرات ، شنډنډ ، فراه او سيستان يې يو پر بل بسې ونيول ؛ ودانۍ يې ورانې او دخلکو له ککريونه يې څلي جوړ کړل . په همدې يرغل کې يې بست اوکندهار هم ويجاړ کړل ، تيموريو خونړۍ فاتح و چي دڅون تر پايه يې ۳۵ ځله له چين څخه تر مصر اوله ډهلی څخه تر استانبول پورې لښکر کښنۍ وکړې او ددې لښکرکښيو په مخه کې پراته دهيواد هغه ښارونه چي دچنګيز تروراني وروسته بېرته ودان شوي وو يو ځل بيا وران کړل او پردې ورانو ديوې لويې امپراتورۍ ترجوړولو وروسته په ۸۰۷ هـ ق کال مړشو.

**بيا ودانې** : وايې « له بدو ښه کيږي اوله ښو وابښه » دتيمورزوی شاهرخ دهمدې متل مصداق ؤ ، دی په ۸۰۷ هـ ق کال په هرات کې پاچا شو . په ټول خراسان ، اوسنی افغانستان ارهنديې واکمني درلوده خطبه اوسکه يې په نامه وه اوڅ مدرسې ، کتابونه اوخيريه ودانۍ يې جوړې کړې ، علم او ادب ته يې وده ورکړه او دفرهناګ اوعلم په چنګيزی او تيمورې تېونو يې ملهمونه کښېښودل خو په ۸۵۰ هـ ق کال دده تر مړينې وروسته دتيموري شهزادګانو ترمنځ مخالفتونو داقتدار جګړې وزيږولي او يو بل يې سره ووژل . سلطان حسين بايقراء ددې کورنۍ يو بل عالم اوعلم دوسته پاچاؤ چي په ۸۷۳ هـ ق کال په هرات کې پر تخت کښېناست ، دده پاچايي هم ، لکه دشاهرخ غوندې دعلم او ادب دښيرازۍ اوودې دوره وه دده مامتو وزير اميرعلی شير نوايي دسياست او علم او ادب په نړۍ کې يو پياوړی شخصيت وو ، په دې دوره کې لوی . لوی عالمان ،نقاشان، خطاطان ، مفسرين اوادابی فنونو اوعلومو داسې ماهرين راپيداشول چي په تاريخ کې بې جوړی دي . مشهور نقاش بهزاد ، واعظ کاشفي ، مولانا جامی ، ميرخواند او مواند مير او نورپه سوونو نامتوکسان همدې دورې دافغانستان تاريخ ته ورکړي دي . دبلخ په خواجه خيران کې دحضرت علی کرم الله وجهه مزار دهمدې پاچا په امر بيا جوړ شو . په ۹۱۱ هـ ق کال دده تر مړينې وروسته بېرته دهرات تيموري دولت کمزوري شو او هيواد دچنګيزي کورنۍ يوه بل ښاخ شونی شيبک خان يو ځل بيا ويران کړ.

## دختیځ واکمنۍ

د ۸۰۰ هـ ق کال شاوخوا دهیواد په ختیځ کې دکونړ دسلطانانو واکمني وه په دوی کې دوه ورونه سلطان پکهل له لغمان او ننګرهار کې واکمني درلوده او بیا یې دورور ساحه هم ونیوه اوله کابل نه تر کشمیر پورې سیمې یې دواکمنۍ ساحه وه.
دکابل دواکمن سلطان الغ بیګ مغول له خوا په کابل کې دیوسفزو دشپږ ینم سوه مشرانو تروژل کیدو وروسته یوسفزي قبیلې په سمه او سوات میشتې شوې او دلته یې محلي واکنۍ درلوده.
شیخ ملی یوځانګړی اقتصادي نظام ورته جوړ کړ، زمکې یې پر خلکو وویشلې اوبیا به څو کاله وروسته دنوې سر شمېرنې له مخې دزمکوویش له سره نوی کیده او په سوونو کاله دانظام راروان وو . دشیخ ملی دفتر دپښتویو زوړ کتاب دي چي اوس یې متن ورک دي شاه منصور دیوسفزو یو محلی واکمن وو چي نامتو مغولی پاچا ظهیرالدین بابربیي له لوربی بی مبارکې سره واده وکړ.
دتېر یو مثلث او اوږده تجزیه:
هسي خو نړی تاړاک می څواکونه وځپل، دافغانستان اوسیدونکي یې قتل عام او دوی ملي، مادي اومعنوي شتمنۍ یې له منځه یووړې اوپه دې تېوله دوره کې داسې کوم پیاوړی ملي ځواک رامنځ ته نه شو چي دهیواد اداره او دهیواد زمکنۍ بشپړتیا تأمین کړي. لودیانو اوسوریانو له هیوادنه لرې په هند کې حکمراني درلوده اومغولوپه افغانستان کې کورنۍ جګړې تودې کړې وې.
دافغانستان دتجزیې او دمغولي شاهزاده ګانو دځپل منیځي جګړوپه ترڅ کې دابو سعید کروګان دکورنۍ یو غړی ظهیرالدین بابر په فرغانه کې په ۱۱ کلنۍ کې پرتخت کښېناست دی چي دچنګیز اوتیمور له اخلافو څخه وو په دې ماشومتوب کې یې وکړای شول چي خپله واکمنۍ وساتي او یو خوابل خوایې وغځوي. دهمدې کورنۍ له یوه بل واکمن شیباني خان سره وجنګیږد، ماته یې وخوړه افغاستان ته ترې راواو وښت،. دکندز له مغولي شاهزاده نه یې کندزونیو او په ۹۰۹ هـ ق کال یې کابل ونیوبیا تر کلاته وړاندې ولاړ، دمغولو په خپل منځي جګړو کې دده واکمني بې ثباته او کاواکه وه نو څکه له غرب نه شاه اسماعیل صفوي برید وکړ؛ دشمال پیاوړی واکمن شیباني خان یې وواژه اود افغانستان ځینې سیمې صفویانو لاندې کړي، بابر په شمال کې پرمختګ ونه کړای شو هند ته یې مخه کړه، په هند کې یې پښتون پاچا ابراهیم لودي ته ورکړه ددیلی پرتخت کښیناست او دهند دکورګانیانو دواکمنۍ خښته یې کښېښوده اوتردې وروسته کابل تربدخشان اوکندهاره

پورې دبابر له خواله دهلي نه اداره کیدل ، بابر یو خونړی زړور اوپه عین حال کې عالم او لیکوال پاچا وو چې لویه امپراتورۍ یې جوړه کړه .
په ۹۳۷ هـ ق کال په اګره کې مړ اودده دوصیت له مخې په کابل کې ښخ کړ شو. دبابر ترمړینې وروسته دده زوی همایون دهند حکومت له هغه قوت ونه ساتلي شو اوله بلې خوا دهند افغان واکمنو چې بابر واکمني ترې اخیستې وه تل هڅه کوله چې بېرته خپل واک او ځواک ترلاسه کړي . هماغه وو چې شېرشاه سوري همایون ته ماته ورکړه اودهندواکمني بېرته دافغانانو شوه ، خوپه افغانستان کې دماوراء النهردشیبانیانو ، دهند دګورګانیانو اودایران دصفویانو ترمنځ جګړې ،ماتې اوروغې روانې وې او داغانستان خلک اوشتمنۍ پکې تلف کېدل ، شیر شاه سورۍ په هندکې دمدنیت بنیاد ونه کښېښودل ، خو په ۹۵۲ هـ ق کال دده له ناڅاپي مړینې سره دده اخلافو واکمني ونه ساتلای شوه او پر هند هم بېرته مغول قابض شول اوهمایون ددیلي پرتخت کښېناست ،په ۹۶۳ هـ ق کال دده تر مړینې وروسته دده ماشوم زوی جلال الدین اکبرپاچا شو.
تراکبروروسته په ۱۰۳۴ هـ ق کال کې دده زوی جهانګیرپاچا شو. په ۱۰۳۷ هـ ق کال دده تر مړینې وروسته شاه جهان واک ته ورسېد . په ۱۰۶۸ هـ ق کال یې زوی اورنګزیب کود تا برې وکړه او دی واک ته ورسېد او تر ۱۱۱۸ هـ ق کال پورې یې دخپل دمرګ تروخته اوږده پاچاهي وکړه ، چې ترده وروسته مغولي واکمني کمزورې اوبیا نسکوره شوه .
داوخت په افغانستان کې ددریوو بېګانه ځواکونو ازبکو ، ګورګانیانو اوصفویانو ترمنځ هم جګړې وې او دافغانانو داآزادۍ جګړې هم روانې وې ، بایزد روښان چې په هند کې افغانانوله سقوط سره مغولو ځورولي او ددوي کورنۍ یې له جالندرنه راکډه کړې وه ، دافغانانو دملي واکمنۍ درامنځ ته کولو په منظور دپیرۍ جامه کې یوه پیاوړې مبارزه رانښلولې وه او ده او پیروانویې پوره یوه پیړۍ مغولو ته دسرکاسه کې اوبه ورکړې . داورنګزیب په وخت کې دیو سلزیو مبارزې روانې وې، ایمل خان مومند او دریا خان اپریدي دخپلو ملي لښکرو په مرسته له مغولي تسلط سره جنګېدل اوبیا خوشحال خان چې دژوند زیاته برخه یې دمغولو په ملاتړ کې تیره شوې وه په سپینه بیره افغان شو او له مغولي تسلط یې مقابلې وکړې خو مغولو په چل او دکورنیو مخالفتونو درامنځ ته کولو له لارې وکوتلې .

اخځونه :

دافغانستان لنډکی تاریخ حبیب الله رفیع « ۳۲ + ... »

دیارلسم څپرکی

# دهیواد خپلواکي او دیر غلونو ماتي دهوتکیانو دور

(۱۱۲۰هـ - ۱۱۵۰هـ)

## الحاج میرویس خان هوتک

حاجي میرویس خان هوتک(۱۶۷۳- ۱۷۱۵زېږدي) د شاه عالمخان هوتک او د نازوتوخۍ نامتو زوی . د افغانستان ستر مبارز ، مدبره مشر چې افغانان یې د ښه مشر تا به له کبله نیکه هم گڼي د شاه عالم خان هوتک زوی ، دکرم خان هوتک لمسئ ، په کال۱۶۷۳ زېږیز کې ، کندهار کې سترگې رونې کړې. دی په خته هوتک و چې دغرزیو دټبر یوه ستره پښه گڼل کېږي . ددې ټبر ډېری وگړي په کلات،هرات او کندهار کې مېشت دي.

## د کورنۍ مخینه

دمیرویس نیکه مور یوه غیرتمنه اتله یادېږي. د دغې غیر تمنې ښځې نوم نازو توخۍ وه ، چې د سلطان ملخي توخي لور وه. (توخي هم دغرزیو له پښتنه یوښاخ دی. ددې پښت ډېره برخه وگړي په زابل دکلات مرکزپه شمول دشنکۍ (مرغې)، سوري او اتغرولسوالیو کې مېشت دي چې سورغر اوبری غریبی جنگي سمبولونه دي . دمیرویس خان هوتک درې ورونه وه ، هر یو یې عبدالعزیز خان هوتک ، عبدالقادر خان هوتک او یحیی خان هوتک نومېدل . همدا راز میرویس خان هوتک دجعفرخان ابدالي دپتمني لورسره چې خانزاده نومېده واده کړی و . د ژوند په ۴۲ تم کال (۲۵ دسمبر ۱۷۱۵ زېږیز چې د ۲۸ ذوالحجه ۱۱۲۷ سپوږمیز سره سمون لري په کندهار کې له دې فاني نړۍ څخه وکوچېد .

## دمیرویس خان پوهه اوکړنه

د میرویس خان هوتک پلار په دغه وخت کې د غرزیو د توکم لاربنود مشر واوله پوپلزیو سره د خپلوۍ له کبله گڼې ابدالی دوست هم بلل کېده. میرویس په خپلو سترگو او له ډېر نږدې پر خپلو هېوادوالو د بهرني حکومت توپیر پالنه لېدله. اوهم یې د سوداگرۍ د کسب له لارې لیدل چې په څه

ډول د کندهارد بې سر او پای سوداګریزې پانګې ګټه بهرنیو جېبونو ته ورتلله. همداشان هغه لېدل چې په کندهار کې پراته ۳۰ زره بهرني سرتېري باید د دغه ځای د وګړو د خولو له شامته ماړه شي چې د نورو د ټکولو لپاره ښه تکړه اوسي او هم دې د ایراني پارس واکمنو د توپيرپالنې د بدیایی یا تکبر دروند پېټی هم پر اوږو یوسي. له دې امله مېرویس خان د توکم د خورو ورو ځواکونو یووالي ته لستوڼي را بډ وهل. بهرنی واکمني یې رنګه او ملت یې د پردیو له مرییتوبه و ژغوره. د توکمونو خانانو لا له مخکې څخه هغه پېژانده او مېرویس یې په خپلو ډلو کې د ځان په څېریو مشر ګانه. د ښار وګړو هم د هغه خیرغوښتونکی، دروند او سپېڅلی چال چلند د سر په سترګو لېدلی و او پر هغه یې ډاډ درلود. یوازېنی لاره چې پاتې وه هغه د کړنې او عمل خپلواکي وه او دا د یوه پوځي حکومت تر څار لاندې شونې نه ښکارېدله. نوځکه مېرویس خان هوتک له مېرڅي سره د دوستی له لارې ور وراندې کېږي او له سر زورو ټېرونو څخه د مالیې د راټولولو، سلا او مشورو، خوَلې تویونې، د اداري چارو د سمبالتیا اود ټولو اداري چارو د واګو د لاس ته راوستلو له لارې ګرګین یې دومره ځانته را نېږدې کړ چې ګرګین هوتکي مېرویس د هغه د پوهې او ژورلېد او ځیرکوالي له کبله د کندهار د ښار د راهیتې یا کلانتر په توګه و ګوماره او دغه دریځ په هغه وخت کې د نن ورځې د ښاروال له دریځ سره برابر دی. د دغې دندې د تر سره کولو په ترڅ کې مېرویس خان د خلکو ډاډ تر لاسه کړ او ځان یې د یوه منځګړي پله په توګه د ټولو وګړو او دولت تر منځ په زباد ورساوه او په همدې ترڅ کې یې د توکمونو له مشرانو او خانانو سره له خوږواله ډکې اړیکي وساتلې او بله ځانګړتیا یې دا وه چې میرویس خان د ابدالیانو زوم وو او هغوی ور څخه کرکه نه درلوده.

## د صفویانو مذهبي بدوالی او خپل منځي وژنې

نامتو ایرانی پوه داکتر شفا لیکي چې: صفوي اسماعیل شاه خپل پاچاهی په تبرېز کې د شل زرو سُنیانو له وژلو پیل کړ. کله چې مشهد ته را ورسېد نود هغه قزلباشو سرتېرو د پاچا د وېنې تویولو د تندې د ماتولو په پار په طبسین کې اته زره وګړي له چړو تېر کړل. لومړي شاه عباس خپل دوه ورونه، یو وراره، اکا او خپل دوه زامن (محمد میرزا او امام قلي میرزا) ړانده کړل او خپل درېیم ځای ناستی زوی وصفي میرزا یې په ډېرې سخت زړی وواژه. د هغه د وروستني زوی د ړندېدلو وسه یې نه درلوده ځکه یې ځان وژنه وکړه او په دې ډول د شاه عباس له پښته هېڅ نارینه ماشوم ژوندی پاتې نشو.

## د پارس صفوي دولت پر ضد د میرویس هوتک پاڅون
## (۱۷۰۹ از)

په ۱۵۰۰ زیږدي کال کې په ماوراء النهر کې شیباني او په ۱۵۰۲ زیږدي کال کې په پارس کې صفوي دولتونو سرونه را پورته کړل او په ۱۵۰۳ ز کال کې بابري (ګورګاني) دولت په کابل او وروسته په ۱۵۲۵ ز کال کې په هند کې رامنځ ته شو. دغو نویو رامنځ ته شویو دولتونو له شمال، لویدیځ او ختیځه افغانستان ته لاسونه را وغځول او هیواد یې په درېو شمالي، لویدیځو او ختیځو برخو ووېشه. پدې مانا چې په ۱۵۱۰ ز کال کې د ایران صفوي دولت هرات او سیستان او هم په ۱۵۵۶، ۱۶۲۲، ۱۶۴۸ ز کلونو کې د مغولي پاچایانو له منګلو یې کندهار ونیو. او د هند بابري دولت پر ۱۵۰۳ ز کال پر کابل او پر ۱۵۰۵ کال پر غزني او پر ۱۵۰۸ ز کال پر ننګرهار او پر ۱۵۲۰ ز کال یې پر کندهار د واکمنۍ منګولې ښخې او ویې نیول. په ۱۵۰۰ ز کال کې ازبک شیباني دولت هم کله چې په سَمَرقند کې یې د تیمور وروستنۍ پاتې شونې له پښو وغورځولې او د ګورګاني دولت پر ځای یې په ماوراء النهر کې د خپل دولت بنسټ کېښود نو پر کال ۱۵۰۶ ز له آمو را واوښت او بلخ یې ونیو. یو کال وروسته (۱۵۰۷ ز کال) محمد خان شیباني (شیبک خان) له آمو را واوښت او په مرغاب کې یې د تیموري شهزادګیو مقاومت وټکاوه او هرات یې ونیو"

پدې ډول د دوه نیمو پیړیو په اوږدو کې له ۱۵۰۶ ز تر ۱۷۰۹ ز کال پورې په لویدیځ او سویل لویدیځو ولاتیونو او تر ۱۷۴۷ ز کال پورې په ختیځو ولایتونو کې د پردیو د واکمنۍ لړۍ را وغځېدله. د هیواد په ګڼو نیول شویو سیمو کې د پردیو واکمنو او کورنیو چوپړ مارانو دنده یوازې نیواک ګرو واکمنانو ته په زور زیاتی، د ګړو غاړه را ټیټونه او د مالیاتو را ټولونه او د خپلواکۍ غوښتنې د هر ډول پاڅون او غړوژل ول. د صفوي د واکمنۍ پر مهال د شیعه ګروهه د دولت د رسمي مذهب په توګه ګڼل کېدله چې په خپل ټول واک او ځواک له ناتارګرۍ، سیاسي □مذهبي په خپل سرۍ، سخت زړېټوب او ټولوژنې سره ملګرې وه. تېرنۍ، توکمېزې، ګروهنېزې او غیر شیعه مذهبي ډلې تل ځورول کېدلې، هغوی ته سپکې او سپورې ویل کېدلې او ان دا چې په ټولېزه ډول به وژل یا ځورول کېدلې او یا به د شتمنیو د نیولو له لارې اړ ایستل کېدلې چې له خپلې ګروهنې او مذهبي تګلارې څخه لاس پر سر او پر شیعه مذهب را واوړي.

د لومړي شاه عباس ځای ناستی د صفي میرزا زوی سام میرزا له خپل غور نیکه شاه اسماعیل څخه په سورلاسۍ او وینې بهونه کې کم نه وو. د خپلې څوارلس کلنۍ واکمنۍ په اوږدو کې یې پرته له ځند او خنډه ټولوژنه له خپلو خپلوانو را پیل کړه. هغه خپله ماندینه او مور دواړه ووژلې او په یوې

مسېدلې او نیشې د کې شپې کې یې شېدې رودونکې زوی په اور کې را ګوزار کړ. د وصفي پر نامه د دویم شاه عباس زوی چې د پاچاهۍ له غوره کېدنې وروسته یې خپل نوم پر شاه سلېمان را واړاوه د پاچاهۍ د ځای ناستنې له هماغو لومړیو پیلېزو شېبو څخه د دربار یو شمېر مخورسپین روبي ، سیاسي مشران ، دربار ته نېږدې ځمکوال او پوځي لارښوده بولندویان له چړو تېر کړل. د شاه سلېمان زوی سلطان حسین چې څو زره حدېثه یې له یاده زده ول او کوشنی کاریې پرته له خدای پالنې ، خدای غوښتنې او استخارې نه تر سره کاوه ، له شپږو کالو پاچاهت وروسته خپله وچه خدای پالیزه سپېڅلتیا یوې خوا ته کړه او د شرابو په کونړونو (جامونو) کې د لمېسدنې یا نشې په خوبونو کې ډوب شو ، لېوالتیا او تندې یې د حرمسرای ښځمنو چوپړیانو ته په ښندېز (افراطي) ډول په ډېرېدا شوه . ان خبره دې ته را ورسېدله چې د هغه خواجه سرایان به د جُلفا په کوڅو کې ګرځېدل او هر چیرې چې به یې ښایېسته نجونې یا ښځې ولېدلې نو پاچا ته به یې راتښتولې. دغه پر خدای مین او خدای پال پاچا د نورو چارو په پرتله په خپل حرمسرای کې ډېر بوخت وو؛ د ولایتونو واکوالو به له یو بل سره په سیالۍ کې د پاچا د ښځمنغوښتنې د تندې او لمسېدنې د ماتولو لپاره د خپلې واکمنۍ له سیمې څخه ښایسته نجونې په وچ زور را ټولې ، پاچا او اړوندو کسانو ته به یې حرمسرای ته ور ولېږلې.[۱]

د دغه پاچا د پاچاهۍ پر مهال د شیعه د روحانیت مذهبي تنګ الواکي (تعصب) دومره زیاته شوه چې له امله یې د ایران تر ولکې لاندې ولایتونو کې مذهبي لړکېو پاڅونونو ته لاس واچاوه. د بېلګې په ډول په ۱۱۱۱ کال کې بلوڅانو پر کِرمان یرغل وکړ، پر کال ۱۱۲۱ د کندهار وګړو او په ۱۱۲۳ کال کې داغستان ، په ۱۱۲۶ کال کې په هرات کې ابدالیانو او په ۱۱۲۷ کال کې سُني کُردانو پاڅون وکړ. په ۱۱۳۵ کال کې د قفقاز ارمنېانو بلوا او سرغړوانه را وپاروله. په هماغه کال کې د ختېز ګرجستان وګړو هم اله ګولې ته لاس واچاوه . په ۱۱۳۳ کال کې لرانو او په ۱۱۳۴ کال کې د مسقط بلوڅانو او عربانو پاڅون او یاغېتوب وکړ. په همدغه کال ۱۱۳۴ کې په شیروان کې د تسنن د ډلې د مذهبي خپلواکۍ غوښتنې څپې په خوټېدو شوې او د حاجي داؤد مُدَرِس تر مشرۍ لاندې یې پر شماخي کرسي شیروان یرغل او له څلورو تر پینځو زرو شیعه ګان یې له چړو تېر او د عثماني ترکېې په پلوي یې ډغونه راپورته کړل. (۴)

## د میرویس خان نیکه مزار

لنډه دا چې د صفوي سلطان حسین د پاچاهۍ په وخت کې د لسګونو نورو نیمګړتیاو تر څنګ د اداري چارو ناسمبالتیا او ګډ وډي ، د درباریانو په منځ کې تربګني او دیوبل پروړاندې دروهه (توطئه) جوړونه ، بدې خوړنه او د صفوي د خپل سرو واکمنانو تیرغمالي او ناتار او د روانو قوانینو نه پلي کولو ، د غیر شیعه ډلو پر وړاندې د شیعه دولت مذهبي تنګ الواکي ، د خلکو کوکارو او نارو ته د تیریو د ډیرېدا له امله غوږ نه نیول ، د وګړو له زوره وتلې مالیې او د وروسته پاتې مالیې د ترلاسه کولو لپاره له زیږبناک او زور زیاتې کار اخیستنه ټول ددې لامل ګرځېدل چې د ټولنې اغیزمن کسان د لاړو چارو د موندلو په لټه کې شي او د خپلې سیمې او د ملي خپلواکۍ لپاره هلې ځلې وکړي او له دغسې وړَندو او مناسبو حالاتو څخه په ګټه اخیستنې اړینه ګټه پورته کړي.

نو د اتلسمې زیږدیزې پیړۍ په پیل کې د کندهار بیا د هرات او سیستان وګړو چې له تأریخي – جغرافیوي ، اقتصادي او دوديزپلوه له یو بل سره ډیرې ګډې ځانګړتیاوې لري او په خته کې یې د میړانې ، ربنتنګلوۍ ، همغږۍ ، ځان تېرېدنې او خپلواکۍ غوښتنې سپېڅلي احساسات ډیر پیاوړي دي د صفوي بې کفایته دولت له ناتار او تیریو څخه د ځان ژغورنې لپاره یو په بل پسې متې را بډ وهلې او په سمبال شوې توګې د صفوي دولت د زور زیاتۍ ، لنډپارۍ او لنډګروهنې پر وړاندې په پښو ودرېدل ، پاڅون یې وکړ او د سپېڅلې جګړې لړۍ یې په سربښندنې د بشپړې خپلواکې د ترلاسه کولو تر شېبې پورې بهانده وساتله او بیرته په پښو کښېښناستل. د هغوی موخه د پردۍ واکمنۍ له منګولو څخه د وګړو خپلواکي وه. د خپلواکۍ لپاره د وګړو پاڅونونو نه یوازې په خپله خته کې لاربنود یز پېلوزي او مشعلونه روښانه کړل بلکه په ایران ، افغانستان او نورو سیمو کې یې خوځښتونه را وپارول او لدې چې د دغو پاڅونونو په تومنه کې د موخو او اهدافو څرګندوالی وو نو ځکه پایله یې په بریا واوښتله.

## کندهار پر نېوني دهند او ایران شخړه :

له هغې شېبې وروسته چې د کندهار د نېوني سکالو (موضوع) د ایران او هند د دولتونو تر منځ را برسیره شوه ، نو دواړه د ایران صفوي دولت او د مغولي هند د ستروواکۍ ستروواکان د کندهار د نېونې پر سر له یو بل سره په شخړو کې را پرېوتل او ځو ځو ځله شاه جهان او عالمګیر د کندهار د نېولو لپاره خپلې لښکرې پردغې سېمې را تاو کړې. په ۱۵۲۰ ز کال کې مخکې لدې چې بابُرد هند پر لور خپلې لښکرې سمې کړې نو د لومړي ځل لپاره یې کندهار ونېو او خپل زوی کامران مېرزا یې د هغه ځای د حکومت واکمن و ټاکه. خو د ډېرې لنډې مودې له تېرېدلو وروسته صفوي سام مېرزا (د هرات واکمن) په همدغه کال( ۱۵۲۰ ز) کې د کندهار د نېولو لپاره خپلې لښکرې سمبال کړې او دغه ښار یې کلابندي کړ. خو کامران مېرزا د سام مېرزا پر وړاندې مقاومت وکړ او د سام مېرزا کلابندي یې ور ماته کړه او سام‌مېرزا اړ شو چې په شاشي ،سیستان ته ولاړ او له هغه ځایه بیرته هرات ته ستون شو (۴) . خو د بابُر زوی او ځای ناستي همایون ، صفوي دولت ته د صفوي دولت له هغې مرستې څخه چې د افغاني سورویانو له لاسه یې د ډیلي پاچاهي بیرته نېولې وو په ۱۵۴۴ ز کې کندهاریې ایران ته ورکړ. د شهزاد ګي مُراد تر سروالۍ لاندې صفوي لښکرو قندهار په لاس کې واخیست خو دغه شهزادګی یو کال وروسته په کندهار کې ومړ او همایون کندهار بیرم خان ته وسپاره او د ایران لښکریې رخصت کړ (۱۵۴۵ ز). خو د صفوي دولت له زړه څخه د کندهار د دولت هیله هېڅکله ونه وتله او یو ځل بیا یې د هغه د نېولو لپاره لښکر ور ولېږه.

په ۱۵۵۶ ز = ۹۶۴ ق کې لومړي شاه طهاسب کندهار له هندي مغولو څخه ونېو خو د هند پاچا اکبر هغه ځای بېرته د ایران له منګولو را خپل کړ. لومړي شاه عباس ، په ۱۶۲۲ ز = ۱۰۳۲ ق دغه ولایت د هند له ستروواک جهانګیر څخه ونېو ، خو شپاړلس کاله وروسته (۱۶۳۸ ز) جهانګیر بېرته دغه ځای ونېو. په ۱۶۴۸ ز (۱۰۵۸ ق ) کې دویم شاه عباس د خپلو پنځوس زرو سرتیرو پر مټ یو ځل بیا دغه ولایت ونېو او دا ځل یې بُست او زمینداوَر هم د واکمنۍ په لمنه کې را ګډ کړل. صفوي شاه د مهراب خان تر مشرۍ لاندې خپل لس زره سرتیري په کندهار کې پرېښودل او د فراه او هرات له لارې مشهد او بیا اصفهان ته ستون شو. له هغه وروسته تر ۶۰ کالو (تر ۱۷۰۹ ز = ۱۱۲۱ ق پورې) کندهار د ایراني صفویانو په لاس کې پاتې شو او هندي پاچایانو ونه شوای کولای چې پر دغه ولایت بر لاسي شي (۵). په دې توګه له ۱۵۲۰ ز تر ۱۷۰۹ ز پورې کندهار تر پنځوسو کالو د هندي پاچایانو او تر یو سلو شلو کالو پورې د ایران د صفوي دولت په ولکه کې را ګېر پاتې شو.

د کندهار د ښاراو د ټول ولایت د نېولو لپاره هندي او ایراني دولتونو د افغاني ټوکمونو او ټبرونو همکارۍ او همغاړۍ ته اړ ول نو له دې امله شک او شوپیان نسته چې د خپلې موخې د ترسره کېدلو لپاره یې لومړی د افغاني ټبرونو مشران د بډې او ډالېو، د وریا ځمکو او (آړوتو یا شرطي ځمکو) او نورو توپیرپالو برلاسېو د ورکړې له لارې ځانته را لېواله ول او بیا به یې د هغوی پر ځمکو لښکرې ور وځغلولې. په دغه اکر یا حالت کې د واکمنۍ د ټلې پله د دواړو سیالو ډلو په ګټه را تاوېدله او سوبمنو دولتي واکمنانو به د ټوکمونو همغړې مشران تر پالنې لاندې ونېول او مخالف ټوکمونه به یې تر هغه وټکول او و به یې زېښېل چې له خپل پلرني ټاټوبي څخه کډوال کېدلو ته اړ کېدل. لدې لارې به یې د خپلې واکمنۍ د غځولو او دوام لپاره د افغاني ټوکمونو په منځ کې د بېلتون پالنې پر اور نورې خځلې او تیل ور واچول او اور لړونې به یې ورته وواهه. په خواشینۍ کله چې د افغاني ټوکمونو مشران د هند یا ایران د پیاوړو دولتونو تر پام او پالنې لاندې راتلل، نو په ناپوهۍ به یې د بېلتون پالنې په ټبر خپلې رېښې ووهلې او په سر کې یې د خپل خپل او ټبر چاڼونې ته متې را بډ وهلې دي.

ستر ملي مبارز الحاج میرویس خان نیکه سدوزي دولت خان کله چې د خپلې واکمنۍ د سېمې لمنه تر غزني او له غزني د سلېمان تر غرونو وغځوله نو له یوې خوا یې په کندهار کې د صفوي واکمن پر وړاندې سرغړاونه وکړه او د خپلواکۍ او کورواکۍ غږ یې پورته کړ (چې مخکې مو ورته ګوته ونېوله) خو له بل پلوه یې خپل د اکا زوی حیات سلطان دومره وزېښېه چې دې ته اړ شو چې له خپلې ټولې شتمنۍ او پلرنۍ ځمکې لاس پرسر او له خپل ورور لښکر خان او څه ناڅه د ابدالي ټبر له شپږ زرو کورنېو سره یو ځای ملتان ته په کډوال کېدنې اړ شو (۶) سدوزي دولت خان ښایي د خپلې کورنۍ د سیالانو له زورواکۍ کډوالۍ څخه ځان سوبمن باله، خو د خپلې ځواکمنۍ او بریا په شپېو کې یې د صفوي بیګلربیګي اغېزه د کندهار د پوځي کلا په کوټوالۍ کې هم ورلنډ کړې وه. فرهنګ د دغې بلوا لامل د کندهار د یوه ځمکوال سدوزي دولت خان سرغړاوی بولي او لیکې: د صفوي د لړۍ وروستنی پاچا شاه حسین چې په ۱۶۹۴ ز کال کې یې د اصفهان پر پاچاهت ډډه ولګوله یو بې واکه، بې پرېکړې، ضعیف النفس او خرافاتي سړی وو. د هغه د دربار لوړپوړو چارواکو له یو بل سره سیالي کوله او د هغوی د دروهو او دسېسو له امله د دولت اغېزه په مرکز او ولایاتو کې بې اغېزې شوې وه. د ابدالي د ټبر راهېټ یا کلانتر (ښاروال) سدوزي دولت خان چې د سدو خان (د دغه ټوکم یو مشر) له پښته وو د خپلې ټوکمېزې اغېزې په ملاتړ په کندهار کې له صفوي والي څخه

سرغړاوی وکړ او په هغې سېمې کې اکر یا حالت خرپړشو. د اصفهان دربار پرېکړه وکړه چې د دولت خان د تکونې لپاره په کندهار کې تک سری او زمبک (سختگیر او با انضباط) والي و ټاکي او د دغه د تر سره کولو لپاره یې د ګئورګي و ختنک په نامه تن نوی مسلمان شوی ګرجي چې په تاوتریخوالي ،پرغزناکی یا قهر او بد چال چلند کې یې نوم درلود و ټاکه. ګئورګي چې افغانانو د ګرګین پر نامه پېژانده د شاهنواز خان ، بیګلر بیګي یا حاکم اعلی د درناو نوم په لرلو سره په ۱۷۰۴ کال کې د ګرجیانو او قزلباشانو له ډلو څخه جوړ یوه ځواک سره کندهار ته راغی او هڅه یې وکړه چې د خانانو او سېمه ییزو واکمنو اغیزمن مختورتوب ته د پای ټکی کېښېږدي او په کندهار کې د مرکزتر نېغې څارنې لاندې یوه اداره رامنځ ته کړي. خو ګرګین له خپلو ټولو ځانګړتیاوو سره سره یو درغلن سړی هم وو او په لومړي سر کې یې د دولت خان له سیالو ابدالي مشرانو سره د همغږۍ او مېنې تارونه و غځول او د غلزیو له مشرانو څخه یې نامتوهوتک امیرخان چې د میرویس په نامه پیژندل کیږي د پامور و ګرځاوه (۷) .

هرګوره ، ګرګین په دوه مخۍ او درغلۍ د سدوزي دولت خان له منځه وړلو څخه مخکې ، د میرویس خان پر وړاندې خپله هر ډول بد نیتي پټه وساتله او خپل ټول پام یې د دولتخان او د هغه د ټبر پر پرځورولو او دړې وړې کولو ور نېغ کړ. هغه د ابدالي د ټبر یو شمیر سیال کسان وموندل او له هغوي څخه یې د دولت خان په نېولو کې د مرستې غوښتنه وکړه. په خواشینۍ چې دغو لنډ باورو سیالانو (عزتخان او اتل خان سدوزي) د یوې شپې په نېمایي تور تم کې ګرګین او د هغه وینې څښونکی لښکر شهر صفا ته (د کندهارد ختېزپه ۳۰ مایلي واټن کې) د دولت خان تر کلا راوست. د ګرګین ځواکونه تر کلا را تاو شول ، د کلا وَر یې وَر مات کړ او د کلا پر انګړ ور ننوتل. دولت خان د تېښتې پرځای د ګرګین د بنه راغلاست لپاره دباندې راووت او ګرګین د سترګو په رپ کې دولتخان وواژه بیا یې زوی نظر محمد خان د ګرجي لښکر په غیشو او شلګرو مړ کړ. رستم خان او محمد زمان خان د دولتخان دوه نور زامن، د شپې له تیارې څخه په ګټې اخیستنې په تېښته بریالي شول او ځانونه یې ارغسان د خپل د ټبر زړه ته ورسول. د دغې پېښې په خبرېدا د ارغسان ابدالیو وسلې را پورته کړې او له ګرګین او د هغه له لښکر څخه یې د غچ اخېستلو ژمنه وکړه. ګرګین له دغه اکر او حالت څخه په ویره کې ولوېد او سولې ته یې غاړه کېښېښودله او د دولتخان زوی رستم خان یې د ټبر د مشر په توګه په رسمیت وپیژانده او د ابدالي ټبرد راتلونکو شونو پیښېدونکو غښکو او خطرونو د مخنیوی لپاره یې له رستم خانه، محمد زمان خان (د ستر احمد شاه بابا پلار) د یرغمل په توګه

وغوښت او په بېړه یې د ساتونکو تر غیشو لاندې کرمان ته ولېږه چې هلته د یرغمل په توګه تر څار لاندې وساتل سي. ګرګین څلور کاله وروسته رستم خان هم په چل او درغلۍ ژېندۍ کړ. او بیا یې د شلګرې یا نېزې په زورد ارغسان له سېمې څخه تول ابدالیان د ګرشک او فراه ترمنځ (په بې اوبو او بې وښو دښتو کې) شړونې ته اړ کړل. ابدالیانو بله لاره نه درلوده مګر دا چې د شورابک او فراه په دښتو کې په شپنتوب او پوند ګلوي بوخت شي او یوه برخه یې د هرات د ولایت او اسفزار په څېرمو سیمو کې خوره وره شوه او یو شمېر یې کرمان ته په شړونې اړ شول. ۱۱۱۹ ق /۱۷۰۷ ز څرنګه چې وویل شول د ګرګین سرتیري چې تول د هغه هېوادوال ګرجیان ول د سوبمن لښکر په توګه یې د کندهار پر وګړو له ډیر ناتار او تیرغمالۍ (ظلم) څخه کار اخېست او د (پښتو تأریخ) پروینا د هغوی له لاسه نه سپین ږیري، نه ځوان او نه ښځې هیڅ چا ښه ورځ نه درلوده (۹). له دې امله ورځ په ورځ د صفوي د واکمنۍ پر وړاندې د ناراضیانو شمېر زیاتېده. د دغو ناراضي کسانو په ډله کې یو پوه اودور اندېښه سړی د مېرویس خان پر نامه وو چې په پوهې او هوښیارۍ یې د یوه لوی پاڅون لپاره لاره پرانېستله.

## دهوتکي دور پلاز مینه او د کندهار

## دزاړه ښار تاریخي کلا (دنارنج مانۍ)

خو وګړي د حکومت له ناتار او شډلتیا څخه تر دوه وو سوړمو را رسېدلي ول او د لارو چارو د موندلو او لټولو په موخه یې مېرویس خان ته را مخه کړه. مېرویس خان د صفوي شاه حسین پر نامه یو لیک ولېکه او په ترڅ کې یې د ګرګین له لاسه غاو یا احتجاج او د چارو د سماونې غوښتنه کړې وه او پدې هېله چې د ګرګین او د هغه د ناتارګر ځواک لاسونه د خلکو له ګریوانونو څخه خلاص شي نو د مېرویس خان او د ښار د نورو مخورو مشرانو له لاسلیکونو وروسته دغه لیکنه د توکم د پاپوتکرو یا صادقو کسانو له لارې د اصفهان دربادر ته ولېږل شوه. خو د صفوي خوسا او ککړ دربار دغسې سرتکونو ته د ځواب وسه نه درلوده. ګرګین هم د خپل وررور له پلوه چې د صفوي په دربار کې یې د دیوان بیګي دنده درلوده له دغې سرتکونې څخه خبر سو، مېرویس خان یې له دندې ګوښه او هرچا چې په دغه لیک کې لاسلیک کړی وو له مېرویس خان سره یې یو ځای د سرتیرو تر څار اود تورو تر سیوري لاندې د ایران دربار ته ولېږه او هغوی یې د ایران د دولت یو میرځي او دښمن ور وپېژندل (۱۰۷). د یوه لېږد یا روایت پربنسټ صفوي دولت مېرویس خان او د هغه نور ملګري دربار

ته ننېږدي يوه زندان ته ولېږل (۱۰). مېرويس خان ډېر ژر د خپل بند په موده کې د پاچا پر ځان پالنې، وېرو سولو او ناپوهې چې د خواجه سرايانو او ملايانو د لاس ناوکې. گرځېدلې وو پوه شو. نو مېرويس خان لارې چارې و پلټلې او ځان يې د گرگين له تورونو څخه خلاص کړ. همدا شان هغه د دولت ختېه او تومنه په ځير ولېدله او پوه شو چې دربار په خوسا لوخړو کې ډوب دی، پاچا بېوره يا بې کفايته سړی او د دربار مأمورين خپل سري او لټ دي. په کار پوه کسان او بولندويان رټل شوي او د هغوی ځای بيکاره، بډي خوړونکو او خرافاتي کسانو ته ځای ورکړل شوی. اداري چارې گډې وډې او پاچا د حرم له انډيوالانو سره پر تعويذونو، دعاگانو، فال لېدلو، جفر يا علم الحروف او باندارونو بوخت او د دولت د چار واکو، خانانو او ملايانو د ناتار اود ملاماتوونکو ماليتاو تر درونډ پيټي لاندې اوبه د وگړو تر ترخځه رارسېدلې دي. مېرويس خان داده شو چې له دغسې يوې ککړې دولتي اداري څخه د خپلواکۍ تر لاسه کول اسانه کار دی خو د هغې د ترلاسه کولو لپاره د افغانستان د وگړو ملي يو والی لومړنی آر يا شرط دی، له بلې خوا د خلکو لاربنوونه د سېمه ييزو پياوړو ځمکوالو، خانانو او ملايانو په لاس کې ده او دغه خانان په يوه ډول نه په يوه ډول له صفوي چارواکو سره غاړه غړی او په خپلو منځو کې لاس او گريوان او په سيالۍ کې ډوب دي او ملايانو هم وگړي د اسلامي ورونو پرمخ د تورو له را ايستلو څخه بيرول (۱۱) کروسينسکي يو لهستاني يا پولندي کشېش دی چې د مېرويس د جلا وطنۍ په وخت کې په اصفهان کې وواو هم په ۱۷۲۲ ز کال کې په همدغه ښار کې کله چې افغانانو اصفهان کلابندي کړی وو بيا هم په اصفهان کې وو؛ کروسينسکي د يوه يادښت لېک په ترڅ کې د ميرويس خان د پوهې، ننگ و ناموس او ملي پت پالنې په اړه لېکلي دي: مېرويس خان د افغاني ټبرونو او توکمونو په منځ کې پر ټولو گران او د درناوي وړ سړی وو. له حده وتلی له ويارو او پرتمه ډک، کارپوه، هوښيار، ځېرک د تورې او د گر سړی وو او له دې چې افغانانو ورته ډېر درناوی او غاړه اېښوونه درلوده له نو ډېرېر ځان داده وو او د هندوستان وگړو ته ډېر لېواله وو. د ډېرو پانگو په لرلو يې سفرونه کول او له شماره وتلې گټه يې را ټوله کړې وه. گرگين خان د خپلې نېنگلتيا (طمعې)، غرک يا حسد د ډېروالي له امله د مېرويس خان د شتمنۍ د نيولو او هغه ته د سپکاوي لستوني رابډ وهل، هغه يې را وغوښت، د هغه درناوی او پالنه يې وکړه او د ځان له پلوه يې ورته داد ورکړ او په دې پلمه چې ته يو پوه او هوښيار مشر يې نو د خپلو يو شمير کارونو او چارو د سمبالتيا لپاره غوارم تا اصفهان ته واستوم، هغه ته يې له درناوي ډکې ژمنې وکړې او د هېلو ټولې کړکۍ يې پرمخ ور پرانيستلې (۱۲)

کروسنسکي په خپل کتاب کې چې د اصفهان پرځېدنه نومېږي د مېرویس خان په اړه لیکي:
مېرویس خان د کندهار راهبټ یا ښاروال وو، د کندهار د وګړو په منځ کې د خپل ښه چال چلند له امله په کاري ډګر کې یو ازمویل شوی سړی وو او د ګرګین په سترګو کې ویره را پیدا شوه او په دې لټه کې شو چې له قندهاره یې لېرې کړي. ګرګین خان د مېرویس خان په اړه، پاچا ته د خپل ګزارش په ترځ کې خپله بدګوماني لیکلې وه او وړاندېز یې کړې وو چې نوموړی دې په اصفهان کې په جلاوطنۍ کې وساتل شي. ..... شکمن مېرویس خان هرو مرو او باید په اصفهان کې تر څار لاندې وای، د خپلې پوهې له امله یې نه یوازې دربار ته لاره وموندله بلکه د کروسینسکي پر وینا د پاچهت د پلاز یا تخت له وزیرانو سره یې د زړه خواله وموندله او تل به د هغوی ښه راغلاست ته چمتو وو. مېرویس خان چې په خپله ککره کې د یوه لوی ګام د اوچتولو لپاره تابیا نېوله اجباري جلا وطني او په دربار کې د هغه استوګنه یوه بدایه شېبه وه او له دغې شېبې څخه په ګټې اخیستنې هغه و کولای شوای چې د ایران اکر یا حالت تر څار لاندې ونیسي. هغه په دربار کې د استوګنې په موده کې د درباریانو او چارواکو ترمنځ د یو بل پر وړاندې د مخالفت او سیالۍ لوخړې له نېږدې و څېړلې او د فرانسوي کشیش دوسرسو په وینا کله چې دی د درباریانو تر منځ د ډله ییزو سیالیو په تورو لوخړو خبر شو نو پرېکړه یې وکړه چې د دواړو ډلو منځ ته لاره ومومي او له دواړو خواوو څخه ګټه پورته کړي او خپله لاره په داسې یوې هوښیارۍ پرانیزي چې د یوې ډلې شک او شوپیان هم پرې ونه لګیږېږي(۱۳). وروسته مېرویس خان د خپلې پراخې پوهې له بدایتوبه په ګټې اخیستنې و کولای شول د سروزیر (اعتمادالدوله) او د دیوان بیګي پام چې د ګرګین ورور وو ځانته را واړوي او شاه حیسن د ګرګین پر وړاندې بد ګومانه کړي او د کروسینسکي پر وینا له چې دې ډیر پوه وو نو د خپل کار لوړې او ژورې به یې په ډیر ځیر سنجولې او د دغې پوهې له برکته صفوي پاچا نه یوازې مېرویس خان د بندیتوب له منګولو خوشې کړ،بلکه هغه ته یې کندهار ته د بیرته تګ اجازه هم ورکړه.

خو مېرویس خان کندهار ته له راتګه مخکې حج ته ولاړ. حج ته د مېرویس خان سفر په خپلې تومنې کې د کندهار د وګړو په پاڅون کې د پام وړ پایلې وزېږولې. ښایي مېرویس خان غوښتل د کندهار د وګړو پاڅون ته مذهبي ښه ورکړي ځکه یوازې دیني پاڅون کولای شوای د افغان د ټولو توکمونو په منځ کې یو والی رامنځ ته کړي چې ټول وګړي به پرته له توپیره د پاڅون سرمشرۍ ته غاړه کېږدي. نو مېرویس خان په دغه سفر کې په دین کې له پوهو کسانو سره د خبرو اترو پرتغر کښېناسته او د

کروښنسکي پر وینا هغوی ته یې وویل: له یوه اوږده وخته را پدېخوا عجم پاچایان پرموږ واک چلوي چې رعیت یې گرځېدلي یو. له شماره وتلي ناتاراوتیري کوي او اوس یې یو ناپوه او لیوني واکوال سره له بې ایمانه لښکر چې هغه هم تیري گر، ناتارگر، برمانو او وحشي دي پر وگړو واکمن کړېدی. پرموږ یې د ناورین ډول ډول اورونه بل کړي داسې ساتونکي یې را تپلي چې د شریعت له تولو حکمونو څخه یې پښنه اوږده غځولې ده. پرموږ زور زیاتی کوي زموږ تاتوبي او ناموس ته لاسونه را اوږدوي. میړانه او زره سواندی نه لري. زموږ کوشنیان په بلوسني یا غضب او غلا له مېندو تبنتوي، گرجستان ته یې لېږي، هلته یې پلوري او زموږ ښځمني د تورو په زور مخانته واده کوي. کلهیوږ پت، غیرت او دین ولرو، آیا د شریعت له مخې موږ اجازه لرو چې د هغوی پرمخ توري را وباسو او هر چیرې یې چې ووینو ویې وژنو، یا په یوه موتي یا په مورچلونو کې ورسره جگړه وکړو؟ که جگړه وکړو آیا موږ ته روا ده چې خپلې جگړې ته د جهاد نوم ورکړو او آیا زموږ وژل شوی کسان د لوی څښتن په لاره کې شهید گڼل کیږي؟ که موږ جگړه وگټو او سوبه وکړو آیا د هغوی د ناموس پلورل او وېنه موږ ته حلاله ده. .... د خبرو رېښتنوالي ته په کتلو موږ ته په خپل قلم فتوی ولیکئ چې پر خپل کار پوه شو (۱۴). په دې ډول مېرویس خان د مکې له مذهبي پوهانو څخه د افغانستان د وگړو په نامه خپل د خوښې وړ فتوی تر لاسه کړه.

د شاه عباس د پاچاهت پرمهال هم د مکې دیني پوهانو د رافضیانو پروړاندې د تورې په مټ د پاڅون جواز ورکړی وو. د حجاز د پوهانو په فتوی کې راغلي ول چې: که یو مسلمان یو مسیحي جنگیالی ووژني نو ثواب یې گټلی دی. خو که څوک یو ایرانی شیعه ووژني نو داسې ثواب یې گټلی چې اجر یې د هغه په پرتله ۷۰ ځله زیات دی (۱۵) مېرویس خان له دغې مذهبي فتوی سره چې یو پیاوړي لاسوندی گڼل کېده لومړی اصفهان ته راغی او له شاه حسین او وزیرانو سره یې وکتل. په دربار کې د گرگین مخالفینو د پاچا په غوږونو کې څخولې ول چې مېرویس خان له گرگین سره د سیالۍ او مخامختیا ورتیا لري او پاچا د خپل استازي په مخکې د گرگین له ناخوښۍ سره سره یو مخل بیا مېرویس خان د کندهارد راهبت یا ښاروال (کلانتر) په توگه دیوه فرمان د لېږلوله لارې وټاکه او د ډالېو او سوغاتونو په ورکولو یې ښه و پنځاوه او درناوی یې وکړ. مېرویس خان د خپلې لارې په اوږدو کې هر چیرې چې توکمونه او خانان او اغېزمن ملایان لېدل نو د خبرو اترو تغر به یې ورسره وغوړاوه له هغوی سره به یې د ایران په دربار کې د ککړتیا او د خپلواکۍ د ترلاسه کولو په اړتیا خبرې وکړې او د مکې د مذهبي پوهانو فتوی یې ورته د یوه پیاوړي لاسوندي په توگه وړ ښکاره

کوله. میرویس خان تل د توکمونو ، خانانو او روحاني ملايانو پر يووالي او يو موټي توب ټينګار کاوه او ټول يې په کندهار کې د يوه ولسي پاڅون د راپورته کولو لپاره سترګې په لاره کښېنول. له سيستان ، فراه او هلمنده د کندهار تر زړه پورې ټول وګړي د هغه لارې پرسر په خوځښت ول ؛ دغو وګړو ، که له هر ټبر او توکمه ول ، ټولو د ميرويس خان دغې روغ نيتۍ ته غاړه ايښودله (۱۶).
ميرويس خان په ۱۷۰۹ ز کال کې په ډېر برم او پرتم د کندهار ښارته راغی او په ټولې هوښياری يې له ګرګين سره خپلې اړيکې په صفوي دربار کې د ګرګين د پلويانو او د هغه د ورور په ګډون چې (په صفوي دربار کې يې د ديوان بيګي درېز درلود) د ليکونو او پيامونو له لارې په ښه والي ټينګې کړې.

## په مانجه کې جرګه او د پاڅون پيل :

کله چې ميرويس خان کندهار ته را ورسېد ، نو په سرې ورې يا ظاهرې توګه يې له ګرګين سره د دار ومدار کړکۍ پرانيستله خو په زړه کې او پټه يې د ابداليو او غلېزو توکمونو په ګډون د نورو توکمونو له مشرانو سره د کندهارپه ښار کې دننه او د باندې د يوه لوی پاڅون تابيا ونيوله. د توکمونو له مشرانو سره د ميرويس خان لومړۍ جرګه د کندهار د لوېديځ په شپږ مايلي واټن کې د کوکران په سيمه کې ترسره شوه او په جرګه کې يې د صفوي د دربار د اکر او حالت په تړاو خبرې وکړې ، د خپل د حج د سفرپه ترڅ کې يې د حجاز او مکې له ديني پوهانو سره د خپلو ليدنو کتنو په اړه څرګندونې وکړې او د نورو پخو ګامونو د را اوچتولو لپاره يې د هغوی يووالی وغوښت او له هغوی څخه يې ژمنه تر لاسه کړه (۱۷). له هغه وروسته ميرويس خپلو هلو ځلو ته چټکتيا ورکړه او له يو مودې وروسته يې د کندهار د ختيځ په ۲۰ مايلي واټن کې د مانجه په سيمه کې وګړي را وبلل او په جرګې کې ناستو ولسي مشرانو ته يې د مکې د ديني پوهانو فتوی ښکاره کړه او څرګنده يې کړه چې د ګرګين او دهغه د ناتارګرۍ ډلې پر وړاندې د پاڅون ته شرعي بڼه ورکړل شي. په دغې جرګې کې دغه ولسي مشران او خانان ول: سيدالخان ناصري ، بابوجان بابي ، بهادر خان ، ملا پير محمد مياجي ، نورمحمد هوتک چې وګړو د حاجي انګو پرنامه پيژانده ، يوسف خان هوتک، عزيز خان نورزي ، ګلخان بابر ، نورخان بړيڅ ،نصرو خان الکوزي ، د ميرويس خان ورور يحيی خان ، د هغه وراره محمد خان ،يونس خان کاکړ او نورو (۱۸). له اوږدو خبرو اترو او پر قرآن له سوګنده وروسته د جرګې غړو ټينګه هوډمنه پرېکړه وکړه چې ګرګين او دهغه لښکر به درې وړې کوي او په خپله به يو ملي يو موټی او خپلواک دولت جوړ کړي. په جرګه کې د ولسي مشرانو او د توکمونو دندې وټاکل شوې چې د خپلواکۍ د ساتلو او د صفوي دولت له هر ډول پوځي ښکېلالي سره د لاس او ګريوان

کېدلو چمتو والی او وړتیا ولري. د مېرویس خان پرله پسې هلې ځلې، پوهه، وړتیا او نوښت ددې لامل شول چې جرګه په ډېرې خوښۍ د مېرویس خان مشري او لارښوونې ته تن کېښېږدي او د ولسي ځواک په منځ کې یې د مخښکه مشر او لارښود بولندوی په توګه ومني. د غبار پر وېنا: د دغې تأریخي ټاکونکې جرګې یوه څرګنده ځانګړتیا دا وه چې د.پخوا برخلاف د اغېزمنو مخورو ملایانو په ګډون د ابدالیو، غلزیو، تاجیکو، هزاره، بلوڅو او نورو توکمونو مشران د یوه ولسي ځواک په توګه پره یوه تنغر را ټول او خوځنده ولسي ځواک یې رامنځ ته کړ. له دې چې د کندهار ښار په منځ کې دننه د صفوي لښکر شمېره زیاته وه نو د جرګې یوه تګلاره دا وه چې د داسې لارو چارو دې غور وکړي چې دغه شمېره راټیټه کړي. ددغې موخې د ترلاسه کولو لپاره و پتیل شوه چې د بلوڅو د تیرین آباد د سیمې یو تن مشر بلوڅ دې په ټینګه د مالیې له ورکړې سرغړاونه وکړي. له بله پلوه مېرویس خان ګرګین و هڅاوه چې خپل پوځي ډلګي دې د بلوڅانو د ټکولو او له تیرین آباد څخه د مالیاتو د راټولو لپاره ولېږي. همدا ډول په ارغسان کې کاکړو د مالیې له ورکړې سر و غړواوه. او ګرګین د ډېرو زړو سرتیرو په مشرۍ د سرغړاوونکو وګړو د غوږونو د تاوولو په پار له ښاره ووت او مېرویس خان ته یې دنده وسپارله چې له ولسي ځواکونو سره دې یو ځای دهغه د ملاتړ لپاره ورپسې ورشي. مېرویس خان د سترګو په رپ کې له ولسي ځواکونو سره یو ځای ارغسان ته را ورسېد او د ارغسان د شېخانو په کلي کې یې ګرګین یوې مابنامنۍ مېلمستیا ته را وباله. شپه نېمایي شوه، مېرویس خان له خپلو زړه ورو غځ اخیستونکو میړنیو او توریالیو جنګیالیو سره یو ځای د میرڅې د لښکر پر زړه ور ننوت او داسې وژنه او له چړو تېرونه یې وکړه چې له مېرڅې څخه یو تن ژوندی پاتې نشو. له هغه وروسته مېرویس خان پرته له ځنډه د میرڅي درې زره اسونه او وسلې را واخیستل او د ښار پر لورېې را ودانګل. د ښار په لښکرکوټ کې صفوي ساتونکو د ګورګین په ګومان په تېروتنې د لښکر کوټ وَر د مېرویس خان او د ولسي لښکر پرمخ پرانیست ځکه مېرویس خان په خپله د ګرګین جامه په تن کړې وه او ولسي وګړو د ګرګین د وژل شویو سرتیرو پوځي جامې اغوستلې وې. مېرویس خان لومړی ګرجي ساتونکي ووژل او د هغوی پر ځای یې خپل ساتونکي و درول ځکه د ګرګین یو شمېر سرتیري له ښاره د باندې ول او مېرویس خان ښار او لښکرکوټ ته د هغوی مخنیوی غوښت. د سهار د لمر تر راختلو پورې د صفوي او ګرجي لښکر یو تن هم ژوندی نه وو پاتې او د لمر پر راختلو مېرویس خان د لومړي ځل لپاره د دښمن د لښکر د درې ورې کېدلو او د زور د ماتې د ترلېدلو خبر ورکړ. (۱۷۰۹ ز = ۱۱۲۱ هق) (۱۹)

## مېرویس خان ، د خپلواکۍ او کوړواکۍ مخکښ ګټونکی

مېرویس خان چې د ځان او هېواد خطرناک دریزیې د دوه وو سترکواکېو په منځ کې لېده نو د کندهار سروالان او مخوُر مشران یې راوبلل او وروسته له هغه چې د دوه وو ختېزو او لوېدېځو دولتونو او د سمبال شویوپوځونو په منځ کې یې د افغان ملت سیاسي دربز و ځېره د خپلو څرګندونو په ترځ کې یې زیاته کړه چې : که تاسو ماته لاس راکړي نو د خپلواکۍ او آزادېپالنې بیرغ به تل رپانده وساتم او هېڅکله به پرې نږدم چې د پردیو د مریپتوب پړی زموږ په غاړه کې واچول شي. څوک چې خپلواکي نه خوښوي او د پردي د مریپتوب پړی غوره ګڼي نو موږ نه له هغه سره اړیکه او نه ورسره ورورې لرو او داسې ځای ته دې ولاړ سي چې هلته یو ناتارګر پاچا پري واک وچلوي. (۲۰) د مېرویس خان دغه خبرې د کندهار د آزادېپالو وګړو په زړونو کې د بهاندو ویالو په توګه په خوځېدو شوې او ټولو وګړو مېرویس خان د توکم د مشرپه توګه ومانه. وروسته د صفوي پاچا د تیرایستنې په موخه یې هغه ته یو لېک ولیږه او بل لېک یې د هند ستراواک ته د مرستو د غوښتلو په موخه واستاوه. مېرویس خان، د واک په نېولو سره د دې پرځای چې ځان پاچا اعلان کړي نو د ځان پروړاندې د خانانو د رخې سخې (حسادت) او د هغوی د سیالې د راپارېدلو د مخنیوي په موخه یې ځان له نورو سپمه بیزو مشرانو سره د یوه برابر توکمېزه مشرپه توګه وروپېژانده. پدې توګه مېرویس خان د دښمن د رټلو، ماتولو او ایستلو په لاره کې و کولای شول د توکمونو مشران تر پایه همغږې او یو موټی و ساتي. کله چې دغه ویرلړلی خبر اصفهان ته ورسېدم نو شاه حسین خپل یو استازی کندهار ته را ولېږه چې مېرویس خان د وینا ،سلا او بیرولو له لارې د خپلواکۍ له غوښتنې څخه لاس پر سر کړي. خو مېرویس خان د صفوي د دربار استازی زنداني کړ. سید جمال الدین افغاني د [البیان فی التأریخ افغان] دبشپړېزې برخې په پای کې لیکي چې صفوي دربار خپل استازی محمد جامي خان له مېرویس خان سره د کتلو لپاره کندهار ته ولېږه او استازي د مخالفینو د ویرولو لپاره د ایران د دولت له ځواک ، پیاوړتیا او ستروی څخه تودې ښکروړې خبرې وکړې. د هغه په ځواب کې مېرویس خان وویل، آیا تاسو ګومان نه کوئ چې حکمت او پوهه به د شتمونو او زورواکو له ککرو پرته ،د افغانستان د غرونو په وګړو کې ونه موندل شي؟ که ستاسو د پاچا له لاسه څه کېدل نو زموږ د ټکولو لپاره ستا رالېږلو ته اړتیا نه لېدل کېدله او دا څرګندوي چې ته آوتی بَوتې او پوچ اندې خبرې کوئ. له هغه وروسته په لوړ او زیږه غږ یې پر خپلو ساتونکو ناري کړې چې دی بندي کړئ. (۲۱) پاچا د بیرنو درباریانو پر سلا کندهار ته بل استازی ولیږه. دغه دویم استازی د هرات والي محمد خان بلوڅ

وو چې د حج په سفر کې له مېرویس خان سره ملګری شوی وو. مېرویس دویم استازي ته وویل: له لوی څښتنه خوښ اوسه چې زما او ستا ملګرتوب د هر څه خنډ ګرځي که نه تا ته به مې بل څه په لاس درکړي ول، د غرونو آزاد پیاله ګوربتان د چا مریي نه شي کېدلای، قهرژلیو زمریو څنځیرونه شلولي او ځلانده توري بیا په تېکو کې نه کښېښودل کیږي. (۲۲) او ورغبرګه یې کړه چې که ستا د ملګرتوب پېتې زما پر اوږو نه وو نو ته مې هم زندان ته لیږلې خو تا د یوه مېلمه په سترګه پالم. دویم استازی هم تر ځار لاندې ونیول شو او هرات او صفوي دربار ته د هغه د ورتګ مخه ونېول شوه. او پدې توګه د ډیروخت په ګټلو د ایران له پوځ سره د مخامخېدا چمتوالې ونېول شو. کله چې اصفهان ته د دویم استازي د نېول کېدلو خبر ورسېده نو د هغه دولت وزیرانو ته څرګنده شوه چې نشو کولای مېرویس خان د ژمنو یا ویرې له لارې له خپلې ژمنې بیرته را وګرځوو، نو پرېکړه یې وکړه چې کندهار ته ځواک ولیږي. خو د دې پر ځای چې کندهار ته له مرکزه دولتي ځواک را واستول شي په هرات کې مېشت ایراني لښکر ته بولنده ورکړل شوه چې د میرویس خان د غوړونو د تاوولو لپاره دې د کندهار پر لور ودرومي. مېرویس خان له پینځه زرو ولسي جنګیالیو سره د صفوي ځواک پر وړاندې چمتو شو. د جګړې په ډګر کې مېرویس خان سوبمن او بریالی شو او صفوي لښکر له ماتې وروسته بیرته هرات ته ستون شو. (۱۷۱۰ ز).

ترهغه وروسته د اتلسو مېاشتو په اوږو کې اصفهان څلور ځله پر کندهار ناکامه لښکرې را تاو کړې خو اصفهاني یرغلګرو ته پرته له درندو تاوانونو بل څه په برخه نه شول. وروستنی بولندوی یې د تبریز واکمن محمد خان وو چې د یوه پینځه زریز ځواک په مشرۍ له کندهاري جنګیالیو سره لاس او ګریوان شو. ویل کېږي چې مېرویس خان د هغوی مخې ته یوازې پینځه سوه افغاني جنګیالي واستول او د میرځي زره تنه یا مړه یا ټپیان شول او نور یې په تېښته پښې دوه کړې خو د ځواک مشربولندوی محمد خان له دریو زامنو سره ونیول شول. بیا صفوي دولت د ګرګین ورارہ خسرو خان یې له ۲۵۰۰۰ تنو سرتېرو سره د کندهار د نېولو لپاره را ولېږه (۱۷۱۰ ز). د مېرویس خان ځواک چې له غلجیو او بلوڅو جوړ وو چې مشري یې داؤد خان د پټې خزانې د کتاب د لېکوال پلار کوله د فراه پر لور د خسرو خان پر وړاندې راووت. لدې چې د خسرو خان د سرتېرو شمېر زیات وو نو د مېرویس خان ځواکونه په شا شول او د هلمند د سیند پر غاړه د ګرشک په سېمې کې د دښمن ته سترګې په لاره کښېناستل او مورچلونه یې ونېول. دلته د مېرویس خان ځواکونو داسې بې ساري مېړانه او توریالیتوب وکړ چې د خسرو خان لښکریې دړې وړې کړ، خو خسرو بیا خپلې لښکرې سمبال کړې

او دا ځل غلزيو ماته وخوړه او کندهار د صفوي ځواکونو په کلابندۍ کې را گيرشو (۱۷۱۲ ز = ۱۱۲۳ ق). خو دغه بريا لنډ مهاله وه ځکه ښاريانو په توره اومېړانې د ښار ساتنه کوله او مېرويس خان له ښاره دباندې د تيرين، بلوڅو او پشين وگړي د ميرڅي پروراندې هڅول چې له يوه شپاړلس زريزجنگيالي لښکر سره يې پر دښمن راودانگل او د لنډ وخت په موده کې کندهار د پرديو له منگولو خلاص شو او د کيخسرو خان او دهغه د ټول ۲۵ زريز لښکر غاړې د کندهاري جنگياليو له چړو تيرې شوې او د جان ملکم پر وينا د ايران له ۲۵ زريز تيري کوونکي لښکر څخه يوازې له ۵۰۰ تر ۷۰۰ تنو پورې ژوندي پاتې شول او نور ټول يې ووژل شول (۲۳).

د مېرويس خان پر لاس د کندهار له خپلواکولو وروسته، پاچا سلطان حسين د خپل حرم له ټولو غړو او چوپړيانو سره چې شمېر يې له ۶۰ زرو تنو څخه زيات وو د مشهد زيارت ته ولاړ. هغه په دغه سفر کې بې شمېره پانگه ولگوله او فرانسوي کشيش دوسرسو وايي چې که ددغې پانگې نيمايي برخه د کندهار په نېولو کې کارول شوې وای نو کندهار بيرته د صفوي لښکر لاس ته ور پريوت (۲۴).

صفوي دولت په ۱۷۱۴ ز کال کې دوه لښکرې يوه يې د رستم خان تر مشرۍ او بل يې د محمد زمانخان ترمشرۍ لاندې د کندهار پر لور را ولېږلې خو د لښکرو لېږنې هېڅ گټه نه درلودله په ځانگړي ډول هغه لښکر چې له کرمانه د محمد زمانخان قورچي تر مشرۍ لاندې را لېږل شوی وو د لارې په اوږدو کې بلوڅي جنگياليو دړې وړې کړ. له هغه وروسته صفوي دربار کندهار ته د لښکر د لېږلو زړه ښه نه کړ، ځکه تر دغه دمه مېرويس خان له فراه نېولې د کندهار تر وروستني گوټه له قلاته تر مقره سېمې د يوې ملي ولسي اداري تر سيورې لاندې را ټولې او يو اداري واحد يې جوړ کړ او د دغو ولاياتو ټولو وگړو ميرويس خان د ملي اتل او ولسي مشر په توگه پيژانده (۲۵).

مېرويس خان يو ستر ولسي، جگړيال او مبارز شخصيت وو او له سياسي اکر او حالته په ځانگړي ډول د گاونډيو دغو، او دواکمنۍ او حکومت له چارو ښه خبروو. هغه په خپلواکۍ ۸ کاله د وگړو مشري وکړه او هره شپبه به يې د هغوی له دردونو ځان خبراوه او وگړو هم هغه ته ډير دروند درناوی درلود او هغه ته به يې د درناوي له مخې نيکه ويل. مېرويس خان، دغه مبارز او نوښتگرسياستوال او د کندهار د هوتکو د لړۍ بنسټ ايښودنکي چې د افغانستان په يوه گوټ کې يې په عملي ډول د پرديو د واکمنۍ د راپرځولو لپاره لاره پرانېستلې وه، ډير لنډ ژوند درلود. هغه خپله تگلاره لا نه وه بشپړه کړې چې په ۱۷۱۵ ز (۲۸ ذيحجه ۱۱۲۷ هجري) په ۴۱ کلنۍ د توکم له ۸ کلنۍ مشرۍ وروسته سترگې له نړۍ پټې کړې (۲۶) او د کندهار په لوېديځ کې د کوکران په سيمه کې خاورو ته وسپارل شو او دهغه د قبر پر لوحې دغه شعر لېدل کېږي: برسرمرقدما چون گذری همت خواه که زيارتگه

مردان جهان خواهد بوداوس هم په کندهار کې وګړي د هغه د قبر ته د یوه ستر او دروند قطب په سترګه ګوري او د ځینو ناروغیو په درملنه کې د هغه د زیارت خاورې د تَبَرُّک په توګه کاروي او دا په خپله دهغه زړور او پوه مشر د قبر خاورو ته د کندهار د وګړو دزړه له کومې او ربښتوني اخلاص څرګندونه کوي.

افغانانو او راتلونکو نسلونو ته د هغه وروستنۍ وینا دا وه چې ستاسو چارې ټولې حق تعالی ته سپارم، دویم باید د دښمن پروړاندې د زړه له کومې هڅه او سربښندنه وکړي او خپله مېړانه، ننګ، ورغ او پرتم لوړ وساتئ. ټول باید یو موټي او یولاسي اوسئ او مېرڅي ته سر مه ټیټوئ او دهغه د بد ورالي یا مضرت په له منځه وړلو کې هڅه وکړئ ځکه عجم په خپل منځ کې له دښمنۍ او بېلتونپالنې سره لاس او ګریوان دي او دولت یې مخ پر نړېدلو دئ، دزړه پر یو والي او یو موټي توب یو ځای وخوځېږئ او پر لوی څښتن متوکل سړی به پرهغوی لاس بری شي او اصفهان به ونیسي. (۲۷). د دغو خبرو له ویلو وروسته مېرویس خان له نړۍ سترګې پټې کړې او د کوکران په سیمه کې خاورو ته وسپارل شو (۲۸). له هغه وروسته د مېرویس خان ورور میر عبدالعزیز د واکمنۍ چاروته غوره شو. میر عبدالعزیز نرم خویه سړی وو او له صفوي دولت سره یې د جوړښت او جوړجاړي خوب په سر کې لېده او له دې امله یې د ایران د پاچا پر نامه یو لیک ولېکه او په هغه کې یې پاچا ته د ځان له اطاعته نغوته کړې وه. د مېرویس خان زوی محمود تل له خپل اکا سره اوسېده، د محمود سترګې د صفوي پاچا پر نامه د خپل د اکا پر لاس پر دغه لېکل شوي لیک ولګېدلې. محمود د پلار د مړینې پر مهال د پلار د بالښت تر څنګ ناست وو او د پلار خبرې یې په غوږونو کې انګازې خپرولې، د لیک په لېدلو یې زړه په ځوښ راغی، توره یې پورته کړه او د اکا د بالښت څنګ ته ورغی او له دې چې اکا یې په خوب بېده وو نود تورې په یوه شرنګ یې د هغه پر ژوند همدلته د پای ټکې کېښېښود، له کوره دباندې راووت او وګړي یې د صفوي دولت پر وړاندې د قرآني آیاتو له لارښوونې سره سم جهاد ته را وبلل او ویې ویل: اکا مې میر عبدالله له ولس سره دوکه او خیانت کړی، موږ او تاسو لنډه موده کېږي چې ښنګلوي او راحت لرو، هغه غوښتل چې زموږ ګریوانونو ته بیا د مېرڅي لاسونه را وغځېږي (۲۹). بیا یې د ایران د پاچا پر نامه د خپل اکا لیک ولس ته ولوست. افغانانو چې په جګړو کې د هغه زړورتیا او مېړانه لېدلې وه او پرې ګران وو، پرته له ځنډه یې د پلار د ځای ناستي په توګه و مانه (۱۷۱٦). په دغه وخت کې محمود ۱۸ کلن وو. ---- میرویس خان هوتک په ۱۰۸۴ هـ ق یا ۱٦۷۳م کال کي زېږېدلئ دئ. پلار یې ښالم خان نومېدئ چې د هوتکو د قوم یو منلئ مشر وو. مور یې نازو انا وه چي په پښتونولي یې د خپل زوی پالنه او روزنه کړې وه.

ميرويس خان په زلميتوب کي د وخت زياتره مروجه علوم لوستي وه او وروسته په سوداګرۍ بوخت وو. له خوراسانه به يې مالونه هندوستان او د هغه ځايه به يې هيواد ته راوړل، ګټه به يې هم کوله او د نورو خلکو د حاله به هم خبرېده.

کله چي صفوي شاه حسين په ۱۱۰٦ هـ ق يا ۱٦۴۹ م کي په ايران کي پاچا سو نو ګورګين يې چي په اصل کي ګورجی وو او اوس نوی مسلمان سوئ وو، کندهار ته د خپل حکومت د نماينده په توګه را ولېږه. ګورګين چي ډېر ظالم او بې رحمه سړی وو پر افغانانو يې ظلمونه پيل کړه. هيڅ څوک نه وو چي د دې بېګنا خلکو ناره دي واوري. د خلکو بږغ تر هيڅ ځايه نه رسېدئ او ډېر افغاني مشران د ګورګين له خوا ووژل سوه. نو د خلکو د اميد سترګي يوازې او يوازي ميرويس خان ته وې. هغه وو چي د هغه څخه يې غوښتنه وکړه.

ميرويس خان هم د خلکو او هيواد خدمت تر هرڅه ښه و باله، سووداګري يې پرېښوده او د هيواد خدمت ته يې ملا و تړله. لومړی يې د خلکو تر منځ ملي يو والی مينځ ته راووست او بيا يې ګورګين ته ځان نژدې کړ څو په لږه موده کي د هغه د باوري کسانو د جملې څخه سو. د دې لاري يې و کولای سوای چي ځان د اصفهان دربار ته و رسوي، هلته به حالات ځانته معلوم کړي او په خپله ګټه به ور ځني کار واخلي. ده په لږ وخت کي د اصفهان په دربار کي دومره نفوذ وکړ چي د هغه ځايه يې ځان د ګورګين په دربار کي د پښتنو د قومونو د مشر په توګه مقرر کړ. اوس يې نو د خلکو د يووالي د پاره کار پيل کړ او د ګورګين د له منځه وړو په کار بوخت سو. پدې وخت کي ګورګين ځان په خطر کي و ليدئ او ميرويس خان يې بندي د اصفهان دربار ته واستاوه او دربار ته يې وليکل چي دی په بند کي و ساتي.

د ميرويس خان پوهي او قوي منطق نه يوازې ډېر ژر دی له بنده خلاص کړ بلکي په ډېره درناوي يې حج ته د تلو اجازه هم ورکړه. تر حج وروسته بيرته د اصفهان دربار ته راغئ او د هغه ځايه يې ګورګين ته د مشورې ورکوونکي په توګه د مقررئ رسمي فرمان واخيست او کندهار ته راغئ. ګورګين په دې کار ډېر وارخطا سو او د ميرويس خان څخه يې وغوښتل چي خپله لور د ګورګين زوی ته په نکاح کړي. ميرويس خان دا خبره د قوم مشرانو ته وړاندي کړه. مشرانو پرېکړه وکړه چي يوه بله ښځه به د ميرويس خان د لور په نامه ورکړي او هغه به دغه راز ساتي. دا کار و سو او ميرويس خان څه نور هم د ګورګين دربار ته لاړ و موندله.

د ملي پاڅون لپاره يې يوه جرګه جوړه کړه او پرېکړه يې وکړه چې لوړي دي د بلوڅو ، ترينو او کاکړو خانان دې ته وهڅول سي ، چې صفوي حکومت ته د ماليې ورکولو څخه ډډه وکړي هغو همداسي وکړه . ګورګين خپل شپږزره کسيز لښکر ژوبڅ او بلوچستان ته ولېږه ، پخپله هم ورپسې رهي سو او د ميرويس خان څخه يې هم وغوښتل ، چې هلته ورسي . ميرويس خان هم د اوو زرو پښتنو عسکرو سره هلته ځان ور ورساوه . د شپې يې پر ګورګين حمله وکړه ، هغه او د هغه ټول کنډک يې له منځه يوړه . پخپله يې د ګورګين کالي واغوستل او د هغه د وژل سو پوځيانو کالي په خپلو پوځيانو واغوستل او د کندهار پر لور رارهي سول . هلته يې د ګورګين پاته پوځ له منځه يوړ ، هيواد يې د بيګانو و له لاسه خلاص کړ او د يوه خپلواک اولسي حکومت بنسټ يې کښېښود .

**سرچيني**


۱ حبيبی، تاريخ مختصر افغانستان ، پ ۱۹۵ -۱۹۹، غبار، افغانستان در مسيرتاريخ، پ ۲۸۲

۱ پس از ۱٤۰۰سال توک ۲،پاڼې، ۷٤۲، ۷٤۳، ۷٤۹،۷۵۱،۷۵۵

لکهارت، انقراض سلسله صفويه ، پ ۱٤٦

غبار ، افغانستان در مسيرتاريخ ، توک۱ ، پ ۲۹٤-۲۹۵

لکهارت، انقراض سلسله صفويه، پ۹۵ ح

حبيبی ، تاريخ مختصر افغانستان، ابداليان پ ۲۳۵

فرهنگ، افغانستان در پنج قرن اخير، توک ۱، پ ۷۵

ميرغلام محمدغبار، احمدشاه بابا، دويم چاپ ، پېښاور ۱۳۷۸، پ ۱۱

قاضی عطاءالله - دپښتنو تاريخ، توک ۱ پ ۵٦ د حربي پوهنتون چاپ ۱۳۵٦

ايران ، کلده وشوش، تأليف د ميرمن ژان ديولافوا، او شواليه لژيون دونور، پاريس۱۸۸۷، د علی محمدفره وشی ژباړه ، د تهران دپوهنتون چاپ ۱۳۷۱ ش ،پ ۲۵٦

غبار، ص ۳۱۸، تاريخ قاضی عطاءالله خان توک ۱ پ ۵٦-۵۷، ملسون، تاريخ افغانستان، د منشی احمدجان ژباړه پ ۲۰٦-۲۰۹

تاريخ سياح مسيحی، تحشيه او تعليق فقيرمحمد خيرخواه . ۱۳٦۳ کابل،پ ۱۸

سقوط اصفهان، بروايت کروسنيسکی ،بيا ليکنه د سيد جواد طباطبائی، پ۳۱- ۳۲،چاپ ۱۳۸۲ ش

کروسينسکی ، تاريخ سياح مسيحی،د فقيرمحمدخيرخواه پر اهتمام، پ ۲۱

سقوط اصفهان، بروايت کروسنيسکی ، پ ۳۲

سقوط اصفهان ، بروايت کروسنيسکی ، پ ۳۳

حبيبی ، تاريخ مختصر افغانستان ، د پېښاور چاپ، پ ۲٤۳

حبيبی ، تاريخ مختصر افغانستان ، پ۲۴۴

غبار، افغانستان در مسير تاريخ پ ۳۱۸-۳۱۹، پرتله دې شي د ،قاضی عطاءالله ، دپښتنو تأريخ، توک ۱، پ ۵۵

حبيبی، تاريخ مختصر افغانستان، توک ۲، پ ۷۳، هوتکی‌ها، د عبدالرئوف بينوا چاپ ۱۳۳۵، پ ٤٤

سيدجمال الدين افغان، تتمه البيان فی التاريخ افغان، د محمدامين خوګيانی ژباړه، ۱۱۱۸، کابل، پ ۱۹-۲۰، دغه وينا ميرزا ملکم خان هم د خپلې ليکنې د ايران په تأريخ کې راوړې او اروابناد حبيبی هغه په مختصرافغانستان په ۲٤۵را نقل کړيده.

تاريخ مختصر افغانستان ، پ ۲٤٦

حبيبی ، تاريخ مختصر افغانستان پ ۲٤٦

سقوط اصفهان به روايت کروسنيسکی ، پ ۲۰

غبار، پ ۳۲۰ پرتله دې شي له : تاريخ افغانستان از ملسون، د پېښاور چاپ پ ۲۱۰

غبار ، هماغه ځای ، پ ۳۲۰

کروسينسکی ،هماغه ځای، پ ۲۸

هوتکی‌ها د عبدالروف بينوا طبع ۱۳۳۵ پ ۷۹، غبار پ ۲۲۳.

کروسينسکی، پ ۲۸-۲۹

# شاه عبدالعزیز هوتک

(۱۱۲۷-۱۱۲۹هـ)

له میرویس څخه دوه زامن پاتي شول یو محمود چي د پلار د مړیني پر وخت ۱۸ کلن و او حسین چي ۱۴ کلن و. د میرویس تر مړیني وروسته یې ورور پر ځای کښېناست چي د ملیسون، جان ملکم او سید جمالالدین په وینا "عبدالله" او د ده د همهالیو لکه جهانګشای نادري، مجمع التواریخ، پټه خزانه او همدا رنګه د سلطان محمد، شېرمحمد، روضة الصفای ناصري او انسکلو پیډیای اسلامي په باوري وینا "عبدالعزیز" نومېد، دغه سړی د خپل ستر ورور په شان لوړ همت نه درلود. همدا چي واکمن شو ملي جرګه یې راوبلله او خلکو ته یې د صفویانو د اطاعت منلو وړاندیځ وکړ، ملي جرګه دغه جوغ ته غاړه کې نه ښووه، خو عبدالعزیز د اصفهان دربار ته استازی ولېږه او په درو شرطو یې د اصفهان دربار ته اطاعت ومانه:

لومړی: د هغه باج او خراج معافول، چي د ګرګین په وختو کي له افغانانو اخیستل کېده.

دویم: کندهار ته د صفوي لښکر نه راتک.

دریم: د عبدالعزیز په اولاده د پاچهی دوام.

پښتانه چي د عبدالعزیز په دغه ناوړه وضعیت خبر شول، د دوی څلوېښتو زړو مشرانو د میریس له مشر زوی محمود سره لاسونه یو کړل، عبدالعزیز یې و واژه.

خو په پټه خزانه کي لیکل شوي دي چي:

"میر عبدالعزیز چي د حاجي میر خان وروړ و، په کندهار کي مشر شو، خو د اولس رعایت یې کم کاو څو چي په (۱۱۲۹) سنه هجري د شپې د ارنج له قصره له بامه خطا شو او راولوېد مړ شو." (پټه خزانه، ۱۰۹ مخ)

ملیسون د دې پېښي نېټه د (۱۷۱۶ز) کال مارچ لیکي چي له همغه (۱۱۲۹ز) کال سره برابره ده. د کندهار خلکو دا پردی پال سړی په سزا ورساوه او پرې یې نه ښوو چي خپله ملي خپلواکي چي د زړورو افغان زلمیان په وینو اخیستل شوې وه، له لاسه وباسي، د عبدالعزیز تر مړیني وروسته یې د میرویس مشر زوی چي محمود نومېد خپل مشر وټاکه.

## شاه محمود هوتک


شاه محمود هوتکی شهنشاه افغان (۱۱۵۳ هـ ق)
Shah Mahmood Hotaki Emperour Afghan (1722)

د افغانستان د ستر ملي او هېوادپال شخصيت مېرويس نيکه زوی ، شاه محمود د خپل پلار د مړينې په کال که څه هم اتلس کلن وو ، مګر بيا هم ډېر مېړه پښتون وو او پر پلار هم ډېر ګران وو ، ځکه چې له پلار سره په ټولو جګړو کې ملګری وو او په حربي چارو کې ښې تجربې حاصلې کړې وې . د پلار تر مرګ وروسته بيا د خپل اکا په خدمت کې وو او د پښتنو د کارو باره سره يې ډېره دلچسپي درلوده ، څو کوم وخت چې يې د خپل اکا پيشنهاد وليد ، نو د اکا له کړو څخه بېزاره شو او د هغه کار يې ورتمام کړ او څنګه چې د کندهار او پارس پخوانی رواج وو ، چې د ښار په هره خوا کې به يوه يوه مناره وه او په هره مناره کې به يوه نغاره د خلکو د خبرولو لپاره پرته وه ، نو هر وخت چې به يو مهم خبر وو ، نو دا نغارې به ډنګېدلې او خلک به راغونډېدل . محمود چې خپل اکا مړ کړ ، نو دا نغارې يې وډنګولې او خلک راغونډ شول . محمود د خپل اکا وړانديز دوی ته وښود او له پارسيانو سره جنګ يې په ايت او حديث ثابت کړ او بيا يې څرګنده کړه ، چې دده اکا د خپلې شخصي ارامۍ او خوش ګزرانۍ لپاره غوښته ، چې پښتانه بيا د پارسيانو تر لاس لاندې او د هغوی مطيع کړي او زموږ مملکت بيا وران شي . تر دې وروسته يې نو وويل ، چې (( ما هغه وواژه )) پښتنو چې هغه وړانديز ولوست او ورمالومه شوه ، چې محمود رښتيا وايي ، نو ده ته يې افرين ووايه او دی يې د ځان پاچا کړ او د شاهۍ لقب يې ورکړ ، نو (( شاه محمود )) وباله شو . دا زلمی پښتون د پښتنو پاچا شو او تر ۱۱۳۴ هـ کاله پورې يې د افغانستان د پاچا په حيث حکمراني وکړه او څوا واره يې د پارس او سيستان شرقي برخو ته لښکري وايستلې ، څو يې په ۱۱۳۴ هـ کال د پارس د حکومت پايتخت اصفهان محاصره کړ او تر اته مياشتې محاصرې وروسته يې د محرمې د مياشتې په ۱۱ يا ۱۵ په ۱۱۳۵ هـ ( ۱۷۲۲ ) ع کال د صفويانو وروستنی پاچا سلطان حسين خپل ځان او پايتخت د پښتنو لښکرو ته تسليم کړ . د پښتنو زلمي پاچا د خپلې شاهنشاهۍ په وختو کې د اصفهان تر فتح وروسته ډېرې لويې لښکرکښۍ وکړې ، خو تر دوه نيمو کالو پاچاهۍ وروسته د برات د مياشتې په ۱۲ شپه ، ۱۱۳۷ هـ کال په اصفهان کې د دماغي ناروغې له کبله لدې نړۍ سترګې پټې کړی . دا فاتح مېړه پښتون په ۲۷ کلنۍ تر دنيا تېر شو او د پښتنو په تاريخ کې يې ځلانده نوم او توره پرېښوده .

اخځني : عبدالروف بېنوا ، ميرويس نيکه ، ۱۳۸۴ لمريز ( ۲۰۰۵ ) زېږديز کال پېښور چاپ ، ۱۴۲ - ۱۴۶ مخونه

# شاه اشرف هوتک



د اصفهان د فاتح شاه محمود تر وژلو وروسته د میرویس وراره د عبدالعزیز زوی شاه اشرف په اصفهان کي د افغاني سلطنت پر تخت کښیناست او په خیرکی سره يې د سلطنت چاري په ډېره ښه او سمه توګه اداره کړې، سیدال خان ناصر يې بیا د افغاني لښکرو سپه سالار وټاکه او هري خواته يې لښکر کښې او فتوحات وکړل د ده د وخت له غوره پېښو څخه یوه هم د بغداد د والي احمد پاشا لښکر کښی وه چي د شاه اشرف د پاچاهی پر دریم کال د (۱۱۳۹هـ کال د برات له ۱۲ څخه ۱۱۴۰هـ ۱۷۲۷ز کال ترمنځ) وشوه شاه اشرف په خپل لښکر تورکان مات کړل، خو نور يې پښتانه نه پرېښوول چي له تورکانو سره ونښلي، دا ځکه چي شاه اشرفنه غوښتل د ترکانو او افغانانو تر منځ زیات مرګ او ژوبله ونشي، ځکه چي ترکان سنی مسلمان وو هغه و، چي د شاه اشرف د ښه سیاست په اغېز دا پېښه تر (۹) میاشتو وروسته په روغه او صفا پای ته ورسېده، د ده د پاچهی پر پنځم کال (۱۱۴۲– ۱۷۲۹ز) د عثماني خلیفه درېیم سلطان احمد خان له خوا رشد پاشا د سفیر په ډول د شاه اشرف دربار اصفهان ته راغی او هم له افغاني درباره محمد علیخان بلوڅ د ایلچي په توګه عثماني دربار ته لاړ او په دې توګه د افغاني او عثماني دولتو تر منځ ښه اړیکي ټینګې شوې.

تر هغه وروسته شاه اشرف د ایران له شمال څخه د روسیې قوا و د تیرې مخه هم ونیوه، چي د ایران په تاریخ ترټولو ښه او دپاوړ قدم بلل کیږي، خو په کاله کي له نادر افشار غوندي بډه (حریف) سره مخامخ شو او د افغاني قوت رسی وشلېده، دا ځکه چي له کندهاره چي د هوتکي پاچهی مرکزؤ، په ایران کي افغاني لښکرو ته مرسته نه رسېده، له همدې کبله اشرف څو ځایه ماتي وکړه تر پنځو کالو او (۷) میاشتو پاچهی وروسته له ایرانه را پر شا شو، د هلمند پر غاړه د ګرمسیر ملخان کلا ته راغی، له هغه ځایه يې کوز ښوراوک زرد کوه ته پناه یو وړه او همهلته د عبدالله خان بلوڅ د زوی ابراهیم نومي له لاسه شهید شو، دا پېښه د (۱۱۴۲هـ– ۱۷۲۹ز) په پای کي وه.

# شاه حسین هوتک


شاه حسین هوتک

د میرویس نیکه دویم زوی حسین نومېد ، چې د ۱۱۱۴ هـ کال ربیع الاول په ۲۳ د کلات په سیوري کې وزېږېد . د عمر تر دولسو کلو پورې یې فقه ، تفسیر ، منطق او د بلاغت علوم ولوستل . هغه وخت ، چې په ۱۱۳۵ هـ کال اعلیحضرت شاه محمود اصفهان فتح کړ ، نو خپل کشر ورور شاه حسین یې د کندهار پر تخت کښېناوه . اعلیحضرت شاه حسین ډېر عالم ، ادیب او علم روزونکی پاچا وو او دده عصر پر پښتنو باندې په ډېرې ارامۍ او راحت تېر شو ، لوېدیزې او شمالي خوا ته تر فراه ، سبزوار او هرات پورې او ختیځ خواته تر غزني او گومل پورې ده حکمراني کوله او سربېره پردې ، پښین ، شال او د پنجاب د اسماعیل او غازي خان ډېرې هم د شاه حسین په وختو کې فتح شوې . همدارنگه د ملتان لته هم د کندهار د قوواو له خوا تهدید شوه او د پښتنو پرمختگ د ملتان تر حدودو ورسېد . ددې زلمي پاچا د علم پروروۍ د ثبوت لپاره همدا دلیل بس دی ، چې په شاهي ارگ کې یې ادبي انجمن تشکیل کړی وو او په اوونۍ کې به یوه ورځ د خپل وخت ډېر لوی علما ، شاعران او ادیبان خپلې کتابتون ته راتلل . شعرونه به یې اورېدل او ادبي مجلسونه به یې کول . شاعرانو ته به یې صلې ورکولې ، چې د همدې ټولنې په برکت او ددې پاچا په امر د پښتو گرانبها اثر (( پټه خزانه )) ډگر ته راووتله او ولیکل شوه او نور ډېر کتابونه په پښتو کې پیدا شوه . شاه حسین پخپله هم د پښتو ژبې ښه شاعر وو . پر ملي وزن یې خواږه شعرونه ویل . ددې علم دوست پاچاهي تر ۱۱۴۹ هـ پورې دوام وکړ ، څو د همدې کال د رجب په ۱۷ نادر افشار د افغانستان خواته د ضبط په خیال راوکوچېد ، ځکه چې ده د درې څلورو کالو پرله پسې جگړو په اثر د هرات د ابدالیو حکومت له منځه اخیستی وو او د پښتنو د قواوو باقي پاتې برخه یې هم په پارس او گورجستان کې ماته کړې وه ، ځکه یې نو اوس د کندهار د غلځیو د پایمالولو څخه بل کار نه درلود . د کوچني اختر د میاشتې په دویمه نادر شاه تر سیستان راتېر شو او د همدې میاشتې په ۱۸ د دلخک او دلارام له لارې د هلمند غاړې ته راورسېد او ددې ځای تر نیولو وروسته د کوچني اختر په ۲۱ تر هلمنده راپورې ووت . د ۱۱۴۹ هـ د ذیقعدې په اوایلو کې یې د کندهار مستحکمه کلا محاصره کړه . شاه حسین د کندهار زلمی مدافع د خپل نامتو سپه سالار سیدال خان ناصر سره یو کال او څو میاشتې په مېړانه دفاع وکړه او پرې یې نه ښوده ، چې نادر شاه سره د هغه خپل پوځي عظمت پر ښار تصرف وکړي . د ۱۱۵۰ هـ د ذیحجې لومړۍ ورځې وې ، چې د زلمي شاه حسین نظامي طاقت پای ته ورسېد ، ځکه چې تر هغه دمخه د هوتکو د دورې نامتو او زوره




سپه سالار سیدال خان ناصر د شاه حسین له زوی محمد نامي سره د کلات په کلا کې د نادر د جنګیالیو په لاس ورغی او دا نامتو سپه سالار د نادر په امر د سترګو له نعمت څخه محروم او ړوند کړای شو . څکه نو شاه حسین هم نادر شاه ته تسلیم شو او دده ددې تسلیمېدو سره د هوتکو د شاهنشاهۍ لمر ولوېد او لکه سلطان محمد چې لیکي : (( زلمی شاه حسین تر ۱۵ کالو سلطنت وروسته د نادرشاه په امر د پارس مازندران ته تبعید شو او هماغلته د نادري قهر زهرو د برات په لسمه په (۱۱۴۹ ؟) تر (۱۱۵۲) په موده کې ، له دنیا ولاړ ) .

اخځني :

عبدالروف بېنوا ، میرویس نیکه ، ۱۴۶ - ۱۴۹ مخونه ، د ۱۳۸۴ لمریز (۲۰۰۵ ز) کال چاپ . خپرندوی د افغانستان د کولتوري ودې ټولنه-جرمني . دافغانستان لنډ تاریخ اولنډکی تاریخ .

اخځونه : مخزن افغاني، تذکرة الابرار، جغرافیایي تاریخي ایران، معجم البلدان، طبقات ناصري، حیات افغاني، ماثرالامراء، منتخب اللباب ۲ ټوکه، تاریخ افغانستان د ملیسون تالیف، تتمة البیان، سرجان ملکم، پټه خزانه ، روضة الصفای ناصري، تاریخ افغانستان د علي قلي میرزا، تاریخ نظامي ایران لومړی ټوک، تاریخ ایران د سرپرسي پایکس، نادر نامه (قلمي)، سیرالمتاخرین، مجمع التواریخ، میرویس بابا د کابل چاپ، تاریخ کرمان، خورشید جهان، تاریخ سلطاني، صولت افغاني، د صفویانو سقوط او پر پارس باندې د افغانانو سلطه د لو کهارت انګلیس لیکنه ۱۹۵۸ز د محمد علي حزین د احوال تذکره، بدایع الوقایع.

څوارلسم څپرکی دلوی افغانستان دور

## احمد شاه ابدالي

احمدشاه بابا د زمان خان زوی د دولت خان لمسی او سرمست خان کړوسی دی چې په ۱۱۳۵ = ۱۷۳۳ کې په هرات کې زېږيدلی دی خو سراج التواريخ ليکی) :نيا کان احمدخان متوطن و متمکن ملتان بوده وولادت وی در انجا رونموده واز سبب بعضی حوادث در کودکي با پدرش محمد زمانخان درقندهار واز انجا وارد هرات گرديده ومسکن گزيد.)
د جهانکشای نادري ټپ حواله هغه وخت چې افشار نادر د خپل زوی رضا قلي ميرزاد ړنديد وله کبله خواشيني شو هره ورځ به يې د قزلباشو او افشارو لوی کسان په لږ اشتباه سره وژل، خلک د دغه وضيعت څخه زيات په تنګ شول د نادر سلو عزيزانو د ده د ورور علي قلي خان د ابراهيم د زوی سره سازش وکړ او د وژلو توطئه يې جوړه کړه په فتح اباد کې چې د خبوشان په دوه فرسنګي کې واقع دی او په مشهد پوری اړه لري او دلته د نادرشاه د اردو ځای ؤ ديکشنبې په شپه د حمادی الاخر به ( ۱۱ ( ۱۱۶۰ ه کې محمد خان قاجار ايرواني، موسی بيګ، ايرلوي افشارا رومي نادر سرپريکړ او په اردو کې يې وغورځاوه په دی وخت کې دنادر افشار د حرم څخه چا ابدالي احمدخان ته اصلاع ورکړه او هغه دخپلو دروزړو ابدالي او ازبکو سپرو سره د متعرضينو سره مقابله وکړه او هغوی يې پرينښول چې د افشار نادر کورنی ته ځوک په سپکه سترګه وګوري او مال ي تاراج کړی
ددغه خدمت په مقابل کې دنادرشاه ماينی احمدخان ته دکوه نور او دريای نور دوه مشهور الماسونه ورکړه دغه الماسو نه دکورګانی محمدشاه ددهلی د پاچا څخه اخست شوی ؤ .
احمد خان خپلو لښکرو دلوی قوماندان نور محمد خان سليمانخيل سره کندهار ته رارهي شو کندهار ته درارسيدو مجرد يې پښتنو ته دپاچا ټاکلو پيشنهاد وکړ څرنګه چې دغه يو قومي ضرورت ؤ دستي قبول شو ځکه دپښتنو دټولو قبيلو دمشرانو څخه يوه ملي جرګه جوړه شوه او د پاچا تر ټاکلو پوری يې زيار ويوست چې دغه ۱۶ زره قوج تيت او پرک نه شي. څو ملې جرګې د شير سرخ پ مزار وشوي په دی جرګو کې اکثريت په کتر نهؤ بلکه د ټولو مشرانو دای پيوی نقطی باندې دراټولېدلو ضرورت ؤ هغه چا چې په دغه جرګه کې د خپل ځان دپاره هيڅ خبری ونه کړی هغه احمد خان ؤ په نهمه جرګه کې دحاجي جمال د او لادی څخه ؤ چې د شاه عباس له خوا دملک سدو سره دبار کزی قبيلېمشر مقرر شوی ؤ خو ځني غښتلي مشران ده دپاچاهي څخه مخالف ؤ او دمجلس د غړو

څخه یوه احمد خان سدوزی دښو اخلاقو او کارپوهې له کبله د پاچاهي ور وباله ذفع سدی صابرشاه نومي ملنګ ځ څرنګه چې یې برتولو قبایلي مشرانو یې روحاني نفوذ درلود نو دده په پیشنهاد کې څه ونه ویل شو همداشانی د مجلس مشرانو پردی نظریه اکتفا وکړه چې احمدخان د کوچني قبیلی څخه دی دملي ګټو او دقومي مشرانو درایو په مقابل کې استبداد نه شي چلولای نو څکه د لږ مذاکری وروسته دده په پاچا کېدلو خوښ شول او ددغی جرګی څخه د پاچا په حیث چې صابر شاه ملنګ یې پرخول وږی تومبلی ځ ووت ۱۷۷۴ – ۱۱۶۰

د احمدشاه بابا فتوحات -: احمدشاه بابا د پښتنو دیوالی په منظور وغوښتل ټولی هغه سیمې چې پښتنانه پکښې ا سېږید لویې پښتونخوا په نامه سره یو ځای کړی او هند دهغو مسلمانانو په مرسته ورسېږي چې د فرقه پرستي او ثقافتي خصومتو له کبله یې هر کله هلته ژوند د تهدید او ناآرامي سره مخامخ ځ ده په کندهار کې خپل وراره لقمانخان ته د سلطنت و کالت ورکړ او سرداز جانخان یې دکابل پرلوری ولېږي .

احمدشاه بابا په (۱۱۶۱) کې دغزني او کابل د نیولو دپاره حرکت وکړ په غزني کې ناصر خان نائب الحکومه ځ چې دی د نادرشاه د حملی په وخت کې د مغولو له طرفه ددغی علاقې حاکمځ او د نادرشاه د حملی پېښور ته تښتېدلی ځ هغه وخت چې نادرشاه پیښور ونیوي دی یې دکابل غزني او پېښور حاکم په حیث مقرر کړو او نادرشاه د مړینی وروسته یې ځان هلته د مستقل حکمران په حیث حر کړی ځ په دغه وخت کې د کابل په بالحصار کې دوولس زره قزلباش لښکر موجود ځ ناصر خان چې پو هیدی چې د کابل، غزني، او پیښور او سیدونکی د احمدشاه سره د قامولی له کبله جنګ نه کوي نو د هزارځ او ایماق لښکر یې هم راټول کړل غزني د ناصر خان دطرفدارنو دلږ مقاومت څخه وروسته داحمدشاه بابا په لاس ورغی هزارځ او ایماقو هم په لومړی سر کې د مقابلی څخه تېه وکړه د احمدشاه بابا لښکر و ناصر خان تعقیب کړ د کابل او پیښور څخه یې ویوست او دپیښور څخه یې دوتلو دمخه د عبدالصمد خان ممن زی پر سیمه باندی چې د احمدشاه بابا دطرفدارانو څخه وځ د ناصرخان له خوا د هغې سیمې د حاکم په حیث ټاکل شوي حمله وکړه خو هغه وخت چې د احمدشاه بابا سپاه سالار پیښور ته ورسید ناصر خان د کلابندي له ویرې څخه هغه سیمه پرېښوده او د اټک څخه تېر شو او د راولپنډی چهچه سیمې ته ترشاه شو په دی وخت کې یې ماینه چې د زبردست خان لور او علیمردان لمسی وه هم داحمدشاه بابا د سپه سالار په لاس کې بندي ولوېده ناصرخان ددی ځای څخه لاهور ته د هند مغولي پاچا ته پناه یوړه د پنجاب نایب الحکومه یې داحمدشاه په مخالفت د ځان طرفدار کړ .

احمدشاه بابا پیښور د هغې سیمې دپښتنو د مرکز په حیث وپېژاند او دهغې سیمېتول پښتانه یې پر ځان را ټول کړه د عزیزګلوي او قام دوستي ښکېنې یې ورته بیان کړې دځپل او قومي سلطنت خوندونه یې وروښودل د همدغه کبله ؤ چې د هند په فتوحاتو کې دغو پښتنو د احمدشاه بابا سره زیاته مرسته وکړه ددغه سفر وروسته احمدشاه بابا بیرته کندهار ته راغی .

احمد شه بابا څه لښکری دپیښور څخه ددېره جاتو او سند په لوری واستولې او هغه سیمې یې دځپل سلطنت ضمیمه کړی، احمدشاه بابا په (۱۱۶۱) کې ۳۰۰۰۰ لښکرو سره د اټک څخه پوریوت دجلم تیر شو او د لاهور پر خوا رهي شو دده په مقابل کې دپنجاب نائب الحکومه شهنواز خان د ذکریا خان زوی د چناب په غاړه د مقابلې دپاره تیاری ونیوی په دی وخت کې چې د چناب سیندډک بهیدی دواړه لښکری د سیندپر دې غاړه او هغې غاړه مخامخ پریوتی په یوه شنه سهار کې هغه وخت چې مغولي لښکرې را پاڅېدلی نه وي احمدشاه بابا د خپلو اتو زرو سپرو سره دچناب دسیند پریو پورتنی کذر پورېوت او د لاهور پ خوا یې لښکر سمی کړ شهنوازخان زیات و دارېدی او د هلی ته یې په سلامي شو په دی وخت کې دهند مرکزي حکومت د احمدشاه بابا د مقابلې دپاره تیاري نیوي احمدشاه بابا هم د هغه د تنبه کولو دپاره لښکرې سمې کړې .

د هند یو لک لشکر د هند د شهزاده پ مشري چې ددغو لښکرو قوماندانان د هند صدر اعظم قمرالدین خان نواب ابو المنصور صفدرجنګ درواج پوت مهاراج اسیري سنګ د سرهند حکمران جماالدین خان تالپوري دپتیالی حکمران سنګ جیت او نوروه، دغه لښکر د ستلیج په غاړه د (ماچي واره) پر ګدر باندی د احمدشاه دلښکرو دراتلو په انتظار کې وه په دې وخت کې د هند اردو خبر شو چې احمدشاه بابا خپله لاره ګرزولی ده د (لود - هیانی) په ترخه کې ترستلیج پوری وتی دی او پر سرهند یې حمله کړی ده .

کله چې جنګي نقشه واوښته د سرهند په څوملي کې د (مالو پور) په برخه کې دغه دوه لښکر سره مخامخ شول، دوی دواړه دوولس ورځی یو بربل د توپو په ډزو مصروفه وه بیا د احمدشاه بابا لښکر د هند دلښکرو مواصلاتي خطونه پریکړه او پراوه لسمه ورځ یې د هند دلښکر و پر سنګرو مخامخ حمله وکړه .

دهند د لښکرو دښی خوا دتو پخنی قوماندان نواب ابوالمنصور خان صفدر جنګ او کیه خوایي میر منو دوزیر الممالک ضفر الدین خان زوی اداره کوله ولیعهد دځپل لاله صلابت خان سره د لښکرو په منځ کې ځای نیولی ؤ .

د احمدشاه بابا د لښکرو ښې خوا جهانخان سپاه سالار او کیڼه خوا شاه پسند خان اداره کوله او خپله احمدشاه بابا د لښکرو په منځ کې ځای نیولی ؤ ددی سپکه توپخانه (زنبورک) چې په اوو سوو او ښانو وه د جنګ لومړی صحنی ته راوړه شوي وه درنه توپخانه یې چې او وه چنی جلوي توپونه ووه پر یوي حاکمی نعطی باندی موجوده وه .

دښې خوا څخه پښتنو یرغل شروع کړ او میرمنو شدید مقاومت کاؤ څرنګه چې پښتانه په تندی پرمخ تلل میرمنو یې هم مخ نه شو ګرزولای په دی وخت کې راجپوت مهاراج اسیری سنګ په مرسته راورسید لښکرو یې چې زعفراني کالي اغوستي وه او لمنی یې په ملا پوری تړلی وی پرپښتنو حمله وکړه پښتنو هغوی سخت مات کړه دوی د ویریځخه د میرمنو سنګرو ته ننوتل او څه یې دو لیعهد د لښکر یو ځای شول، په همدغه ان د مردکو په یوه میخ زین اورولګېد تو پو او باروتو اور واخست د پښتن د لښکرو یوه مهمه برخه دغه اور لوټ او وسوځول دپښتنو دسخت اوربل له کبله دهند وزیر الممالک هم ووژل شو هغه وخت لاچه و زیر الممالک خپل هسانه وه ورکړی خپل زوی معین الملک) میرمنو) ته یې داسې وویل:- زما زویه زما عمر ختم شوی دی خود شاهین شاه کار لانیمګړی دی دمخه تر دی چې هغه خبر شي ته پر اس سپور شه یرغل شروع کړه وروسته بیا زما په فکر کې شه.) میرمنو د خپل پلار پر فیل جنګ ته دوام ورکړ پښتنو هغه د اسیری سنګ سره ښه و ځپه دی په پښه زخمی شو او ادینه بیګ دوه ځایه په ګولۍ ولګید په دغه آن کې صفدر جنګ هم مرستی ته راو رسید خو څرنګه چې دواړو ته زیات تاوانونه رسیدلی وه دهند ولیعهد د سولی پیشنهاد وکړ او احمدشاه بابا هم دغه صلح نیکمرغه وبلله ځکه چې په کندهار کېدده دوراره لقمان څخه اداره بیخی ضعیفه شوی وه او غوښته یې کندهار ته ولاړ شي .

هغه وخت چې احمدشاه بابا د سرهند څخه بیرته وطن ته راتلی دملتان کورګاني حاکم زاهد خان ابدالي دخپل زوی شجاع خان سره د احمدشاه بابا حضور ته راغی خپل ځان یې د اسانو او اوښانو او نورو سوغاتونو سره ورتسلیم کړ او احمدشاه هغه دوباره دخپلی خوا دوباره د ملتان حاکم مقرر کړ احمدشاه بابا د پیښور د لاری کابل او کندهار ته راغی او خپل ورارہ لقمان خان یې بندي کړ او هغه هلته په محبس کې مړ شو .

مغولي شهنشاه د میرمنو د هغو خدمتو به مقابل کې چې مغولي سلطنت ته یې کړی وه دی نیې د پنجاب د نائب الحکومه په حیث مقرر کړ .

احمدشاه بابا په ۱۱۶۲ کې د کابل او پیښور د لاری د پنجاب د نیولو عزم وکړ د سیند څخه پوری وتی او دچناب دسیند د کنښی غاړی د کوپری په برخه کې دیره شو ، پنجاب نائب الحکومه معین

الملک میرمنو ته د لاهور څخه دده مقابلې ته رارهي شو دوزیر اباد د ښار په څلور میلي که هدره کلي په شاؤ خوا کې یې واړول، دهغه ځای څخه احمد شاه بابا میرمنو ته ولیکل که چېرې د څلورو ځایونو مالیه راکول دتل دپاره قبوله کړی او هغه باقیات چې د نادرشاه افشار دو ختو څخه پاته دی تحصیل او راتسلیم کړی زه به بیرته ولاړ سم میرمنو چې په دغه وخت کې ضعیفه ؤ ددهلی د پاچا په خوښه یې صلح و غو ښتله او د اشرف کړ او سیالکوټ او رنګ اباد، ګجرات او سرور مالیه یې چې (۱۴۰۰۰۰) لکه روپۍ کیدلی پر ځان قبوله کړه په دغه وخت کې چې د احمد شاه بابا د پاچاهي دوه کاله لانه وه تیر شوی په کندهار کی مکمله ارامي نه شکاره کیدله ان نور محمد خان سلیمانخیل چې د نادرشاه په وخت کې د ۱۶ زرو لښکرو مشرؤ او د شیر سرخ په جرګه کې یې دتندمزاجي او کبرؤ غرور له کبله نورو قومي مشرانو دې پّ پاچا هي ونه مانه، پرده باندې ځني خانان او عسکري مشران راټول شوی وه او غوښته یې چې په پاچاهي یې وټاکي په دغو کې کدو خان، محبت خان پلزی، او توپخانی قوماندان عثمان خان هم شامل ؤ او احمدشاه بابا چې کندهار ته راورسید د غه توطئه یې شنده کړه او ګډون کونکي یې ووژل .

احمد شاه په ۱۱۶۳ کې: .

خپل هیواد پوری دهرات، بلخ، بدخشان، او بلوچستان د موښلولو دپاره د ۲۵۰۰۰ لښکرو سره حرکت وکړ په هرات کې نادرشاه لمسي شاه رخ میرزایو عرب سردار چې امیر خان نومیدی او د نادرشاه په وخت کې دتو پخانی مشرؤ نائب الحکومه مقرر کړی ؤ .

په شهد کې هم نادرشاه لمسي د ۱۱۶۱ کال څخه د نادر پرځای ناست ؤ خو په ۱۱۶۳ کې دهغه ځای دمشرانو دیوی دسیسی له کبله شاه رخ بندی او ړونند شو او دامام رضا یو متولي چې سید محمد نومید احمدشاه په مخالفت تحریک کړ احمدشاه د ۲۵ زرو لښکرو سرو پیاده او توپخانی سره په هرات کې د ۱۴ ورځو توقف وروسته چې امیر په خپله سهوه پوه نه شو ښار تاندی د یرغل امر وکړ احمد شاه بابا لښکر د هرات د ښار دخندق ډکولو او د کلا پر برجونو باندې مخامخ ورختلو له کبله زیاته میړانه ښکاره کړه د هرات د ښار خلکو هم احمد شاه دلښکرو سره زیاته مرسته وکړه .

امیر خان د ښار دنیولو څخه خبر شو دځه لښکرو سره د ښار څخه ووت او پر پښتنو یې څپاو راوړ خو په جنګ کې مړ شو او دهرات ښار احمد شاه لښکرو ونیوی او احمدشاه درویش علیخان هزاره د هغه ښار د نائب الحکومه په حیث مقرر کړ .

د هرات دنیولو وروسته احمدشاه ویر شاه ولیخان لسزرو لښکرو سره دمرو، میمنی، بلخ، بدخشان، د سیمو د تنظیم پاره واستاوه او دی خپله کندهار ته راغی سر دارجهانخان سپه سالار چې ۵۰۰۰ سپرو سره د امیر خان د طرفدارانو ماتولو دپاره چې دمشهدخوا څخه رتلل لېږل وی ؤ سپاه سالار صاحب دتربت جام په برخه کې هغوی سخت مات کړل او ددغه خدمت دپای ته رسولو وروسته یې بیرته ځان د احمدشاه بابا لښکرو ته راورسا وه .

احمدشاه په خپل وطن پوری د بلوچستان د مو ښلولو لپاره سوقیات وکړل بلوچستان حکمران نصیر خان بلوچ ؤ چې د افشار نادر د مړینې وروسته یې هلته ازاد حکومت کاؤ خو هغه چې داحمدشاه دراتلو خبر شو ده داحمدشاه نوم او نوښانلویی او وطندوستي ته ځان تسلیم کړ او داحمدشاه بابا له خوا دبلوچستان د نائب الحکومه په حیث وټاکل شو او د ) ۶۰۰۰( زرو بلوڅانو سره د احمدشاه په لښکرو کې شامل شو او ددغو قواؤ مصرفونه یې د بلوچستان دمالیه څخه قبول کړل .

دده خدمتونه په هند او نشاپور کې داحمدشاه د قدراو ستاینه وړ وګرزېدل او ددغو خدمتونو په مکافات کې یې د (هنګی) سیمه چې په شال کې واقع ده او کا کړان پکښې اوسېدل ده ته وبخښل په دی وخت کې دشاه رخ زوی مشهد ته راغی او خپل پلار یې د بند څخه ازاد کړ احمدشاه بابا هم مشهد ته را ورسېد خو د مشهد حکومت یې شا هرخ میرزاته پرېښود او وی نازوه .

شاه ولیخان د هراب څخه مروې ته ولاړ او دهغه ځای څخه میمنی، اندخوی، شبرغان، ته ورسېد یوه مفرزه یې تاشقرغان، ایبک، او بامیانو ته بله یې قندز او بدخشان ته لېږله چې دهغه ځاي حاکمان نوی کړی، او د مالیه اخستلو سر ښته یې وکړي وزیر شاه ولیخان ددغو سیمو د تنظیم وروسته د اندراب، پنجشیر، کوهستان او د کابل دلارې په ۱۱۶۴ کې په کندهار کې داحمدشاه بابا حضورته ورسېد احمدشاه بابا دغه وزیر ښه ونازوه او دده د خدمتونو په مکافات کې یې دګلبهار په سیمه کې یوه ښه ټوټه مځکه چې پخوایې ځوښه کړی وه وروبخښله په ۱۱۶۵ کې احمد شاه په خپل هېواد پوری د پنجاب، کشمیر، دتړلو د ملتان او سند د چارو سمولو دپاره د کندها، کابل دلاری د پیښور لورته حرکت وکړ .

په دی وخت کې دده لښکرو په کندهار کې ددرومیاشتو دپاره ښه استراحت کړی ؤ هغه وخت چې پیښور تهورسید یورلس زره کسیز لښکریې د عبدالله خان ایشک آقاسي په مشری دکشمیر دنیولو دپاره رالېږي عبدالله خان تراباسین د اتک دبرخی څخه تیر شو او دحسن ابدال دسیمی څخه یې دکشمیر خواته مارش وکړپر دغه ولایت باندی هم مغولی خواجه عبدالله خان یې چې په کوچني عبدالله خان مشهور ؤ دهغه ځای د نائب الحکومه په حیث مقرر کړ او سکجیون یې دهغه د مستوفي

په حيث وټاکي دغه هند دوزير شاه وليخان د مامورينو څخه ژ خو وفا دارسړی نه ؤ او ددغه بيوفايي له کبله ووژل شو ، بيا احمد شاه بابا کندهار ته راغی خپل ورار او ځني مخالفين يې تنبيه کړل .
احمدشاه بابا د پيښور څخه د لاهور خوا ته رهي شو او ميرمنو معين الملک دمقابلې دپاره ځان اماده کړ د ميرمنو سپاه سالار راجا کورامل دسند څخه را پوری وتی او شاهدره ته نژدی يې عسکري چونۍ جوړه کړه احمد شاه بابا چې وررورسيد د دوی په منځ سخت جنګ و نوبنت په دغه جنګ کې راجا کورامل ووژل شو لښکری يې تيتی او پرکی کشوی او معين الملک مفتي عبدالله نومي داحمد شاه حضور ته ورواستوی او د وزير شاه وليخان په واسطه يې داحمدشاه بابا څخه عفو وغو ښته احمدشاه بابا هغه عفوکړ او بيرته يې د پنجاب د نائب الحکومه په حيث وټاکي او لس مليونه روپی يې داحمدشاه خزانی ته تحويلی کړی او دا احمدشاه بابا په نسبت يې دوفا داری لوړه وکړه احمدشاه بابالاهور نه ورسيد او دهغه ځای څخه يې قلندر خان افغان ديو ليک سره چې د پنجاب په خصوص کې څيړنی پکښې شو ی وی ددهلی دربارته ولېږي هند شهنشاه کو ګاني احمدشاه چې د سرهند جنګ يې ورپه يادوو د احمد شه سره يې جنګ زړه نه غو ښت د احمدشاه بابا پيشنهاد يې ومانه دستليج د سند ها غاړه يعنی پنجاب، سند، ملتان، او کشمير يې افغانستان ته پرېښودل.
احمدشاه د سند درود د راستی غاړی د چارو د تنظيم دپاره د اباسين څخه تير شو او د پښتنو سيمی يې د ډيرو څخه بياتر پيښور پوری وکتلی او د هغو سيمو د نظامي مالی، مځکنی محصولاتود نفوسو د شمير وسله بند خلکو او نورو چارو په خصوص کې دهغه ځای د خلکو او خوانينو سره وکتل کلونل ملسن او محمدحيات ددغی معاينی په خصوص کې وايي: احمد شاه بابا د ګنداپور او اپريدو دوسله والو خلکو په شميرلو شروع وکړه چې د ګنداپورو سله وال خلک ۱۲ زره او د اپريدو ۱۶ زره کسه تثبيت شول او همدا شاني يې دميانوالی د برخی ماليه په ۱۱۸۱ کې د يوی قلبی په اساس ۴۰ جريبه يوه روپی وټاکل او د مروټ د قام څخه يې د مځکی د مالياتو په عوض کې دوه سوه مهاری اوښان او د جنګ په وخت کې دوسوه بې معاشه سپارهواخستل د بنو ماليه يې د سورسات او د لښکرو د مصارفو علاوه ۱۲ زره روپۍ وټاکله احمدشاه بيا د پيښور او کابل د لاری کندهارته راغی .
احمدشاه په ۱۱۶۶ کې خپلی لښکری دنشاپور پر لوری سميکړی او د لښکرو د مخنيوي تولګيو يې په لار کې دتون کلا د شاهرخ د نائب مير معصوم د مير علم د زوی څخه ونيوله، او د احمدشاه لښکرو سمدستي د نيشاپور ښار چې جعفر بيات پکښې حاکم ؤ کلابند کړ په دې جنګ کې جعفر

ټپي شواو یو ۱۸ کلن ځلمی چې عباس قلي نومید جنګ ته یې دوام ورکړ هوا ډیره یخه وه د یخنی او باران له کبله توپونه او نورې نظامي وسلې د یوځای څخه بل ځای ته نه وړلی کیدی او د حیواناتو اذوقه او الوفه هم نه پیدا کیدل نو احمدشاه په بیرته راګرزیدلو مجبور شو لوی توپونه چې نه وړل کېدل هغه یې په کارېزونو کې پټ کړل د تورې غونډی یا اسلام کلاه په سیمه کې دومره یخنی سوه چې دده د لښکرو څخه اته سوه کسه مړه شول احمدشاه بابا د هرات څخه کندهار ته راغی او دلته یې دژمي ورځی په استراحت تیری کړی او د نیشاپور د نیولو دپاره یې تیاری ونیوی .

احمدشاه بابا د ۱۱۶۷ کال په پسرلی کې دنیشاپوز د نیولو دپاره حرکت وکړ .

دی په دغه عزم د هرات څخه جام او لنګر او دهغه ځای څخه مشهد ته ولاړ او د (جلوایي) سیمه یې خپله عسکري قرارګاه کړه په دې وخت کې د شاهرخ نائب اسلطنته امیرعلم په مشهد کې نهؤ او دهغه ځای مشرانو شاه رخ د احمدشاه مقابلیته محبور کړ ځکه دده د احمدشاه بابا پر مخ یې کلا وتړله خو خلکو شاه رخ احمدشاه ته راوست احمدشاه هغه عقو کړ او بیرته یې د مشهد د نائب الحکومه په حیث مقرر کړ نور محمد خان افغان یې د هغه معاون په حیث وټاکه په تشکیلاتو کې یې د جام، باخرز، خاف، تربت ترشیزسمی هم د هرات په ولایت پوری وتړلی .

همداشاهی احمد شاه دکندهار د قواؤ قوماندان شاه پسندخان پنځو زرو سپرو سره د شاهرو د بسطام، سبزوار، د انتظامي چارو دپاره واستاوه او په هغه ځای کې یې دامنیت راوستلو وروسته بیرته عمومي قرارګاه مشهد ته راغی .

ځني وایي چې شاه پسندخان سپرو د خذر د سواحلو د حکمران حسن خان قجر پر قواؤ هم یرغل وکړ ددی ځای څخه احمدشاه د نیشاپور لوری ته وخوځید .کله چې احمدشاه نیشاپور ته ورسید علی قلی باز ښار ور ته کلابند کړ دده د یوی برخی سپرو د هر یوه سره چې کابل په تول دوه نیم چهارکه چودن احمدشاه د افغاني استادانو د تاریخ سلطاني په قول دفرنګي صنعت ګرانو په واسطه یولوی توپ جوړ کړ چې څلورسوه دوه اویا پونډه ګولی به یې غورځوله ددغه توپ ګولی چې د نیشاپور پر دیوال ولګیده د یوال او روڅرمه ټول کورونه یې رنګ کړل د نیشاپور خلک د ډار څخه احمدشاه ته په تسلیم راضي شول هغه وخت چې احمدشاه ښار ته ننوت عباس قلی نابوبره حمله پر وکړه خو د لږ ګړی وروسته مات شو او د احمدشاه په لاس ورغی عباس قلی د احمدشاه څخه عفو وغوښته د احمدشاه چې دلاور میړونه خوښ وه هغه یې معاف کړ او بیرته یې د نیشاپور د نائب الحکومه په حیث مقرر کړ او د ده قام یې غزني ته راوست احمدشاه په ۱۱۶۸ کې د هرات له لاری کندهار ته راغی او تر ۱۱۷۰ پوری په کندهار کې پاته شو .

احمدشاه بابا په اوم سفر کې په ۱۹۷۰ کال د پنجاب او کشمیر د چارو د تنظیم او ددهلي د نیولو د پاره تیاری ونیوی هغه وخت چې میرمنو معین الملک د پنجاب نائب الحکومه په ۱۱۶۷ - ۱۷۵۳ مړشو او احمدشاه بابا دده مقام د هغه کوچني زوی میرمومن ته ورکړ چې د حکومت کولو په وخت کې مور مغلاني بیګمی او زوم خواجه موسي هم مرسته ورسره کوله خو د میر مومن دمړیني وروسته د مغلاني بیګمي او د لاهور د لویو مأمورین په منځ کې اختلاف پیدا شو او د حکومت چاری وراني سوی احمدشاه بابا امان خان پوپلزی د سردارجهان خان ورور د هغه ځای د نائب الحکومه په حیث وټاکه ددغه نائب الحکومه تر رسیدو پوری د پنجاب نورو امیرانو او د نائب الاحکومه ګې مرستیالانو اوضاع دی ته حد ورسوله چې ددهلي د پاچا په موافقه شهاب الدین عه د الملک غازي الدین خان بهادر د هند ددولت وزیرسید جمیل نومی،د یو لښکر په مشری د لاهور دنیولو دپاره امر کړ ده دمیرمنو مور په حیلی سره بندی کړه او ادینه بیګ نومی یې چې یو چالاک سړی ؤ د هغه ځای د نائب الحکومه په حیث مقرر کړ .

غازی الرین همدا شاهنی په کشمیر کې سکحیون ستو فی تحریک کړ او هغه د کشمسیر نائب لاحکومه خواجه‌کوجګ او نظامي قوماناند میلمشتیا په دسیسه کې ووژل او ددهلي د نیائب الحکومه په حیث یې په کال لاس پورې کړ احمد شاه ته چې دغه خبر ورسید بلوچستان د شمالي برخی څخه سند ته راغی د انداس څخه تیر شو لاهور ته ورسید ادینه بیګ چې وپوهید د احمدشاه په مقابل کې نه دی اونه غازی الدین مقابله کولای شي لاهور یې پرېښود دهانسی کلا ته رهي شو احمدشاه چې غوښته د پنجاب امنیت د دهلي د دربار څخه د ضرر عناصرو ورکولو د لاری تامین کړی د خپلو دیرشو زرو لښکرو سره د سبتلیج څخه پوریوت او په دې وخت کې نورالدین خان بامیزی هم د کشمیر

یا غیان رعیت کړل سکجیون مستوفی یې ونیوی او لاهور ته یې بندی واستاوه او احمدشاه بابا د دغه خدمت په مقابل کې دی د کشمیر نائب الحکومه مقرر کړ(او په ۱۱۷۷ ) کې کندهار ته راغی، هغه وخت چې د هند دربار د احمدشاه د هرکلی د پاره یې ترتیبات ونیوله او د هند افغاني سرداران لکه نجیب الدوله، حافظ رحمت خان، احمد خان بنګښ، نواب دوندی خان، سعدالله خان د احمدشاه د لښکرو ملګري شول .

د نجیب الدوله اصلي نوم نجیب خان ؤ ۱۷۰۷ کې د پښنور څخه ۲۵ کروه لری په مانیری نومی کلی کې زېږیدلی ؤ د پلار نوم یې اصالت خان ؤ چې د پښتنو د مشهوری قبیلی عمر خیلو څخه ؤ .

د نجیب الدوله اکا (بشارت خان) د اسانو سوداګر ؤ چې هند ته به یې تګ راتګ کاؤ ده درو هلکیند یو پښتون نواب علي خان سره وپیژندله او ددغی پیژندګلوی له کبله بشارت خان خپله لور دغه پښتون نواب ته ورکړه په بل وار کې چې بشارت خان د وطنه څخه هند ته تللی نجیب خان یې چې یتیم او د اکا دسر پرستی لاندی ؤ هم یې د ځانه سره بوتلی او کله چې هغه علی محمد خان ولیدی په ده کې یې دد لاوري او وفاداری نخښې پیداکړی او د (۱۲) کسو سپاهیانو مشری ورکړ وروسته چې ده (بهارمل (مات کړ ډیر فتوحات او میرانی یې وکړی د بسولی او ددغعه ځای شاو خوا علاقی نواب دوندی خان ته لورو کړه ( ۱۷۴۷ ) او دغه نواب ده ته د چاندپور، نګینه پور، بچنور او نوری سیمی وسپارلی ددی وروسته دی دنواب علی محمد خان نوکر نه بلکه درو هیله حکمرانانو کورنی یو غړی ؤ او په دغه کوچنی ځایونو کې یې نوابي شروع کړه .

احمد شاه ددهلي څخه دیرش میله لری وو چې غازالدین وزیر د هند دولت په نامه د بسو نیت په برخه کې دده هرکلي وکړ او ددهلي دربار سیاسي خطا یې بخښنه وغوښته او احمد شاه دهند دربار د مصارفو په تاوانو ورکولو مجبور کړ خو څرنګه چې هغه ونه منله نو احمد شاه ددهلی ونیوی او د لښکرو په لاس یې زیات غنیمتونه ورغلل ددهلي په ۱۵ میلي کې دهند شهنشاه محمد عزیز الدین (ثاني عالمګیر) د احمد شاه مخیته دهر کلی دپاره ورغی ده دعا لمګیر ثانی لور خپل زوی تمور ته په نکاح کړه او نجیب الدوله له یې د هند سپه سالار مقرر کړ .

په دې وخت کې نو نجیب الدوله درو هلکیند (د سهارانپور څخه تر شاه جهان پور پورې درو هلکیند سیمه وه) یو نواب نه ؤ لکه ددهلی دد ربار یوه مضبوطه ستن هم سوه .

ذ نجیب الدوله د مشوری پرته به پاچا څه کار نه کاؤ د پاچا نژدی کسانو لکه عمادالملک صفدر جنګ او میر زا نجف خان دنجیب الدوله په مقام حسد خوړی او دخپلو مناقفو او دسیسه کاریو یې ضد ګڼلیځکه دوی کله د جاټانو ، کله د پنجاب دسکانو او مرهټیانو سره توطئ جوړولی او هغوی به یې پردهلي باندې د حملی کولو دپاره تشویقول احمد شاه یومیاشت او څو ورځی په دهلی کې پاتهشو او سردارجهانخان یې د جاب دقوم درعیتولو دپاره ولیږی هغه دیلم کړ کلا او د (متری) ښار ونیوی او اګری ته ولاړ خو جات قوم د شدیدی مقابله له کبله بېرته راوګرزید .

په دهلي کې داحمد شاه د اوسیدلو په وخت کې دهند معزول و زیر غازی الدین د مالیاتو د ټولولو دپاره د شهزاده هدایت بخش د ثانی عالمګیر د زوی او دده زوم میرزا بابر او یو افغانی سردار جهان خان د یو لښکرسره فرح اباد ته ولاړ .

په دی وخت کې سردار احمد خان بنګښ دهغه ځای والی مړشو ټول مال او سامان یې احمدشاه بابا ته وبخښی غازی الدین بیا اودی ته ولاړ داودی والی شجاع الدوله له جنګ ته حاضر شو خو روهیلي پښتون سعدالله خان هغه پرېښود او د پنځه سوه زرو روپو په ورکولو یې مجبور کړ غازی الدین په دی وخت کې په فرخ اباد کې تال شو او د احمدشاه حضور ته نه راتلی .
په همدغه وخت کې په هند کې شدیده کالا راپېښه شوه ځرنګه چې احمدشاه ددهلی ددربار وضع ښه بلله نو افغانستان ته دتلو حرکت یې وکړ .
هغه وخت چې احمد شاه د ستلیج غای ته ورسید عبدالصمد خان ممن زید قاضي عطاوالله خان په قول محمدزی یې د سرهند حاکم مقرر کړ همدا شان د ستلیج او بیا په منځ کې یې سر فراز خان افغان حاکم مقرر کړ او دملتان نائب الحکومه ګی یې شجاع خان ابدالي ته ورکړه .
احمدشاه چې لاهور ته راغی په دی پوهیدی چې سکانو بیا دهغه ځای امنیت خراب کړی دی نو سپاه سالار جهانخان یې دتمور دمرستی دپاره د امرت سر د سکانو د تنبیهه کولو دپاره مامور کړ د کشمیر حکومت یې بلند خان سدوزی ته ورکړ او د پېښور د لاری یې د کندهار خوا ته حرکت وکړ .
احمدشاه په ۱۱۷۳ - ۱۱۷۴ کې د بلوچستان دنائب الحکومه درعیتولو او مرهټیانو د تنبیهه کولو دپاره تیاری ونیوی .
احمدشاه لا په کندهار کې یوه میاشت نه وه تیره کړی چې د پنجاب امنیت دسکانو دنوی طریقی او تقویه کیدلو او د هند د شهنشاه د معزول وزیر غازي الدین ابن قیروز جنګ او ادینه بیګ د توطئو له کبله خراب شو ادینه بیګ د وابه مخصوص (جلندر) په سکانو د لښکرو مشر سو ادینه بیګ د سکانو دوابه مخصوص (جلندر (سکانو لوټ کړ او عملا د پښتن په مقابل کې دوریدی خو دهند ندحکومت خطر تر پیجاب زیات ؤ
د اورنګ یب د سلطنت په وخت کې (سیواجی) نومی د هند په جنوب کې دمرهټو د حکومت اساس کښیښود او داورنګ زیب د مړینی دیرش کاله لا نه وه تیرشوی چې مرهټیانو د هند په جنوبي شبهه جزیره باندې سلط قایمه کړه او ددوی پاچا) بالاجی) غوښته چې ټول هند یې تر لاس لاندې وي .
غازی الدین چې فرح اباد ته مرهټو ه تښتېدلی وو په دغه وخت کې یې احمد خان بنګښ په دی هیله چې ده ته په دهند سپاه سالاری ورکوي دځان ملګری کړ او د دکن مرهټیان یې هم د ځان طرفدار کړل د نجیب الدوله او شجاع الدوله د مځکو نیولو علاوه یې د شمالي هند او افغاني ختیځو سیمو د نیولو دپاره تحریک کړل همداشانی غازی الدین د هند په جنوب کې جاټان او په لویدیځ کې یې

راجپوتان پرډهلي باندې د حملې کولو دپاره تحریک کړل خو دغه تحریکات په اوده کې دواب شجاع الدوله له دبیداری له کبله ناکام شول .

په (۱۱۷۲) کې (پیښوا) د زیاتو پیاده ؤ سپرو لښکرو او توپخانی سره د شمالي هند او پنجاب د نیولو دپاره عزم وکړ، ددغو لښکرو قوماندان د مرهټیانو دپاچا وررور (راګونات راو) چې را ګویا نومید تاکل شوی ؤ ددوی سره غازی الدین (سندیا) هو لکر، جنګو راو، اود مر هټیانو څه نور مشران ملګري وه هغه وخت چې دغه لښکر د جاټانو مځکی ته راورسید د پخواني تړون په اساس سورج مل جات هم ددوی ملګری شو .

یوه ټولګی عسکر یې د (جنګوراو) په قوماندانی د اجمیر بله ټولګی عسکر یې د (سندیادتا) په قوماندانی د پنجاب لوری ته وخوځېدل اوخپله) ګوبا) د دهلی لوری ته وړاندی تګ شروع کړ او نجیب الدوله په هند کې افغانی سپاه سالار د مرکز مدافعه کوله خو څرنګه چې د افغانستان له خوا مرسته پې باندې بنده شوه او دده مدافع قواوی د مر هټیانو په مقابله کې هیڅ نه وی نو دی سهارنپور ته راتر شا شو هغه ټولګی عسکر چې پنجاب لوری ته خو ځیدلی وه په سرهند کې یې افغانی سر دارعبدالصمد ممن زی مخه ونیو له دغه افغانی سردار دومره په میړانه او د لاوری و جنګیدی چې لښکر یې ټول تباه شو او خپله ددښمن په لاس ولوید .

په سر هند کې د ادینه بیګ قواوی هم ورسره ملګری شوې او دستلیج څخه پورې وتلی سر دار جهانخان ته دخپلو قواو او ددښمن د قواو مواز نه ملومه وه نو ځکه لاهور ته ځنی راترشاشو دمریټیانو سر لښکر دیر ژر لاهور ونیوی او افغاني سپاه سالار په جنګی تکتیتک پیښور ته ځنی راتر شا شو ځکه مرهټیانو دسند څخه تر اټکه پورې د اباسین کنهی عاړی او د ستلیځ راسته غاړی ټولی ونیولی، سندیا یا ترستلیج پوری وت او د سهارانپور خواته رهی شو ځکه غازی الدین د مرهټیانو دلښکرو سره د نجیب الدوله مقابلی ته لاړ نجیب الدوله د حافظ رحمت خان په مشوره داوده دنواب شجاع الدوله څخه چې دهغه موقعیتهم په خطر کې لویدلی ؤ مرسته و غوښته او هغه هم د نجیب الدوله له په مرسته د جنګ میدان ته وروډنګل نو په دی ډول ددواړو قواؤ په منځ کې څه تعادل راغی په دی وخت کې سندیا هم د غازی الدین د مرستی دپاره راورسیدل که څه هم مرهټیان دیر په زور کې وه خو پنجاب ته د علیحضرت احمدشاه بابا د رارسیدلو خبر ددوی روحیات ضعیفه کړل .

پخوا هم احمدشاه بابا ته د هند د مسلمانانو ، نوابانو او روحانیونو له خوا لیکونه رارسېدلی وه چې ددوی د ژوندانه وضع په هند کې د خطر او نیستی سره مخامخ ده په دغو کې ډیر مشهور او غوره

لیک د حضرت شاه ولي الله صاحب ؤ چې د خپل مرید فیروز بخت په لاس یې په کوټته کې داحمدشاه بابا حضور ته تقدیم کړ .

همدا شانې شاه ولی الله صاحب نجیب الدوله هم دد غه خدمت او غزاته دپاره رابللی ؤ لکه په خپل یو سیاسي مکتوب کې چې وایي: ( دلوي خدای منبع الحسنا، امیر المجاهدین، رئیس الغزات په نو نوو فتو حاتو او ډیرو برکتونو ولمانځی، د فقیر ولي الله د خوا هیله ده چې خدای یې د هیله مند په څیر په خپله درگاه قبوله کړی، او تا د اسلام دد ښمنانو شکست ورکوونکی کړی، او دخدای څخه مې هیله ده چې دا زما هیله ډیر ژر په سر ورسېږي، په هندوستان کې دری فرقی په سختی او شدت سره یادېږي که ددغو قرقو سته ورانه، نه شي بیا به نه کوم پاچا نه امیر یا سردار او نه اولس په آرامه ځنی کنبینی، دیني او دینوي مصلحت په دیپ کې دی چې دمرهټو دوهلو او جنګ ګټلو وروسته ژر تر ژره د جاټانو کلاګانو ته مخ وگرزوی او دغه کار په غیبی برکت پای ته ورسوی، ددی وروست هبیا دسکانو وار دی قرقیته هم شکست ورکول په کار دی، د الله تعالی درحمتونو منتظر اوسه .

احمد شاه ته چې دمخه د پنجاب د سکانو او مرهټیانو خطر معلوم ؤ نو د شهزاده تمور او سپاه سالار جهانخان دروحیاتو د تقویه کولو دپاره یې د نورالدین خان په مشری یو ټولگی عسکر پنجاب ته لېږدولي وه دی چې داباسین څخه تیر شو د احد شاه دراتلو اوازه په پنجاب کې خپره شوه د چناب تر غاړو پورې چا مقابله ورسره ونه کړه او وزیر اباد ته ورسید او دلته ډیره سوځکه ده تر هغو چې احمدشاه بابا نه وې رارسیدلی د مرهټیانو سره یې جنګ کول مصلحت نه ګاڼه احمدشاه باباد بولان ددری څخه سند ته راغی او دشمال خوا ته یې د اباسین راسته غاړو ته حرکت وکړ دپیښور څخه شهزاده تمور او سپاه سالار جهان خان دځان ملگري کړل د اټک څخه تیرشو او وزیر اباد ورسید د احمدشاه بابا په وروسته پسی د کندهار غیر منظمی قواوی هم راروانی وی.هغه وخت چې د مهټیانو د سرحد ساتنوالو ته دغه خبر ورسیدډوی د اندس څخه لاهور ته تر شاه شول لاهور د سابا، نومي مریتي په لاس کې ؤ چې دادینه بیگ د مړینې وروسته یې په ( ۱۱۷۲ ) کې نیولی و ساباد د خپلو لښکرو سره د سند یا دلښکرو په مرسته د ستلیج څخه راپوریوت حمد شاه بابا دخپلو لښکرو سره چې دیر شو زرو کسو ته رسیدل په ۱۱۷۳ کې د پنجاب قطب دری ته ورسید هلته د سند څخه تیر شو او دسهارنپور لاره یې واخیستله .

مرهټیانو هم په دی ډول جنگی احضارات ونیول، سندیا او غازالدین چې په سکر تال کې د نجیب الدوله د محا صری کولو او داوده د نواب شجاع الدوله سره په جنګ کول ولګیاؤ ددوی سره یې

روغه وکړه غازي الدين ددهليخوا ته ولاړ، او سنديا د مرهټيانو دلومړي لښکر د قوماندان په حيث د پنجاب لوري ته حرکت وکړ .

غازي الدين چې دهلي ته راورسيد د هند پاچا عزيز الدين محمد عالمگير ثاني يې په خصوص توګه د منځه واخست او دده په عوض کې ې محی السطنه بن کام بخش بن اورنګ زيب په نامه پاچا کړ او د هند د پاچاهي واګې يې دوزير په نامه په خپل لاس کې واخستی د مرهټيانو دوولښکرو د هلار او هلکر په مشری نظامي احضارات وکړل غازي الدين او جنکور ا په دهلي کې نظامي ترتيبات ونيوله راګوبا مرهټي ته تللی ؤ .

احمدشاه لاپه سهارانپور کې ؤ چې سپاه سالار نجيب الدوله او سعدالله خان بړيڅ روهيله د کترا (مراد اباد، بداون، بريلی) د سيمی مشر د خپلو سردارانو سره لکه حافظ الملک حافظ، رحمت خان زوی يې عنايت خان، دو ندی خان، قطب خان دلسوزرو لښکرو سره ورسره ملګری شول .

شجاع الدوله د شخصي کارونو کولو دپاره او ده ته تللی ؤ احمدشاه د سهارنپور څخه ددهلي لوری ه حرکت وک شهزاده تمور او سپاه سالار جهان خان يې د لسو زرو لښکرو سره خی ته واستول ددهلي په لار کې دسنديا اتيازره لښکری چې د احمدشاه بابا د راتلو په انتظاريې يوست د جهانخان د لښکرو سره مخامخ شوی او شديد جنګ شروع شو دزياتو تلفاتو ورکولو وروسته هغه لښکری د افغانی لښکرو د فشار له کبله دهلي ته نژدی د بدنی ميدان ته ترشا شوی په دې وخت کې د احمدشاه بابا لښکر راورسيدلو او سندد ياتا په ميړانه وجنګيد خو په پای کې د زياتو تلفاتو ورکولو وروسته چې څو زره لښکری يې وتښتېدی او پښتنو هغه لښکر تر ۲۵ ميلو پورې پسی واخست سخت مات شول دغه فتح يې د ۱۱۷۳ کال په نيمې کې د جمادی الاخر په مياشت کې وکړه په دی جنګ کې د تاجی پټيل هم ووژل شو که څه هم مرهټيانو يو بل سردار ملهار او هلکر دته جی دپيټهل په مرسته راورسيد خو احمدشاه چالاکی وکړه او پر هغو لښکرو يی هم نابو بره حمله وکړه تيت او پرک يی کړل غازي الدين چې دا احمدشاه ددغی فتح څخه خبر شو دهلي يې پرېښود د جنوب خوا ته د جاتانو مځکو ته وتښتېد په دې وخت کې د مرهټيانو دوهم قوت د جمنا چيپخوا ته په مکندره کې ؤ احمدشاه ددغه قوت د ماتولو دپاره شاه پسند خان اسحق زی د پنځوزرو سپرو سره واستاوه دی دهلي ته ننوت او ترجمنا پوری وت او په مکندره کې يې پر دښمن شبخون و کړ دد ښمن قوت يې مات کړا ددوی قوماندان (هولکر) د څو سپرو سره و تښتېد ټول تجهيزات يې د احمدشاه د لښکرو په لاس ورغلل درا جبوتو مشران د جيپور او ماروار راجاګانو سوغاتونه د احمدشاه حضور ته وروليږل جاتانو چې دهغه ځای امنيت خراب کړی ؤ احمد شاه بابا يو ټولګی عسکرد هغوی د تنبه

کولو لپاره واستول او تر (ارام ګده) پورې یې هغوی تر شاه بوتلل او ددغې کلا ټول تجهیزات د احمد شاه بابا د لښکرو په لاس ورغلل غازي الدین او سورج مل هم د څپلو حرکتونو څخه پښېمانه شول او د حافظ رحمت خان په شفاعت یې وبخښل او په انوپ ښار کې نواب شجاع الدوله او دفرخ اباد څخه احمدخان بنګښ د لسو زرو غیر منظمې لښکرې سره ورسره یو ځای سو همداشانې د کندهار څخه په زرو غیر منظمې لښکرې د حاجي عطامحمدخان او کریمدادخان په مشرۍ د احمدشاه حضورته راورسیدلی د احمد شاه منظم لښکر دهغو نورو لښکرو سره چې شجاع الدوله په ګډ کړي وه تقریباً پنځوسو زرو ته ورسید څلویښت زره د احمد شاه بابا خپل پښتانه لښکروه لس زره د شجاع الدوله او دیرش زره روهیلي منظم لښکروه د مرهټیانو د فوجو قوماندان د مرهټیانو د فوجونو قوماندان د مرهټیانو د پاچاهي ولیعهد وسواس را وؤ دغه فوځ د کن څخه پر دهلي راغی او د پښتنو قوت د لړوالي له کبله یې دهلي په ۱۷۶۰ د جولاي په ۲۲ ونیوی .

احمدشاه د جمنا پر دا بله غاړه بروت و دسند داو بو د ډیروالي له کبله یې ددهلي سره مرسته کولای نه شوای او مهټیانو ددهلي شمال ته ګنج پوره هم ونیوله او دهغه ځای پښتانه لښکر یې تبا کړل احمدشاه په دغو واقعو ډیر خفه شو او احمدخان یو سفزي ته یې امر وکړ چې د جمنا څخه پورې وزی خو مرهټو هغه وخت چې ددغه افغاني سردار لښکر دسند منځ ته راورسېدل ګولي باندې چلولې او دغه لښکر نه مخکې تلای شي او نه تر شا او زیات تلفات هم ور ورسېدل احمدشاه بابا زیات په قهر شو او په خپله د اس په سپور له دې سره چې د جمنا رود ډک او خطرناک او به بهیدې او مرهټیانو ګولي باندې چلولې د سند څخه خپلو قوا و سره پوریوت او مرهټیان یې دپاني پت میدان خواته ترشا کړل احمدشه دوی پسې تعقیب کړل په دې وخت کې مرهټیانو د پاني پت په شمال کې استحکامونه جوړ کړي وه او د سنبالک په برخه کې پنځه ویشت زره پیش قراو لانه ځای نیولی ؤ احمد شاه بابا کندهار د قواؤ قوماندان شاه پسند خان چې پنځه زره رساله ورسره وه د هغو ی دمقابلې کولو دپاره امر کړاو په یوه ورځ یې ټول مات کړل د پاني پت په میلي کې دواړه سره دښمن لښکریو ویل مخامخ ته ددریو میاشتو دپاره پراته ؤ دپاني پت په جنګ کې احمدشاه بابا لوړ حربي تدبیرونه نیولی ه او دخپلو استخباراتو په واسطه یې ددښمن د لښکرو ذخیره او دارتباط وسیلي ښه کشف کړی وی او دخپلو ګزمو په واسطه یې د شمال د خوا څخه د (الاجیت) نومی هندو د خوړو او ارزاقو مرستی بندی کړی او ددهلي خزانی چې مرهټیانو پاني پت ته وړلی او راوړلی راو ګرزولی ا ضبطی یې کړی .

په دې وخت کې مرهټیانو بله آتکی وکړه گوبن پنډت نومی یو قوماندان یې دلسو زرو لښکرو سره پراودهاور هلکیند باندې چې د شجاع الدوله له او نجیب الدوله وطنو نه وه په حملې کولو مامور کړخو ددهلی په ۱۸ میلي ک عطایی خان کندهاری د خپلو پنځوزرو سپرو سره پر هغه حمله وکړه او دغه لښکری مات کړ که څه هم مرهټیانو دوه ځله نوره نابوبره حملې وکړی خو سخت مات سول او دد څخه وروسته دیرغل کولو دلاوري ځني ولاړه .

قاضي عطاوالله په خپل تاریخ کې د الفنستن په حواله وایي: که څه هم د درانو قوج هم د خرڅ او هم دخوراک له کبله په تنګ شوی ؤ خو د احمدشاه بابا د صبر بیداری تحمل له کبله به ډیر مشکلات حل کېدل، څرنګه چې ټولو لښکرو پر هغه باندې اعتماد درلود او هغه به خپلو هندوستانی ملګرو سره په ښه نرمی او خوش خلقی سلوک کاؤ نو ځکه یې په لښکرو کې ناآرامي او زړی بدی نه پیښېده خو د مرهټیانو فوج دجنګ د مصیبتو څخه په تنګ شوی ؤ دغه مصیبتونه به یې د خپلو مشرانو ا نظامي کسانو د لاسه ګڼل، که څه هم د مرهټیانو سردار بهاود نواب شجاع الدوله په واسطه د صلح پېشنهاد وکړ خو نجیب الدوله نه مانه او ویل به یې که احمدشاه بابا ولاړ شي مرهټیان به په قبرونو کې هم زموږ هډوکي پرېنږدي مرهټیان هغه وخت چې دلوږې او بد بویې څخه پ تنګ شول د چهارشنبی په ورځ د جمادي الاخر په ۱۱۴۶ قمري کې چې د ۱۷۶۱ کال د جولای د ۱۶ سره متصادفه وه په جنګ کولو مجبور شول د مرهټیانو پاچا زوی (وسواس راو)تر قیادت اوسدایشو بهاو په قوماندانی حرکت وکړ د مرهټیانو د یرغل کونکی لښکر شاته (۲۴۰۰) پیلان او د ابراهیم خان تر مشری لاندې څلویښت زره کارد مسلمانانو حرکت کاوه ددوی منظمی توپخانې هم په اوربل شروع وکړه او په دلاوري مخی ته راتلل احمد شاه بابا هم په یو حاکم ځای موقیعت ونیوی او د جنګ دوضیعت څار یې کاوه او د افغاني لښکرو شا یې تقویه کوله په دغه وخت کې صدر اعظم شاه ولیخان د لسو زرو زره پو شور مالی سره د احمد شاه بابا په حضور کې ؤ دپښتنو دیوی خو په لښکر کې سپاه سالار جهانخان او بلیخوا یې شاه پسند خان قوماندان حرکت کاؤ او دجنګ په دمخه لیکوکی درو هلکیند پښتانه سردارانو نجیب الدوله او شجاع الدوله ځای نیولی ؤ د احمد شاه بابا درنه توپ خانه هم په خدمت کې حاضره وه مرهټیانو نجیب الدوله او سردار عنایت خان دلسوز زرو لښکرو سره تباه شو شجاع الدوله د لسو زرو لښکرو سره سخت یر غل وکړوکه څه هم د پښتنو دراسته خوا قوت موجود ؤ خو چپی خوا قوت یی دمرهټیانو د زیاتوب له کبله ماتیدو ته نژدی شو احمد شاه بابا چې دغه نازک حالت ولید خپلو لسو زرو لښکرو ته یې چې په ۱۲ کنډکو ویشل شوی وو د یرغل امر وکړ دوو کنډکو په وار پر دښمن یرغل کاؤ په دغه اوربل شهزاده بسواس او ورسره

منصبداران ووژل شول او ددښمن راسته خوا بیخی کمزوری شوه د شهزاده مرینی د مرهټیانو د لښکرو روحیات بیخی مړه کړل دپښتنو د توپخانی اوربلونو د مرهټیانو پیلان یازخمي او یاو تورول او ډیره یې انتظامي یې پیښه کړه د پښتنو لښکرو ته د حملی ښه زمنیه برابره شوه او عمومي یرغل یې شروع کړ دوی د تورو او لاس په لاس جنګ ته سره ورسېدل دغه دومره سخت او همناک جنګ ؤ چې غالب او مغلوبه نه شو معلومېدلی خو پښتانه په اخر کې عالب شو ل د مارسدن په قول دوه لکه مړی پر میدان پاته شول هغه څه مرهټیان چې پاتې شوه پښتنو هغوی تر ۴۰ میلو پوری تعقیب کړه او تول ي تباه کړل او ددرو مشهورو قوماندانانو هولکر، شمیراو ، ماجی سندیا پرته نور تول ووژل شول .

دهغه دوری یو مؤرخ د نجیب الدوله د میړانې او توریالتوب په خصوص کې لیکي:.

کله چې د ابدالي لښکرو سپاه سالاران جهانخان، شاه پسندخان او شاه ولیخان او هم دروهلکیند نوابان حافظ رحمت خان، احمد خان بنګښ او نجیب الدوله د مرهټیانو توپونو سره راګیر کړل، اخرنجیب الدوله خپل سرپرمیدان کښیښود دلسو زرو پیاده روهیله ځوانانو سره یې په مرهټو په او ریلونکو کلا ګانو ورو ځغاست او روهلیو د نورو په ځای په توپکو مقابله کوله د مرهټو مشهور جنګیالی سردار (بهاؤ (او ښی (بلونت راو) ووژی او نجیب الدوله له خپله میړانه او وطندوستی دتولو په مخ کې په اثبات ورسوله .

په دغه جنګ کې دنقدو پیسو علاوه پنځوس زره اسان دوه لکه غویان ۵۰۰ پیلان، څو زره او ښان دمجاهدینو په لاس ورغلل په متوسط حساب هر پښتون عسکر ددښمن د پنځو نفرو په مقابل کې جنګیدی او هر یوه دښمن دری نفره وژلی وه او هرو درو کسو ددښمن دری کسه بندیان نیولی و، په دی جنګ کې ددښمن ۲۲ زره کسه ونیول سول ابراهیم کار دی چې مسلمان ؤ ووژل شو او نور مشران وبخښل شوه .

ددغی فتح وروسته احمد شاه دهلی ته راغی او ددهلی تخت یې شاه عالم مغولی ته ورو بخښه او د هند سیاسي او اداري چاری یې نواب شجاع الدوله له ته د هندو زیر په نوم چې خپله احمد شاه بابا ده ته د فرزند خان او د هند د رستم لقب ورکړی وروسپاري او نجیب الدوله له یې هند دلښکرو عمومي قوماندان و تاکی او نصیحت یې ورته وکړ چې د پاچا سره واوسه او دهغه پوره پوره ملګرتیا کوه .

احمدشاه بابا جې لاهور ته ورسید د پنجاب حکومت یې زین خان مهمند ته ورکړ او خپله د پیښور او کابل دلاری کندهار ته راغی او د کندهار د اوسنی ښار په جوړولو یې پیل وکړ .

د ځنو مؤرخینو په نظر د مرهتیانو د غی ماتی انګریزانو ته په هند کې د پیشقدمي زمینه مساعده کړه که احمدشاه بابا ددهلی تخت مغولی پاچاته نه وای ورو پخښلی د خپل سلطنت مرکز یې لکه د پښتنو نورو پاچا هانو د دهلی او یا لاهور انتخاب کړی وای د سکانو د حملو څخه به هم دی او هم دده زوی په امان وای او داسی سلطنت به یې جوړ کړی وای چې لویه پښتونخوا او هند به یې ترنګین لاندې وای .

جی دی، کننګهم چې د سکانو تاریخ لیکلی دی د احمد شاه بابا په خصوص کې درومی مؤرخ تیستیس هغی قصی ته اشاره کړې ده چې درومی ګیلبه په خصوص کې یې لیکلی وه دي وایي چې درومی پاچا او فاتح ؤخو د سلطنت نظم او نسق یې نه شو کولای خو د سر اولف کیرو په عقیده احمدشاه بابا د پښتنو دسلطنت اساس کښیښود چې اوس هم د هغه سلطنت واکی دهغه دقبیلی د یوی بلی درانی څانګی په لاس کې دی دی زړور او دلاوروو د افرادو او قبیلو په تنظیم او رهنمایي کې ماهر وو هغه یقیناً مرد میدان ؤ فطر تازړه سواندؤ سیاست یې داؤ چې تر خپله وسه به یې روغی او جوړی زیار یوست هغه یو داسی پاچا ؤ چې هیڅیری یې د ولس څخه ارتباط نه ؤ شلولی .

هغه وخت چې د احمدشاه بابا اردو د سکانو د شیمی څخه تیریدی په دې ځل د ادینه په عوض جیساسنګ چې د الاجیت له خوا تقویه کیدی لاهور نیولی ؤ او زین خان مهمند یې د کوت په کلی کې محاصره کړي ؤ همدا شانی سکانو د کشمیر سکان هم پارولی وه او د هغه ځای پر محلی حکومت باندې یې یرغل کړی ؤ په ۱۱۷۵ کې د پنجاب ا کشمیر مرکزونه دیاغی سکانو په لاس ورغلل احمدشاه بابا چې د سکانو د بغاوت څخه خبر شو لاهور ته یې د سفربری امر وکړ کله چې احمدشاه بابا لاهور ته ورسید ۱۱۷۵ نیمایي کال تیرشوی وو په دې وخت کې د (چندااله) او کوب په کلیو کې سکانو د پښتنو د منصبدارانو سره جنګ کاؤ احمدشاه بابا پښتنو میصبدارانو ته مخصوصه اطلاع ورکړه چې دده د لښکرو د حملی په وخت کې د دوی د لښکرو افراد شین پاڼی په خوله ونیسي چې دسکانو د لښکرو څخه وپیژندل شي احمدشاه بابا پر سکانو نابو بره حمله وکړه او دسرهند خواته یې تر شا بو تلل دد غه ځای څخه احمدشاه بابا دوی تعقیب کړه د ستلیج څخه تیر شو په ۴۸ ساعته کې یې (۱۳۵) میله لار ووهله او سخته حمله یې باندې وکړه او د اویا زرو سپرو او اوه زرو پیاده سکانو څخه ۲۵ زره تنه ووژل شول او نور یې وتښتیدل ددغه جنګ وروسته سکان بیخی مات سول او دغه جنګ ته (کلو کارا) څکه ویل کیږي چې دیر سکان ووژل شوه .

احمدشاه بابا د هند څخه سپاسالار نجیب الدوله راوغوښت او ددغې سیمی د امنیت په خصوص کې یې لازمي لارښوونی ورته وکړی د پتیالی او سر هند حکومت یې یو وفادار سیک (امر سنګ)ته ورکړ چې دغه سیک د وزیر شاه ولیخان په احترام په خپلو لیکنو کې امرسنګ ب میزائی لاس لیک کاؤ .

د احمد شاه بابا هغه لښکر چې نورالدین په مشرتابه کشمیر ته استول شوی ؤ په ۱۷۷۵ کې کشمیر بیا ونیوی او نورالدین بیا هلته حکومت ټینګ کړ هغه وخت چې احمدشاه بابا د پنجاب امنیت څخه فارغ شو بیا یې زین خان مهمند د پنجاب حاکم کړ او بیرته کندهار ته راغی او دغه یې دختیځی خواو روستی سفر بلل کیږي او تر ۱۱۸۳ په کندهار کې پاتی شو .

احمد شاه بابا د بادو (جذام) په ناروغی اخته ؤ پزه یې ګرده باد و خوره چې په پروتی به یې په حلق کې خواره په قاچوغه خوړل او کله چې یې په خبرو څوک نه پوهید او ناروغی یې سخته شوه د کنډهار د توبی غره ته چې ښه اب او هوا لري د استراحت دپاره ولاړ او هلته وفات شو.

# تېمور شاه دراني



تېمور شاه درانیٔ () د افغانستان د لوی او نومیالي مشر ، د افغان دولت د بنسټ اېښودونکی اعلیحضرت احمد شاه بابا زوی وو ، چې د ۱۷۴۸ ز کال د می په ۱۸ زېږېدلی دی . تېمور شاه په ۱۷۷۳ ز کال کې د خپل پلار له مړینې وروسته د افغانستان پر پلاز کښېناست . د افغانستان پلاز دده د واکمنۍ پر مهال له کندهار نه کابل ته ولېږدول شو . مورږ د ښوونځي په تاریخونو کې لوستي وو ، چې تېمورشاه هوسايي غوښتونکی سړی وو او دده له نرم طبیعت نه محلي مشران له ده یاغي شول . دا ډول ذهنیت زمونږ په ذهن کې پاتې وو . بله خبره دا راووته ، چې ده قزلباش ډېر پالل او پښتو ته یې پاملرنه نه کوله . صدیق فرهنګ په ۱۹۸۸ ز کال کې ولیکل ، چې تېمور شاه پخپل حرم کې درې سوه ښځې درلودې او هره میاشت یوه ښځه زیاتېدله . بیا لیکي ، خو ویښ سړی وو ، له هرې جګړې نه بریالی راستون شوی دی . اوس به همدغه خبره وڅېړو : د ملي تاریخ لپاره دده ویښتوب ، زړورتیا او هېوادپالنه ضروري ده . د ښځو معامله یې څوک څه کوي ؟ بیا درې سوه ښځې دومره ډېرې دي ، چې په یوه کلي کې هم نه ځايېږي ، نو په یوه کور کې چې د پاچا هم وي ، څنګه ځایدا شي ، او یو سړی ټولو ته څنګه رسېدای شي ؟ تېمور شاه د هند او ایران د پادشاهانو لوښي کړې وې ، څو نورې د قومي مشرانو لوڼې هم وې ، چې ټولې لس تنه کېدې ، نو د یوې شاهزادګۍ ساتل چې یوه ایرانۍ او بله هندۍ وه ، دوئ سترګې نه درلودې . د تېمورشاه خسران برحال پادشاهان وو ، په هره میاشت کې چې یې یوه ښځه زیاته‌شي ، په کال کې دولس کیږي ، په دې صورت کې نو دده د پادشاهۍ تر پایه پورې باید د هغوی شمېر پینځه سوه شوی وای . دا د نه منلو وړ خبره ده . د تېمور شاه دوره په ټوله امپراتورۍ کې د تهران او مشهد له سرکه تر ګنګا پورې ، له امو د هند تر سمندره پورې کراره کراري وه . په شلو کلونو کې ایله څلور پېښې وشوې ، چې امپراتور پخپله ورغلی او عاملین یې سم کړي دي . ده دوه نیم سوه بېړۍ درلودې او سوداګري ښه روانه وه . عدالت خپور وو ، دی ډېرظالم سړی نه وو ، خوشوق ورباندي ډیره غلبه کړي وه چې دډېرزوق واشوق نتیجه یې داحمد شاه بابا ګټلي امپراطوري اودهیواد خپلواکي په تجزیه بدله شوه . د تېمرو شاه په دوران کې دوه ایراني شهزادګان په کابل کې اوسېدل ، چې له فروغي سره درې کېدل ، یانې دوه افشار او یو صفوي وو . په افغانستان کې د امپراتور شاه زمان له واکمنۍ نه راهیسې ، یانې له ۱۸۰۱ ز کال نه بیا تر ۱۹۷۹ پورې د ایران اغېز پر سلطنت پروت وو .

## د امپراتور تېمور شاه دربار

همداسې چې په یوولسمه زېږدیزه پېړۍ کې غزني د فارسي شاعرانو او لیکوالو بانده وه ، په اتلسمه پېړۍ کې کابل د فارسي شاعرانو مرکز وو . په دغه عصر کې توپیر دومره دی ، چې امپراتور تېمورشاه د پښتو شاعر او لیکوال وو . پیر محمد کاکړ ، عبدالله خان دېوان بېګي او نور که پښتانه وو تولو فارسي شاعري کوله او د خپل مهال پاخه شاعران له هند او ایران څخه راغلي وو ، البته د دوی کور وو . لکه واقف لاهوري ، عشرت له هند څخه ، فروغي اصفهاني ، موسوي ، مهدي له ایران څخه او عاجز له کابل څخه . (( افغان )) ، حزین حیرت شاملو ، ذکي ، رضا ، هما ، شاه عبدالحکیم خراساني ، شجاع ، شهاب ، لیکوال محمودالحسني ، مظهر جانان ، محمد حیات ، لچهمي رام پنډت ، الشایي ، بوسعید ، میرزیان ، عبدالله میرزا علي عسکر وصفي ، میرزا شکیبا ، میرزا عطار او په سلګونو نور واړه او غټ دراني شاهزادګانو ټولو په یوه خوله پارسي شاعري کوله . داسې نه وه ، چې د شاهي کورنۍ ژبه پښتو نه وه ، دوی په پښتو غږېدل ، سم پښتانه وو ، خو د موضوع په اهمیت نه پوهېدل . له دوی څخه یوازې د امپراتور تېمور شاه او سردار عبدالله خان دېوان بېګي د پښتو شعرونو نمونې شته ، چې دلته به یې د امپراتور تېمورشاه د پښتو شعر یوه نمونه راوړوو :

نن مې بیا له تورو سترګو سره جنګ دی — په لبانو یې د زړه د وینو رنګ دی
که برې کړی سر په لاس ورلره ورشم — لا په دا یې باور نه شي په زړه سنګ دی
ستا د حسن لښکر راغی ځای به نشي — د عاشق د زړه میدان هرګوره تنګ دی
عیشق او مشک پټېدای نشي تېمورشاهه — چې بخېله خان رسوا کړی هغه رنګ دی

د پښتو شعر یوه بله بېلګه یې داده :

هسې دی د یار صورت لکه ګلونه — که وهلي یې پر مخ دي شنه خالونه
تېر شو عمر د وصال په انتظار کې — اوس پر زړه مې د هجران لګي اورونه
د پتنګ په دود دې یاره په ژوند وسوم — د باڼو په داروېږي یې زخمونه
راشه مینه بخښل خدای کړه تېمور شاهه! — څه به کار دي د فاني دنیا کارونه

د تېمور شاه له دغو شعري بېلګو نه د هغه مهال پښتو ښکاري ، لښکر ، ډګر ،جنګ او نور دده له پوځي ژوند څخه څرګند دی . د امپراتور تېمور شاه اداره ، سیاست ، او پوځي لیاقت روښانه دی .

یوازې دبدبه ، شان ، شوکت او هوسايي دده تر احمد شاه بابا ډېر وو . یو دوو جګړو ته چې ولاړ ببرته بريالی راغی . دده د کابل د ښونو ښکلا ، د پوهانو ، کسبګرو له مخې د اسیا یو معظم ښار وو ، خو د یوې نیمې پېړۍ کورنیو او بهرینو جګړو داسې وران کړ ، چې اوس یې بنستونه هم نه ښکاري . کابل کې د ایران ، بخارا او هند شاهزادګان او سېدل او همدلته پاتې دي . په افغانستان ، ایران او هند کې دده له خوا منظمې ابادۍ شوې دي . ددغه ستر هېواد اقتصاد په سوداګرۍ او صنعت ولاړ وو ، خو ډېره برخه يې د زمکو او باغونو مالیه وه . دده بېړۍ په سیندونو او د سمندر پر غاړو کې ګرزېدې . د محمدزايي سردارانو جګړو او د انګلیس درې وارې یرغل هېڅ نه دي پرې ایښي . دغو جګړو د شاه زمان له دورې نه وروسته له ۱۸۰۰ نه تر ۱۹۱۹ پورې دوام درلود . محمدزايي سردارانو د سردار پاینده خان تر وژلو وروسته خپلې دوښمنۍ دومره وغځولې ، چې په افغانستان کې د احمدشاه بابا د سدوزي قبیلې وګړي د ګوتو په شمار پاتې شول . ټول یې هند ته وشړل او د دراني په نامه په هند او پاکستان کې د عادي خلکو په څېر اوسي . دوی هم پارسي د ملي ژبې په توګه ساتلې ده . ما د دوی ډېر خلک د هند او پاکستان په سفرونو او هجرتونو کې ولیدل ، چې د هېواد ارمان ورسره وو . اعلیحضرت تېمور شاه په ۱۷۹۳ ز کال کې په حق ورسېد او د کابل په ښار کې خاورو ته وسپارل شو . دده ارام ځای د کابل په باغ عمومي کې دی ، چې رغاونې ته ضرورت لري او د شاه زمان له مهال نه راهیسې چا لاس هم نه دی پرې وهلی او هماغسې پاتې دی .(۱)

---

۱

اخځونه

(۱) قدرت الله حداد (فرهاد)، د افغان ملي تاریخ ، ۱۴۰ – ۱۴۱ ، ۱۴۲ ، ۱۱۱ مخونه ، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز ۱۳۸۳ لمریز کال چاپ .

# شاه زمان خان


اعلیحضرت شاه زمان (۱۲۰٤هـ ق)
S. M. Chah Zaman (1789)

. شاه زمان د تیمور شاه زوی ، د لوی ، ملي اتل اعلیحضرت احمد شاه بابا لمسی وو ، چې په ۱۷۷۰ ز کال کې زیږیدلی دی . دغه نومیالی امپراتور په ۱۷۹۳ ز کال کې د خپل پلار تیمور شاه له مړینې وروسته د افغانستان پاچا شو . له احمد شاه بابا نه وروسته په ملي تاریخ کې . شاه زمان یوه داسې روښانه څېره ده ، چې ملي تاریخ یې په ښه نامه یادوي . شازمان ته که رېړونه نه وای پېښ شوي نه یوازې چې افغانستان یې ساته ، بلکې هندوستان ته یې هم د انګرېزانو له نېواک نه نجات ورکاوه . . شاه زمان په ملي تاریخ کې یو مدبر ، هیله من ، سیاستوال او زړور سرلښکر پېژندل شوی . دغه دوران زموږ په ملي تاریخ کې د اهمیت وړ دی ، چې زموږ دوه دوښمنان سره یو کیږي او لوی افغانستان کوچنی کیږي . دې خبرې ته پاملرنه په کار ده ، چې که چیرې د افغان بچي ته د همت او سرلوړی هیله پیدا کېدله ، نو په کار دي چې بیا دغه عوامل وپېژني . کله چې . شاه زمان پاچا شو ، بهرني او کورني حالات ډېره له خطره ډک وو . بهر کې انګلیسانو د هند زیاته برخه نېولې وه . په ایران کې هم قاجاري حکومت ټینګ شوی وو . ایران ددې لپاره چې د افغانستان لودیځ ولایتونه لکه نیشاپور ، مشهد او هرات ونیسي ، هم له روسانو نه مرسته غوښته او هم یې د لوی افغانستان پر خلاف په ۱۸۰۰ ز کال کې له انګلیسانو سره یو تړون لاسلیک کړ او په ښکاره یې دا ومنله ، چې که . شاه زمان د هند خواته حرکت وکړي ، ایران به پر لوېدیزو ولایتونو برید کوي او که چیرې . شاه زمان د ایران په لوري وخوځیږي ، انګلیسان به په ختیزو ولایتونو وردانګي . یو بهرنی لیکوال وایي ، چې د . شاه زمان پادشاهي د اس پر زین تېره شوه ، ځکه چې دی هر وخت په سفر کې وو . د خراسان او هند ترمنځ په منډو وو او دده پادشاهي ددې خبرې ښه ثبوت دی ، چې په یوه وخت کې دواړوو خواوو سره جنګېدل ګران وو . شاه زمان چې ډېر ګرندی سړی وو له هرې خوا ګرم شو . په دې مهال انګرېزانو ډیلي ته ځان رسولی وو ، سکهانو هم یوه مشري او انتظام موندلی وو . خو تر ټولو ګرانه خبره سلطان محمود دده ورور وو ، چې د شاه محمود سدوزي په نامه یادیږي . وزیر فتح خان ، چې دده ماما او لوی وزیر وو ، یو ناکراره او خاین سړی وو . ځینې کورني تاریخ لیکونکي پر . شاه زمان دا اعتراض لري ، چې تا شاه محمود دوه پلا ونیوه ولې دې مړ نه کړ ؟ بهرنیو مورخینو دا نیوکه کوله ، چې شاه زمان لومړی باید له ایران سره معامله پای ته

رسولې وای ، بیا یې هند ته مخه کړې وای . ټول هندوستان شاه زمان ته انتظار درلود ، چې له انګیسانو یې خلاص کړي وای . شاه زمان د خپلواکۍ اتل یلل کېده او د هند د میسور استازي دده حضور ته راغی ، چې پر هند حمله وکړي . په داسې حال کې د هند ملي پرګنو د شاه زمان په لوري کتل . انګیسانو بله چاره نه درلوده ، پرته له دې چې د ایران له قاجاري حکومت نه مرسته وغواړي . د ایران قاجاري پاچا آغا محمد خان قاجار یو ډېر ظالم سړی وو . بیا هم د خراسان ولایت په نیولو ایرانیانو ورسره مرسته کوله . د ((دره الزمان)) په کتاب کې د انګلستان د سفیر نظر ، چې ایران ته تللی وو ، داسې راغلی دی : ((زمان شاه د افاغنه وو سلطان زه د یوه غښتالي دښمن په توګه په هند کې پېژنم . زمان شاه پرته له کومې بهرنۍ مرستې نه کولای شي ، چې پخپلو متو په مساعد وخت کې پر هندوستان حمله وکړي . زمان شاه هله درولی شو ، چې دده په تومن ( هېواد ) کې نفاق ته لمن ووهو . )) د زمان شاه فصل په ملي تاریخ کې په دې ډېر اهمیت لري ، چې له همدې ځایه د افغانستان امپراتوري یا لوی افغانستان نړېږي . شاه زمان پخپله یو ملي اتل دی ، خو دده اخلاق داسې وو ، چې وروسته دی پخپلو اخلاقو ګرم او ملامت وګڼل شو . اوس چې دا جریان ولیکل شو ، تاسو لوستونکي پخپله قضاوت وکړئ ، چې ده څه باید کړي وای ؟ دې نه مخکې د (( دره الزمان )) له مخې . شاه زمان ملي اتل او د ایران له دولت سره دده کړنه لیکم : په کال ۱۲۱۰ هـ ق کې شاه زمان په هند او پنجاب کې لګیا وو ، آغا محمد خان قاجار د زیارت په پلمه مشهد ته ننوت . د افغانستان له پلوه شاه رخ هلته واکمن وو ، هغه یې مړ کړ ، د هغه زوی نادر میرزا کابل ته راغی . آقا محمد شاه ، چې له شاه زمان نه په وېره کې وو ، خپل استازی ، چې محمد حسین خان قراکوزلو نومېده ، له ډېر مال او ډالیو سره د شاه زمان دربار ته راولېږه . په دې کې دوه کیفیته وو : یو دا چې د مشهد د دریو کلو د خراج په اندازه یې سوغات ورولېږه ، او بله دا چې ده وویل ، غواړم بخارا ونیسم . افغان اتل شاه زمان مخکې له دې چې د ایران سفیر ومني ، هغه ته یې دا وښودله چې دی غواړي هندوستان فتح کړي او انګلیسان له هغې زمکې نه وباسي . نو د ایران سفیر ته یې خپل پوځي رسم ګذشت وښود . کله چې د ایران سفیر د افغانستان د لښکرو څرنګوالی آقامحمد قاجار ته څرګند کړ ، دی پوه شو او د خراسان له حدودو یې خپل لښکر په بشپړه توګه وایست . شاه زمان خپل سفیر ګدا محمد ، چې په ګدو خان او ځار وو ، تهران ته واستاوه . کله چې د آغا محمد خان قاجار دربار ته ورغی ، د هغه مهال له دود سره سم ، ((امین خلوت)) لکه د دربار وزیر وو ، ګدا محمد یې له لاسه ونیوه ، آقامحمد قاجار ته یې وویل : دا دی د دراني پاچا سفیر ګدا محمد قدم بوسۍ یانې پښنو ښکلولو ته حاضر دی . افغان سفیر په قهر شو ، د امین خلوت لاس یې پورې واهه او ویې ویل : دا څه چټیات (( شطحیات

)) وايي . آقامحمد قاجار حيران شو ، امين خلوت ته یې وويل ، څوک د يوه معظم دولت سفير داسې نه معرفي کوي . اوس به وګورئ چې شاه محمود سدوزی او وزير فتح خان ، ماما او خوريي څه کوي ؟ په کال ۱۲۱۲ هـ ق کې چې کله آقامحمد قاجار ووژل شو ، فتح علي شاه قاجار دده پر ځای د تهران پر تخت کښني . شاه محمود سدوزی او وزير فتج خان د فتح علي شاه قاجار دربار ته ځي ، د خراسان ولايت هغه ته سپاري او له شاه زمان سره د مقابلې لپاره مرسته اخلي . يانې د خپل ورور په مقابل کې . شاه زمان او شاه محمود دواړه د تيمور شاه دراني زامن دي . کله چې شاه زمان ته رسيږي ، شاه محمود د مقابلې توان په ځان کې نه ويني ، نو خپله مور ، چې د سردار پاينده خان خور وه ، قران شريف په سر شاه زمان ته ليږي . د شاه محمود مور خپل تيکری وغوړوي او قران شريف وړاندې کيږدي . شاه زمان دغه عذر او ننواتې ومنلې ، مګر هېواد ته لويه صدمه ورسېده . شاه زمان بايد دا نه وای منلې ؟ ځکه دی پوهېده ، چې اسلام او پښتونولي دوی صرف خپل ځانونه خلاصوي . نو په کار وو چې دې خبرو ته یې نه وای کتلې ؟ اوددې قران په تورو عمل سوی وای چې قران څه فيصله کوي ؟ چې ورته ويې کتل بيا هېواد برباد شو اواسلامي اتحاد اومسلمانانوته تاوان شو . ددې خبرې قضاوت ګران دی . بيا هم بويه قضاوت وشي ! ځکه سياست بد فن دی ، اخلاق او صداقت پکې نه ځاييږي . وروسته چې کله شاه محمود په ۱۸۰۹ ز کال کې پاچا شو ، قاجاريانو بې غمه د خراسان افغان ولايت ونيو . هغه ولايت چې صفاريانو ، غزنويانو ، غوريانو ، ابداليانو تر ۱۸۰۹ کاله پورې ساتلی وو . دادی د شخصي او کورنيو جګړو له کبله له لاسه ووت او قاجاريان په دې هم قانع نه شول ، دوی څو څو ځله فتح علي شاه قاجار ، محمد شاه قاجار ، ناصر الدين شاه قاجار بيا پر هرات حملې وکړې او هراتيانو يې پر وړاندې کلک مقاومت وکړ . صوفي اسلام هم د هرات په ساتنه کې شهيد شو . ورپسې سيکهانو په پنجاب کې پښې ټينګې کړې او لوی افغانستان مخ په نړېدو شو ، ځکه چې ملي مصالح چا نه وو پېژندلي او د بارکزو سردارانو د سدوزو هيڅ ډول روغه ونه منله . همدغه شاه محمود او وزير فتح خان د شاه شجاع او شاه زمان لاس تړ ورغلل ، خو هغو بيا وبښل او دوی بيا وتښتېدل او ايران ته يې پناه يووړه او قاجاريانو بيا مرسته ورکړه .

## د شاه زمان په اړه د بهرنيانو نظريات

((فرير)) د افغانستان په کتاب کې ليکي : (( شاه زمان هوښيار ، زړور ، پوه او فعال مېړنی وو . هغه تل د اس پر زين سپور له يې جګړې نه بلې ته روان وو . د افغنستان خلکو هغه ته د تېمور شاه له نورو زامنو نه ډېر درناوی درلود )) . ((سري ويليم جان وايي : (( په هند کې د انګليس ټول دوښمنان د کابل خواته ګوري او ټولو شاه زمان ته بلنه ورکړې ، چې هند ته راشي . وزير علي ، سلطان ټيپو او د جوناګړ راجا ټول د افغانستان پادشاه هڅوي چې هندوستان ته راشي او د افغاني لښکر ټول خرڅ به دوی ورکړي . ان د رامپور نواب غلام محمد پخپله د شاه زمان دربار ته راغلی )) . افغانستان په نولسمه پېړۍ کې وايي : (( تاريخ شهادت ورکوي او بهرني مولفين ټول اتفاق لري ، چې شاه زمان يوه ستره نقشه درلوده . ده غوښتل چې د احمد شاه بابا امپراتوري بېرته ژوندۍ کړي ، خو د يوه پياوړي او کلک دولت د تشکيل د بنسټ له مخې يې د ملک نيولو په جنبه اکتفا ونه کړه او غوښتل يې چې افغانستان يو مقتدر او متمدن دولت وګرزوي ، چې نه يوازې د سياسي او پوځي ځواک ښکارندوی وي ، بلکې په ختيځ کې د پوهنې ، کولتور او تمدن مرکز هم وپېژندل شي )) ! له بده مرغه دغه نوميالی افغان مشر له سختو داخلي کړکېچونو سره مخامخ کېږي او د شاه له خوا ، يانې د خپل ورور او محمدزاييانو له خوا وهل کېږي . انګرېزان او ايرانيان دده له بريدونو خلاصېږي او د شاه زمان لپاره ستونزې جوړوي .

## هند ته د شاه زمان د يوې لښکر کشۍ په اړه

. شاه زمان د ۱۷۹۸ ز کال په سر کې له يوه لوی لښکر سره د هند په لوري حرکت کوي او نېغ په لاهور کې اړوي . کله چې شاه زمان لاهور ته رسېږي د هند په مسلمانانو او هغو ټولو خلکو کې ، چې پوهېدل انګرېزي دوکاندارانو د دوی ملک نيولی ، يوه عجيبه ولوله ، شور او ځوګ پيدا کېږي او په ټول هندوستان کې د . شاه زمان افغان ډنډورې غږېدلې او خلک دده په انتظار کې ول ، چې افغان ژغورونکی شاه زمان لاهور ته رسېدلی . ان مرهټه او نور هندوان هم دا ځل خوشال ول ، چې انګرېزان به د دوی له خاورې وايستل شي . انګرېزان سخت وارخطا شول او حاضر وو ، چې په شمالي هند کې افغاني واکمني په رسميت وپېژني ، خو په دې شرط چې د فرانسې او روسيې مخه ونيسي ، چې په دې وخت کې يې غوښتل ، هند ته ځانونه ورسوي . داسې ويل کېږي ، چې د ناپليون بوناپارت استازی هم د شاه زمان حضور ته راغلی وو ، خو له بده مرغه د . شاه زمان ورور محمود ،

چې د هرات والي وو ، پر کندهار راځي ، ځان پادشاه اعلانوي او د کابل په لور خوځیږي . محمود ددې پر ځای ، چې په دغسې یوه حساس وخت کې د خپل هغه مدبر ورور ، چې ختیځ او لویدیځ ، روس او انگلیس ترې په وېره کې ول ، د بخارا ، ایران او هند بادشاهان ترې خپل موجودیت په خطر کې لیده ، ملاتړ وکړي ، د ایرانیانو په مرسته د هغه راپرزولو ته ملا تړي او هېڅ ډول ملي شعور او وجدان نه لري . په اسیا کې افغانستان او د هغه لښکر او سر لښکر یوازینی هېواد دی ، چې کولای شي انگرېزان له هند څخه وشړي او . شاه زمان په همدغه نیت هند ته تللی دی . اوس دې هر افغان یوه پلا د شاه زمان په موقعیت کې وگوري ، چې څه باید وکړي ؟ په داسې حال کې ، چې محمود له ایراني پادشاه څخه مرسته اخیستې ، د نیشاپور ، مشهد او نورو لوېدېزو سیمو په سودا کولو کې دی ، د زرگونو افغانانو وینې هلته توی شوې دي . د ملي تاریخ دغه دوران ډېر سخت دوران دی ، چې د میلیونونو افغانانو او پښتنو د تباهۍ موجبات راغونډوي . . شاه زمان د هندوستان د میلیونونو خلکو هیلې هم ( یو شمېر بې خبرو او له ملي شعوره بې برخو افغانانو د غلطو اقداماتو په اثر ) تر پښو لاندې کړې او بېرته د کابل او کندهار په لور راخوځیږي ، خو . شاه زمان له هغو کسانو څخه نه دی ، چې خپل هوډ پرېږدي . مردان خپل هوډ نه پرېږدي له لاسه – که یې سرشي د خوني زمري تر زامه د بخارا پادشاه هم پر شمالي سیمو رادنگلي وو ، خو شاه زما د بخارا پادشاه ، د ایران پادشاه او سیکهان ټول وځپل او ځینې دده له وېري پخپله په شاه ولاړل .

## ځوانمردي او ناځوانمردي

کله چې محمود کندهار ونیو ، شازمان کندهار ته پسې ورځي ، خو محمود د هرات په لور په شاه ځي . شاه زمان هرات ته ورپسې ځي ، محمود د هرات په کلا کې ځان کلابندوي ، شاه زمان ته د خپلې مور په لاس توبه نامه لېږي او عذر ورته غواړي . . شاه زمان د محمود د مور ، چې دده هم میره کیږي ، عذر مني او محمود ښښي او بېرته یې د هرات د والي په توگه ټاکي . خو محمود څه موده وروسته د کابل د نیولو په هڅه کې د ایران له قاجاري دولت نه د مرستې د ترلاسه کولو لپاره راوانیږي . مورخ غلام محمد غبار وايي : چې . شاه زمان شخصي او کورني عواطفو ته ولې پر ملي گټو غوره اهمیت ورکړ .؟ که چیرې یې د محمود او د هغې د مور عذر نه وای منلی او محمود یې نیولی وای ، لوی افغانستان به نه وای وران شوی ! خو د ښځې پلو اچول او د ننواتې منل هم د پښتنو یو خصوصیت دی ، خو ځوانمردي او ناځوانمردي دوه بېلابېلې خبرې دي . البته په ملي تاریخ کې لویه تېروتنه وه . د ملي تاریخ په اوږدو کې نصیر خان بلوڅ د احمد شاه بابا په مقابل کې ښورښ وکړ ، مگر کله چې

نصير خان بلوڅ پوخلا شو ، نه يوازې چې پخپله نصير خان بلوڅ پر خپل قول صادق وو ، بلکې دده اولاد هم وفادار پاتې شو . نه يوازې وفادار پاتې شو ، ان نصير خان د هند په جگړه ييز سفر کې داسې کارناموې وکړې ، چې که دی نه وای پخلا يا احمد شاه بابا دده پخلاتوب نه وای منلی ، لوی زيان به ملي تاريخ ته اوښتی وای . دغه مهال انگليسان هم د روحانيونو په جامه کې او هندي مياگان ، لکه ميا غلام محمد هندی افغانستان ته رالېږي او د اسلام پرده يې پر مخ اچولې وي . تاريخ پوهان وايي ، چې شاه زمان غوښتل ، چې مرکزي حکومت پياوړی کړي ، قومي مشرانو نه کار واخلي ( دندې ورکړي ) او ماهرو خلکو ته هم دندې ورکړي . په دې مهال يو شمېر قومي مشران په دې فکر کې شول ، چې د شاه زمان پر ځای بل څوک د افغانستان د پاچاه په توگه وټاکي . خو دغو مشرانو وضعه د خپلو شخصي گټو پر بنسټ سنجوله او هغه بدلون چې په هند ، ايران او اروپا کې راغلی وو ، په هغه نه پوهېدل ، نو ځکه يې دغسې له خطره ډک گام پورته کړ . يا په بله وينا ملي شعور کمزوری وو . کله چې د شاه زمان پرضد دغه دسيسه کشف شوه ، نو د هغې مشران اعدام شول ، چې په هغو کې سردار پاينده خان هم وو . وروسته د پاينده خان زامنو ، په تېره بيا وزير فتح خان ، چې چلباز او بې پښتو سړی وو ، د تيمور شاه زامن د پادشاهۍ په تمه استعمال کړل او ورونه يې سره وجنگول ، چې په پايله کې د محمدزو بې غيرته کورنۍ منځته راغله ، چې يو يا دوه کسه به يې ښه خلک ول . په ۱۷۹۳ ز کال کې نصير خان بلوڅ ، چې يو مجرب ، ځوانمرد او مهربانه سړی وو ، سپين ږيری شوی وو . شاه زمان پېښور ته ولاړ او هلته يې واورېدل ، چې دده بل ورور همايون پر کندهار بريد کړی . د بخارا امير شاه مراد بلخ ته ننوتی ، کله چې شاه زمان بېرته کندهار ته ولاړ ، همايون هرات ته وتښتېد او له بل ياغي شاهزاده محمود سره يو ځای شو . کله چې شاه زمان کابل ته راغی ، نو د بخارا سفير د عذر لپاره ورته راغی . . شاه زمان په دوو کلونو کې لوی افغانستان تامين کړ . په ۱۷۹۵ ز کال کې . شاه زمان يو ځل بيا د هند په لور وخوځېد ، ددې لپاره چې انگرېزان له هغه ځايه وشړي . بيا خبر شو ، چې آغا محمد خان قاجار ايراني پادشاه نيشاپور او مشهد ته ننوت ، نو دې ته اړوت چې بېرته راوگرزي . په ۱۷۹٦ کال کې بيا پېښور ته راغی . په همدغه کال لاهور ته ننوت ، په ۱۷۹۷ ز کال کې شاه زمان په لاهور کې وو ، چې د هند د پاشاه شاه علم ليک ورته راغی او ده ته يې بلنه ورکړې وه ، چې هندوستان ته تشريف راوړي . شاه زمان انگيسانو ته خبر ورکړ ، چې دی غواړي هندوستان ته له سل زره کسيز لښکر سره ننوزي ، نو دوی دې په شاه ولاړ شي . له بده مرغه په دغسې يو تاريخي شېبه کې له افغنستان نه ورته خبر راورسېد ، چې محمود بيا باغي شوی . دغه مهال شاه زمان په دې پوه شو ، چې که چيرې يې مخکې ځل دده او دده د مور عذر نه وای منلی ، دغه بدمرغي به نه وای ورپېښه

شوي . نو شاه زمان بیا د هندوستان د ټولو هغو خلکو هیلې ، چې په انګرېزي لومو کې نښتي وو ، خاورې کړې او د خپل احمق ورور او نورو خاینو خلکو د کرارولو لپاره راوګرزېد . په دې وخت کې د ایران پادشاه آغا محمد خان قاجار مړ شو او دده زوی فتح علي شاه یې پر ځای پاچا شو . محمود او دده زوی کامران ایران ته پناه یووړه ، د ایران پاچا د دوی هرکلی وکړ . کله چې شاه زمان هرات ته ورسېد ، نو ایرانیانو د خراسان ولایت ، مشهد او نیشاپور خوشي کړي ول . شاه زمان بېرته د افغانستان له خوا هلته واکمنان وټاکل . پخپله بېرته کابل ته راستون شو ، ددې لپاره چې د هند په لوري وخوځیږي . دی لا په کابل کې وو ، چې محمود له لس زره ایراني ځواک او نورو خپه شویو بارکزو او الکوزو په مرسته پر هرات او فراه برید وکړ . خو د هرات مدافعینو د قیصر او زمان خان په مشرۍ هغوی مات کړل . دا پلا محمود بخارا ته وتښتېد او هلته یې پناه واخیسته . له هغه ځایه خوارزم او بېرته ایران ته ولاړ او هلته یې هرکلی وشو . مطلب دا چې . شاه زمان د ایران ، انګلیسانو او سیکهانو له ګډو عملیاتو او تېریو سره هممهال مخامخ وو . کورنیو خپلچارو او جاهلانو تر ټولو بد او خطرناک حالات رامنځته کړل . اتل . شاه زمان اته کاله پر اس سپور له پنجابه تر نیشاپوره منډې وهلې .دومره پیاوړې سوق او اداره په تاریخ کې ساری نه لري . ملي تاریخ د لوی افغانستان د سولې او امن د تامین په لاره کې دده پر دغو هلې ځلو افرین وایي او دده پر کورنیو مخالفینو لعنتونه . د ۱۷۹۸ ز کال د اکتوبر په میاشت کې شاه زمان بیا لاهور ته راغی . دا پلا سیکهانو هم اطاعت وکړ . د انګیسانو استازی میرزا مهدي علي د انګلیس حکومت ته لیکي : (( د ایران په مرسته مو شاه زمان دومره مشغول کړی ، چې لږ تر لږه تر دریو کلو پورې پر هند حمله نشي کولای . )) په دې وخت کې بیا خبر راغی ، چې د ایران پادشاه فتح علیشاه او محمود بیا د خراسان ولایت ته ننوتلي . د ۱۷۹۹ ز کال په سر کې شاه زمان له لاهور نه پېښور ته راغی ، چې د ایران ددفعې لپاره ولاړ شي . ایرانیانو منظم عسکر او ښه وسله نه درلوده ، خو شاه زمان منظم عسکر ، توپخانه او ښه وسله درلوده ، انګرېزانو ایران ته خپل سلاکاران ورلېږلي ول او هغوی یې دغې حملې ته هڅولي وو. افغاني لښکرو د ایران پادشاه بیا په شاه وتمباوه . میا غلام محمد هندي د اسلام په جامه کې په کندهار کې اوسېده او دانګرېزانو پټ سړی وو . ده دا هڅې کولې چې د شاه زمان پرضد د یوې بلې دسیسې کار ترسره کړي . پاینده بارکزي ، عظیم الکوزي ، نورالله بابري ، اسلام پوپلزي ، حکمت سرکاني ، سلطان نورزي ، خضر علیزي ، زمان پوپلزي ، جوانشیر ارسلان ، جعفر جوانشیر ، شریف قزلباش ، د میا غلام محمد هندي په کور کې د شاه زمان د راپزولو دسیسه جوړه کړه . دغو افغانانو د هندوستان د خلکو د خلاصون ، د لوی افغانستان د تامین او د ایران د دسیسو فکر ونه کړ او د یوه

فعال او نه ستړي کېدونکي پادشاه پر وړاندې راپورته شول . انګيسي سر جان ملکم په ايران کې ناست وو او د ايران د پادشاه سلا کار هم دی . شاه زمان دسيسه کوونکي اعدام کړل . پرنس ملکم خان ارمني ليکي : که دغه مصيبت افغانستان ته نه وای ، چې افغانستان يې په وينو کې ډوب کړ او که ايران د انګيسانو په چالونو پوهېدای ، هندوستان او ختيځ د انګيسانو له ښکېلاک څخه خلاص شوی وو او شاه زمان پرته له بهرنۍ مرستې نه دا توان درلود چې په يوازې ځان د انګرېزانو بېخ او بنياد وباسي . پورتنی مطلب او نور انګيسي مدارک د قاضي عطاوالله (( د پښتنو تاريخ )) په کتاب کې راغلي ، چې غبار ، فرهنګ ، رښتيا او نورو ليکوالو له هغه څخه نقلا ځينې برخې رااخيستې دي . ملکم په خپلو ليکونو کې خوشالي ښيي ، چې افغان قومي مشران د هغې دسيسې په اثر ، چې د ميا غلام محمد هندي په وسيله ترتيب شوې وه ، وژل شوي او اوس ټول اړوند خلک د شاه زمان پرضد پاڅېدلي دي . مالکم په يوه ليک کې ليکي : د انګليس د ګټو لپاره د خراسان ولايت بايد خپلواک وي او که چيرې د افغانستان يا ايران تر لاس لاندې وي ، نو ايران تر افغانستان ښه دی ، ځکه چې د ايران د پادشاه ځواک د افغانستان د پادشاه تر ځواکه ډېر کم دی . په بل ليک کې ليکي : شاه زمان په هند کې د انګيسي واکمنۍ يو پياوړی دوښمن دی او دی کولای شي ، چې بې له بهرنۍ مرستې نه پر هندوستان ورودانګي . په بل ليک کې ليکي : (( د هندوستان د نيولو په برخه کې هېڅ يو شی د شاه زمان مخه نشي نيولای ، پرته له دې چې دده په ملک کې نفاق پيدا شي او شاه زمان موقع ونه مومي ، چې له هند څخه انګرېزان وشړي )) . بل ځای ليکي : (( افغانان تر نورو اسيايي خلکو مغرور ، کبرجن او کينه ناک دي )) په بل ليک بيا داسې ليکي : له اوسسنيو حالاتو داسې ښکاري ، چې سږ کال او بل کال به د افغانستا له پلوه کوم خطر هندوستان ته متوجه نه وي ، ځکه محمود له خراسان څخه د کندهار په لوري خوځېدلی او د کندهار شاوخوا سيمې يې نيولې ، ناراضي دراني مشران له محمود سره يو ځای شوي او شاه زمان د ژمي له واورو نه کندهار ته نشي تللای . د ايران پادشاه ژمنه کړې ، چې تر هغې به پر خراسان حملې کوي ، چې شازمان مصروف وساتل شي او پر هندوستان د حملې فرصت پيدا نه کړي . د داراني مشرانو نفاق او اختلاف يو ښه وخت مساعد کړی چې ايران افغاني خراسان ونيسي . د ملي تاريخ لوستونکي اوس پوهېدای شي ، چې په ملي ګټو نه پوهېدل څومره خطر لري او موږ يې څنګه تباه کړي يو !!! له دغو پېښو نه مخکې شاهزاده همايون هم د مرکزي دولت د مخالفت او ياغي کېدو په وجه ړوند شوی وو . که څه هم نصير خان بلوڅ دده شفاعت وکړ او شاه زمان وبابښه ، خو بيا هم په بغاوت سر شو . په کال ۱۷۹۶ ز کې د ډيلي سفير سيد محمود د شاه زمان حضور ته راغی او شاه زمان د ډيلي د پادشاه يو لړ اجراات وکتل او په دې ترڅ کې يې د

هند د ولیعهد تصدیق هم وکړ. دغه وخت د سردار پاینده خان زوی فتح خان ایران ته وتښتېد او له یاغي محمود سره یو ځای شو. سردار پاینده خان د میا غلام محمد هندي په دسیسه کې اعدام شوی وو. د. شاه زمان ټول پوځ سل زره سپاره او نور پیاده بلل کېدل. لوی افغانستان د اسیا لوی طاقت د انګلیس، ایران، شاهزادګانو او سردارانو د شومو هدفونو ښکاري کېږي. {...} نه وزیر فتح خان وزیر باتدبیر وو، نه دوست محمد خان امیر باتدبیر، نه عبدالرحمان خان سیاست پوه. ټول یو شمېر هرزه برزه او بې کفایته مخلوقات وو. ملي تاریخ به هر هغه څوک محکوم کړي، چې له بهرنیو هېوادو نه د سیاسي قدرت د اخیستلو لپاره مرسته وغواړي. شاه زمان خپل سفیر د ایران پادشاه ته واستاوه، چې د محمود او نورو شاهزادګانو له حمایې نه لاس واخلي او د ایران پادشاه هم ومنله، ځکه چې وزیر رحمت الله خان (وفادار خان) ویلي، چې د افغانستان لښکر له هر ډول پېښې سره مقابلې ته چمتو دی. . شاه زمان له هراته بېرته کندهار او کابل ته راغی. کابل ته خبر راورسېد، چې محمود او تښتېدلي دراني سرداران د ایران په مرسته پرته له دې، چې خراسان او هرات ته ولاړ شي، د ترشیز له لارې فراه ته راغلی او بیا کندهار ته نږدې شوي دي او د کندهار سرلښکر مهرعلي خان د هغوی مقابلې ته وتلی او دومره جنګېدلی، چې شل ورځې یې خاینه اردو پخپله ځای درولې وه. خو دننه په ښار کې چمکار خلک پیدا شول. مهر علیخان مخکې تر دې چې کندهار پرېږدي، په لنډه موده کې یې دوه خاینان حسن خان او امام بخش اعدام کړل. شاه زمان د کندهار خواته روان شو، خو انګلیسي او ایراني جاسوسانو بد تبلیغات پیل کړي ول. له بلې خوا د محمود لښکر ډېر او یو موټی شوی وو، ځکه چې د پاینده خان له وژلو وروسته دراني سرداران د محمود ملګري ول. دغه سرداران په ملي کچه د خپلو اعمالو په نتیجه نه پوهېدل، چې څومره خطرناک کار کوي. هغه وو چې شاه زمان بېرته کابل ته راغی، ددې لپاره چې پېښور ته ولاړ شي او یو ښه لښکر برابر کړي. نو شاه زمان، چې یو هوښیار او مدبر سړی وو، له ډېر لږو کسانو سره د پېښور په لور وخوځېد. کله چې شینوارو ته ورسېد د ملا عاشق په کلا کې، چې یوه لویه کلا وه، د دمې جوړولو لپاره پاتې شو. شاه زمان ولیدل، چې د خاین عاشق په کلا کې بندي دی او د کلا شا وخوا ټوپک والا خلک ولاړ دي. دا مهال محمود کابل ته ورسېد او د شاه زمان له ایسارېدو خبر شو. له کابل نه محمود خلک ولېږل، . شاه زمان یې ونیو لومړی یې دده سترګې ړندې کړې بیایې بندي کړ. په لوی افغانستان کې تیاره شوه. د. شاه د سترګو له رڼا سره یو ځای د لوی افغانستان برم ولاړ. د کابل فتح د محمود او دراني سردارانو له خوا د نیشاپور، مشهد، اسفزار او نورو سیمو په بیه تمامه شوه، چې د ایران لاس ته ورغلې. دا

هغه لومړنی لوی خیانت وو ، چې د احمد شاه بابا له روح او اخلاقو سره وشو ، له دغې نېټې نه وروسته لوی افغانستان مخ په ځوړ روان شو او بربادي پیل شوه .

## د شاه زمان وروستی احوال

اوس تاسو یوه پلا بیا . شاه زمان وګورئ ، بیا ورسره خدای پاماني وکړئ . په ۱۸۰۸ ز کال کې د انګلیسانو یو لوی پلاوی د الفینستن په مشرۍ له ډیلي نه پېښور په لور وخوځېد ، چې د الفینستن په قول د افغان مغرور پادشاه (کاشکې تر پایه مغرور پاتې وای ) وګوري او د ناپلیون د نقشو په اړه خبرې ورسره وکړي . دا چې پلاوی د لوی افغانستان حدودو ته داخلېږي ، تر دغه وخته پورې یوازې د خراسان ولایت له لاسه وتلی وو او نوره امپراتوري لا شته او د شاه شجاع لومړۍ دوره پاچاهي ده . پادشاه هم په پېښور کې دی . الفنستن داسې لیکي : د ۱۸۰۹ ز کال د جولای په لسمه مو له شاه زمان سره وکتل . د شاه زمان لیدنه د پادشاه تر لیدني موږ ته لږ په زړه پورې نه وه . شاه زمان یو وخت په هندوستان او پارس کې د لوی نامه او اعتبار خاوند وو . دی مو په داسې حال کې ولید ، چې په خېمه کې یې غالۍ او لیمڅي هوار وو . شاه زمان پر یو لوی کوچ ناست وو . موږ ده ته مخامخ تر هغو ولاړ وو ، چې ده د کېناستلو اجازه راکړه . دده لباس ساده او ارت بې لستوڼو کوټ یې اغوستی وو ، چې وربښمین ګلان پرې ګنډل شوي ول . پر سر یې توره لونګۍ وه . څېره یې ډېره شاهانه وه ، دغه وخت دی څلوېښت کلن ښکارېده . غږ او حرکت یې جګ او منظم وو . اوږد مخ او ښکلې ږیره یې درلوده . دده څېره په هېڅ صورت یوه ړانده ته نه پاتې کېده ، سره له دې چې سترګې یې ژوبلې وې ، خو بیا هم توري بړېښېدلې او دده څېرې ته یې تازه ګي ښښله . کله چې به چا ورسره خبرې کولې ، مخ به یې هغې خواته اړاوه . دده څېره غمجنه او له خپګان نه ډکه وه . کله چې موږ کېناستو ډېره چوپتیا خپره شوه . خو ده پخپله چوپتیا ماته کړه او د شاه شجاع د بدبختیو په باب یې خبرې وکړې او د شرایطو د ښه کېدو هیله یې وکړه . دا و د نومیالي پادشاه یو اخري انځور چې ومو لید . د شاه زمان وروستۍ خبره ، چې دی زوړ ، ړوند او ناتوانه وو داده : (( پادشاهي بې تورې او توره بې هدفه نه وي )) . د لوی افغانستان نومیالی امپراتور . شاه زمان په ۱۸۴۴ ز کال کې ومړ او په سرهند کې خاورو ته وسپارل شو .

اخځونه

- [۱]
- قدرت الله حداد ( فرهاد ) ، د افغان ملي تاریخ ، ۳۷۹ - ۳۸۰-۳۸۷ ، ۳۹۰-۳۹۱ ، ۳۱۳ - ۳۱۴ مخونه ، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا د مرکز د ۱۳۸۳ لمریز کال چاپ .

## شاه محمود سدوزی

شاه محمود سدوزی د . تیمور شاه زوی په ۱۷۶۹ ز کال کې زیږیدلی دی . ده له خپل ماما وزیر فتح خان سره په ګډه او د ایرانیانو په مرسته د نومیالي پادشاه . شاه زمان پر ضد دسیسې جوړې کړې .

ایرانیانو هروخت زموږ دهیواد په تجزیه ،کورني جنګ مذهبي یرغل جاري ساتلي ښاغلي شاه محمود ډیرزر ناکامه کیدو علت دپردیوپه لاس اومهار راتلل وچي ملت هیڅ وخت داسي کړیو او سړیو ته وخت نه دي ورکړي ده نه یوائې دپردي مداخلي په مټ دهیواد پاچاهي ترلاسه کړه بلکي د ۱۸۰۰۱ ز کال د جولای په ۲۵ یې . شاه زمان ، چې دده ناسکه ورور وو ، لومړی ړوند کړ ، بیا یې بندي خانې ته واچاوه ، دی پخپله د افغانستان پر پلاز کښیناست . دده لومړی دوره واکمني تر ۱۸۰۳ پورې دوام وکړ .

دهیواد دلاس پټ لړی له دې څخه رواج پیدا کوي چي لاتراوسه دوام لري چي دواک لپاره دکوم ملک سره خبره وکړي دهغوي دمنافع په ترلاسه کولوکې دوي واک ته ځان رسوي له ده نه وروسته دده بل ناسکه ورور شاه شجاع د افغانستان پر پلاز کښیناست . شاه محمود سدوزي دویم ځل په ۱۸۰۹ ز کال کې د افغانستان پادشاه شو او په ۱۸۱۸ ز کال کې راوپرزول شو . دی په ۱۸۲۹ ز کال کې ومړ .

اخځنی : قدرت الله حداد ( فرهاد ) د افغان ملي تاریخ .

## شاه شجاع



شاه شجاع د . تیمور شاه زوی د ۱۷۸۵ ز کال د نوامبر د میاشتې په ۴ زیږېدلی دی . دده لومړنۍ دوره پاچاهۍ په ۱۸۰۳ ز کال کې د شاه محمود سدوزي له واکمنۍ نه وروسته پیل کیږي او تر ۱۸۰۹ ز کاله پورې دوام کوي . په ۱۸۰۳ ز کال کې د کابل ، لوګر ، کلات او غزني غلځیو په ګډه شاه شجاع ته بلنه ورکړه ، چې کابل ته راشي . دغه مهال وزیر فتح خان په پېښور کې وو . په پایله کې شاه محمود سدوزی یا یاغي محمود خلع شو او شاه شجاع د محمود له درې کلنې واکمنۍ نه وروسته پادشاه شو . خو د لوی افغانستان د خراسان ولایت ، نیشاپور او مشهد له لاسه ووتل . وزیر فتح خان چې حالات داسې ولیدل ، نو له پېښوره کندهار ته ولاړ او هلته د محمود له زوی کامران سره یوځای شو . شاه شجاع چې دا مهال د افغانستان پاچا شوی وو ، نو یې جنرال احمد خان نورزایي کندهار ته واستاوه . ملا عاشق یې کابل ته راوغښت . د کوه نور الماس چې دده په کور کې شاه زمان اېښی وو ، هغه یې څنې واخیست او عاشق یې مړ کړ . وزیر فتح خان له شاه شجاع څخه ښښنه وغوښته او هغه هم وبانښه . کابل ته راغی ، خو کله چې شاه شجاع پېښور ته ولاړ ، فتح خان کندهار ته وتښتېد او شاهزاده قیصر ، چې د کندهار والي وو ، هغه یې راوپاراوه ، چې ځان پادشاه اعلان کړي او هغه هم دا کار وکړ . کله چې شاه شجاع کندهار ته متوجه شو ، فتح خان بیا وتښت او قیصر ته تسلیم شو او بېرته د کندهار د والي په توګه وټاکل شو . د شاه شجاع لومړۍ دوره تې یوې اندازې پورې ښه تېرېږي ، خو دده دویمه دوره او هغه تړون چې دده ، رنجیت سینګه او انګلیسانو تر منځ ، چې د لاهور د درې اړخیز تړون په نامه یادیږي ، د ملي تاریخ یوه ډېره بد مرغه مرحله ده .

## شاه شجاع او د لاهور تړون

په ۱۸۰۹ ؟ کې شاه شجاع په لاهور کې وو او په کابل کې هماغه یاغي محمود یا شاه محمود سدوزی د وزیر فتح په مرسته د دویم ځل لپاره پر پلاز کښېناست . شاه شجاع ددې لپاره چې محمود له پښتو وغورځوي او پخپله پادشاه شي نو د لاهور تړون یې داسې ورسره لاسلیک او ومانه ، چې کشمیر ، اټک ، چچ هزاره کېمبل پور ، پېښور ، هشنغر ، کوهاټ ، هنګو ، ملتان ، ډېره غازي خان ، ډېره اسماعیل خان یې د تل لپاره له لاسه ورکړل او رنجیت سېنګه او دده وکیلان چې هره پرېکړه د سند په اره وکړي ، نو شاه شجاع به هغه مني . د لاهور په تړون کې شاه شجاع ته شاه ویل شوي وو ، خو له دې

وروسته پادشاهان د جناب ، والي کابل یا امیر په نامه یاد شوی او د ولی افغانستان د پوره له منځه وړلو لپاره یې کار پیل کړی او دغه حکم له لندن نه راغی ، چې افغانستان باید د نړۍ له نقشې نه وایستل شي لکه اوس چې دښاغلي کرزي په دورکې بیا داپلان عملي کیدونکی دي ،نوخدایزده چې پاکستان به په ټوټوووېشي اوکه دواړه په هرصورت د افغانستان خلکو دا مقاومت وکړی چې افغانستان د نړۍ په نقشه کې پاتې شي ،خو ددې ځومخورو غازیانو په میړانه اونه دشجاع په غلامي اودا زموږ دهیواد دمظلومیت اومغلوبیت ډیره اساسه اوتلپاته دوره بللی شو بس له همدې ورځی غلامي په هیواد کې یورسمي بڼه غوره کړي چي لاتر اوسه هیڅ عار اوپیغور نه دي .

## د غازیانو قیام

په ۱۹۴۱ ز کال کې مکناټن شاه شجاع ته یو لیک واستاوه ، چې د کابل نور افغاني مشران په یوه پلمه خپل ځنګ ته دروغواړه ، بیا به دوی ټول ونیسو ، زه به یې هندوستان ته بوزم او ستا پاچاهي به کراره شي . شاه شجاع د مکناټن د لیک ځواب ور نه کړ ، خو افغان مشران یې لکه عبدالله خان اڅکزی ، امین الله خان لوګری ، عبدالسلام خان پوپلزی ، سکندر خان ، نواب زمان خان ، محمد شاه خان بابکر خېل ، میر حاجي او نور مشران یې وروغوښتل ، دوی ته یې د منکناټن نیت څرګند کړ او د ځان له پلوه یې دا اختیار ورکړ ، هر ډول ګام چې دوی ښه ګڼي هغسې دې یې اوچت کړي . دوی د شاه شجاع له درباره ووتل ، د شپې د کابل په یوه کور کې سره جرګه شول او یو لړ پرېکړې یې وکړې . دوی دا سره وټړله ، چې په ګډه به ملي پاځون ته تیاری نیسي او د هېواد ګوټ ګوټ ته به خبر ورکوي چې دتکبیرچیغه یې هم دازادۍ رنګ وړی . دوی دا پرېکړه هم وکړه ، چې ډېل به کوي ، څو د انګرېزانو له خوا یو نوی تېری وشي ، هماغه به پلمه او د یون اوپاځون کولو بنسټ وګرزوو او په پاک قران یې لوړه سره وکړه . رابرټ برنس ، چې د کابل والي دی ، په انګلیسي او هندي ښځو مور وو . یوې کابلۍ ته یې هوا شوې وه ، چې د خپلو اړیکو په لاره یې د عبدالله خان اڅکزي یوه مینځه وموندله . کله چې غازیان د یوې پلمې په انتظار کې ول ، نو دا یوه ښه پلمه په لاس ورغله چې غزا پیل کړي . غازي عبدالله خان د نوامبر په دویمه د سهار لومنځ وکړ او د نورو غازیانو په سر کې په شنه سهار د برنس کلا ته ورسېدل . د برنس ساتونکي یې وووژل او کورته وردننه شول . دوه انګلیسي، دوه هندي او یوه ې هماغه ښځه ونیوله او ویې وژل . برنس په مقاومت لاس پورې کړ ، خو ډېر ژر د غازیانو په لاس ورغی او د کوره د باندې یې د پارېدلو غازیانو ډلې ته وروغوځار کړ . دده مرستیال ، خزانه دار او نوکران د غازیانو په لاس ټوټې شول . غازیانو د کابل د ښار اوسېدونکي

انګرېزان يو په بل پسې ونيول . د انګرېزانو له چاونۍ نه منظم لښکر راغی ، خو افغاني زمريانو د سوی د غوښې په شان وشيرل . شاه شجاع له بالاحصار نه په دوربين کې دغه ننداره کوله او له سترګو يې اوښکې بهېدې ، چې زه څه بد مرغه وم ، چې دغسې ننګيالي ملت ته مې انګرېزان راوستل...د کوهدامن ، چهاردهي ، لوګر ، ميدان او نورو شاه وخوا سيمو غازيان راتلل او عبدالله خان اڅکزي ته يې داد ورکاوه ، چې جګړې ته دوام ورکړي . شاه شجاع له دې نه مخکې افغاني غازيانو ته ويلي وو ، چې زه په دغسې يو چال کې نښتی يم ، خو د غازيانو لپاره له خپلې خزانې څخه خرڅ ورکوم . په داسې حال کې چې غزا روانه وه ، غازي عبدالله خان ټپي شو . نور غازيان او کابليان پرېشانه شول . مورخ احمد علي کهزاد ليکي ، چې عبدالله خان په ټپي حالت کې پر اس سپور شو او د کابل په ښار کې وګرزېد ، ددې لپاره چې غازيان نور هم تشويق شي . کله چې عبدالله کور ته راغی ، نو د شپې يې ساه ورکړه او شهيد شو . دده جنازه د چهاردهي په قلعه سرخ کې پر يوه غونډۍ دفن کړای شوه . د جنازې تر خښولو وروسته ملا مومن غلزی ، امين الله خان لوګری ، شمس الدين بارکزی ، ګل محمد خان ، عبدالعزيز خان ، محمد شاه خان بابکرخېل ، سکندر خان باميزی او عبدالسلام خان پوپلزی سره جرګه شول او د غزا د دوام پرېکړه يې وکړه . د ۱۸۴۱ ز کال د نوامبر د دويمې نېټې ملي پاڅون دې حالت ته ورسېد ، چې انګرېزان خبرو ته حاضر شوي او وتلو ته چمتو شوي وو . د دوی وسله او توپخانه هم د غازيانو لاس ته ورغلې وه . پاچا او شاهي کلا هم د غازيانو په لاس کې وه ....له هندوستان څخه نوې لښکرې راوخوځېدې ، چې د بخارا پادشاه سردار اکبر خان ته اجازه ورکړه ، چې هېواد ته راشي . امير دوست محمد خان چې د کوهستان او کاپيسا بريالي غازيان يې پر ميدان پرې اېښي وو او پخپله مکناټن ته تسليم شوی وو ، دا مهال په هندوستان کې وو او انګرېزان له ده سره هم د خبرو په حال کې ول . مورخين وايي ، چې امير دوست محمد د غازيانو له سترو برياليتوبونو نه ښخي ناخبره وو او دی د پادشاهۍ دومره لېوال وو ، چې ده او نورو سردارانو هېڅکله د ملت توره په نظر کې نه ده نيولې . د سردار اکبر خان په رارسېدو سره مشران خوشاله شول او دی يې خپل مشر ومانه او يو ګټلی ميدان يې ده ته وسپاره ، خو د اکبر خان ټول حرکات ددې لپاره وو ، چې خپل پلار بېرته پر پلاز کښېنوي . ټولو ملي مشرانو دده ټود هرکلی وکړ . سردار اکبر خان په حالاتو پوه وو ، چې انګرېزانو پوره ماتې خوړلې ده ، نو يې په داده زړه مکناټن ته ليک واستاوه او د خبرو اترو غوښتنه يې وکړه ....

## د شاه شجاع مړينه

له بلې خوا شاه شجاع د پخوانيو دبدو په حساب خواشيني مالومېده ، نو شاه شجاع د نايب امين الله خان لوګري پر خوا د ډېره پاملرنه کوله ، چې دغې پاملرنې د بارکزو سردارانو خوا بدوله . دا خبره هم د مکناټن په ګټه وه ، خو ورستيو پېښو موضوع بل ډول کړه ، چې ان د شاه شجاع سدوزي په مرګ تمامه شوه . د نواب زمان خان زوی شجاع الدوله ، چې شاه شجاع سدوزي خپل نوم پر هغه اېښی وو ، شاه شجاع سدوزی پر هغه ورځ وواژه ، چې شاه شجاع له انګيسانو سره د جګړې لپاره چمتو شوی وو او له هغه لښکر سره ، چې د کابل په سياه سنګ کې د جلال اباد په لور د حرکت په حال کې وو ، وخوځېد . شاه شجاع ناڅاپه د ځينو جوهراتو په فکر بالا حصار ته ولاړ او چې بېرته لښکرځای ته راستنېده ، شجاع الدوله له خپلو لښکرو سره برید پرې وکړ او هغه يې وواژه . هغه پروګرام ، چې د غزا لپاره دا مهال شتون درلود ، هغه معطله شو ؟.

اخځنې :

۱. قدرت الله حداد ( فرهاد ) ، د افغان ملي تاريخ ، ۳۹۳ ، ۴۱۶ - ۴۲۰ مخونه ، د سايې د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز د ۱۳۸۳ لمريز کال چاپ .

## سلطان علي شاه

داحمدشاه با با څخه وروسته دده اووه زامن یو په بل پسې پاچاهان شوي هغه لکه : سلیمان، تیمور، زمان شاه، شاه محمود ، شاه شجاع، فیروز الدین اوکامران دوی اکثرو داقتدارپه سره جګړه کې یوبل وژلي یا ړندکړي له دوی وروسته چي کوم علي شاه او ایوب شاه راغلي دهغوي واکمنی محدوده چي ډیرتاریخ پوهان یې دسردارانو اوملکانو دځای واکمنیو ملوک الطوافی په ډول شمیر ،خودوي په وژنه سرفه نه دي کړي داوخت افغانستان دخپل منځني جګړو کوربه وو دی وخت کې دشاه زمان زوي دتیمورشاه لمسي علي شاه پاچا هي وه اما ډیره محدوده وه.

### ایا ریښتیا ددي وخت دبدمرغیو سبب دا شو:

تیمور شاه په کال ۱۸۹۳م کی په پیښور کی مریض او په کابل کی یې فوت وکړ، ویلی کیږي چي مرګ یې طبیعي نه وو، بلکی د حرم ښځو مسموم کړی وو، هغه د ډیرو زیاتو ښځو څښتن وو چي ۲۴ اولاده (زامن) یې د ځانه وروسته پاته وو. اته (۸) زامن یې د قدرت په راس کی وو، چي مشر یې د هغو نه همایون او کوچنی یې شاشجاع وو. تیمور شاه د ژوند په اخیریو ورځو کی هیواد پدی ډول باندی تقسیم کړو: قندهار یې خپل مشر زوي همایون ته، هرات یې خپل دویم زوي محمود ته، پیښور یې خپل دریم زوي عباس ته چي بیا هم واک دمحمود وو ، کابل یې خپل څلورم زوي شا زمان ته، غزني یې خپل کوچني زوي شاشجاع ته او کشمیر یې خپل بل زوي کهندل خان ته وسپارل.نودهمدي خودسریو واکمنیو اوتجزیو سبب داشوچي هیواد په خپل منځني جګړو کې ښکیل شو. 

## نوبیا

دا چي دصدوزو واکمني تغر تولیدونکي ښکاریدلو په همدي وخت کې ټول هیواد له کمشیره ترهراته فتني اومنځني جګړو واخیست سردار دوست محمد خان له کمشیره راستون سوا وکابل یی له محمود څخه ونیوي او محمود یې غزنی ته وشړلو عظیم خان هم په لومړی سر کې د دوست محمد خان مرست وکړه ،خوکابل ،هرات او قندهار بیلی واکمني لیدلي هرات لادصدوزو په واکمني کې ور چي صدوزو تر ۱۸۴۲ میلادي کاله پوري هلته واکمني وچلوله اوهراتیانو خپله واکمني له ایران اوروسي څخه هم وساتله.

اودکابل قندهار واکمني دعظیم خان اودوست محمد ترمینځ په کشمکش کې وه ؛ دوي یوبل سردار استعمالولو چي دهغه په وژلوبه یې دپاچاهي تاج ترلاسه کولو ،خودلته دصدوزو اوبارکزو ترمینځ شخړه گرمه وه هسې یې صدوزي ترلستوني نیولي وو ، خوواک ،ځواک دصدوزو وو لیکن په پای کې دایوب شاه زوی سلطا ن علي شاه ووژلو او ایوب شاه دیو څه مودي لپآره دده ځای ناست شو.

## ایوب شاه

ایوب شاه هم داحمد شاه بابا له لمسیانو څخه وو . لیکن هغه احساس چي له احمد سره بلعکس دوی یواځی دخپل سر ي واکمني یا ملوک الطوافی لاره خپله کړي ، دمحمد عظیم خان په پرلپسی تېنگار اولمسون چي ایوب خان یې دعلي شاه په وړاندي هڅاوو ،خودهمدي ځوني په بهیر کې ایوب شاه هم ددیرتېنگار لاملـه دي ته امده شوه چي دبغاوت په نتیجه کې یې د ۱۸۱۹ میلاد کال په اږدو کې خپله ځان دپاچا په توگه اعلان کړي.

البته دومره باید ووا یو چي ددې کورنی اشخاصو دهیواد واکمني یوه میروثي بللي وو او په خپلوکې یودبل په ضد سره راپارول ولي چي سلطان علی شاه هم دوست محمد خان راپارولي وو دوست محمدخان بیا دهمدي محمدعظیم خان په وړاندی دمقابلې هوډ درلود کوم چي یی اوس دعلي شاه په ضد ایوب شاه را وپاراوو اصلی کې جگړه ددوو سیالوډلوعظیم خان او دوست محمدخان تر مینځ ووچي سدوزی اوبل باریکزی وو ، خوبه هرصورت دایوب شاه زوي اسماعیل دیوه چریکي په ډول علي شاه ووژلو دوژلو سبب نه یواځی دایوب زوی عظیم خان وو بلکي دهند،ایران او انگریزانو دستوري اشخاص هم لیرنه وو.

دعلی شاه له ووژولو وروسته ایوب واکمن شو .خو دلته نوره هم جگړه دصدوزیو واکمنو ډلوټپلو ترمینځ ځای ناستو اشخاص ته رسیدله دایوب زوی اسماعیل دعظیم زوی حبیب الله خان هم سرونه سره راپورته کړل ولي چي دعظیم له تصادفی مړیني وروسته حبیب الله دخپل پلار دوزیر عظم په ځای وتاکل شو ،خو اسماعیل دخپل پلار دمرگ خطر احساسا وو چي په همدې بهیر کې حبیب الله او اسماعیل په خپلوکې سره په ضد شول ، امیر دوست محمد خان ددي موقع څخه په استفادي سره دقندهار له لوري پری حمله وکړه او پاچاهی یې ترې ونیوله .

لسم څپرکی

## امیر دوست محمد خان

### (دبارکزیود واکمنۍ پیل)

امیر دوست محمد د سردار پاینده خان زوی دی ، چې د بارکزی کورنۍ مشر وو ، او د ۱۷۹۳ ز کال د ډیسمبر په ۲۳ زیږېدلی دی . ( ځینې سرچینې دده د زیږېدو کال ۱۷۹۰ گڼي )



دده مشر ورور فتح خان هغه سړی وو ، چې له شاه محمود سدوزي سره یې یو ځای څو واره ایران ته پناه یووړه او د لوی افغانستان د نومیالي پاچا . شاه زمان پرضد یې دسیسې جوړولې .کله چې په ۱۸۱۸ ز کال کې شاه محمود سدوزي خپل ماما ، یانې د دوست محمد ورور فتح خان وواژه ، نو له شاه محمود سره د باراکزیو سردارانو اختلافونه زیات شول ، افغانستان ددوی ترمنځ ووېشل شو ، د هېواد د خاورې او ولس پر وړاندې داسې چلند کېده ، لکه د دوی شخصي ملکیت چې وي .

### فتح یا شاه فتح خان

فتح جنګ چې اصل نوم یې (      ) وو . دتیمورلمسي او د شجاع زوي وو   دشاشجاع دزوی فتح دوره په جګړو کې سرته رسیږي اوباریکزو یی هم پآچاهی ونه منله او له بلي خوا دده پلار شجاع هم دانګریزانو دیوه غلام په څیر دور دتاریخ توره دوره وو ؛ ولي چي شاه شجاع د لومړنۍ دوره پاچاهۍ په ۱۸۰۳ ز کال کې د شاه محمود سدوزي له واکمنۍ نه وروسته پیل کیږي او تر ۱۸۰۹ ز کاله پورې دوام کوي . په ۱۸۰۳ ز کال کې د کابل ، لوګر ، کلات او غزني وګړو په ګډه شاه شجاع ته بلنه ورکړه ، چې کابل ته راشي . دغه مهال وزیر فتح خان په پېښور کې وو . په پایله کې شاه محمود سدوزی یا یاغي محمود خلع شو او شاه شجاع د محمود له درې کلنې واکمنۍ نه وروسته پادشاه شو .. د شاه شجاع لومړۍ دوره تې یوې اندازې پورې بنه تېریده ، خو دده دویمه دوره او هغه ترون چې دده ، رنجیت سینګهـ او انګلیسانو تر منځ ، چې د لاهور د درې اړخیز تړون په نامه یادیږي ، د ملي تاریخ یوه ډېره بدمرغه مرحله ده خورا اندیښمن کړ وو کوښښ یی کاوه چې ځان ته بله لاره ولټوي ولي هیواد دغازیانو پآڅونو اخیستي وو .

په ۱۸۴۱ ز کال کې چي مکناټن شاه شجاع ته چي کوم لیک استولی وه ، چې د کابل نور افغاني مشران په یوه پلمه خپل څنګ ته دروغواړه ، بیا به دوی ټول ونیسو ، زه به یې هندوستان ته بوزم او ستا پاچاهي به کراره شي . خوغازیانو ته ده اطمینان ورکړي مګرغازیانو خپل کارته دوام ورکړي ته یې دوخت په کټلو سره داد ورکړي وو .خودلته دغازیانو پا څو اودسدوزیومنځني اختلاف اودباریکزیو ناخوښي دشجاع اودسدوزو وروستي کمبله په ټولیدوښکاره کوله . د نواب زمان خان زوی شجاع الدوله ، چې شاه شجاع سدوزي خپل نوم پر هغه ایښی وو ، شاه شجاع سدوزی پر هغه ورځ وواژه ، چې شاه شجاع له انګیسانو سره د جګړې لپاره چمتو شوی وو او له هغه لښکر سره ، چې د کابل په سیاه سنګ کې د جلال اباد په لور د حرکت په حال کې وو ، وخوځېد . شاه شجاع ناڅاپه د ځینو جوهراتو په فکر بالا حصار ته ولاړ او چې بېرته لښکرځای ته راستنېده ، شجاع الدوله له خپلو لښکرو سره برید پرې وکړ او هغه یې وواژه .

دشاه شجاع دمړيني وروسته دکابل په بالاحصارکي چي فوجي چاوني بلل کیده یوه عاجله غونډه وشوه ځني کارپوهانو داغوره کړه چي باید دده زوی فتح خان پاچاشي دشجاع دزوی په اعلان سره باریکزو نټه او بغاوت وکړي چي بالاخره داکبرله لوري دسیالوډلو ترمینځ روغه وشوه ، خوفاسی یومتل دي وائی چي ګورګ بچي ګورګ میشه ده له په پټه له انګریزانو سره خبره وکړه او له هغوی سره یوځای له هیواد ووتل .

اخځني : قدرت الله حداد ( فرهاد ) ، د افغان ملي تاریخ ، ۳۹۳ ، ۴۱٦ – ۴۲۰ مخونه ، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکزد ۱۳۸۳ لمریز کال چاپ .

درمیسر تاریخ <کهزاد ـــــ دافغانستان لنډ تاریخ . عبدالحی حبیبی .

# امیر شېر علي خان



امیر شېر علي خان (۲۱ د فبروري -۱۸۲۵، ۱۸۷۹) د ۱۸۶۳ زېږیز کال نه تر ۱۸۶۶ زېږیز کال پورې او وروسته بیا د ۱۸۶۸ زېږیز کال نه تر خپلې مړینې پورې د افغانستان پاچا وه. هغه د امیر دوست محمد خان، د بارکزیو د حکومت بنسټگر، دریيم ځوی وه.
امیر شېر علي خان که څه هم د امیر دوست محمد خان دریيم ځوی وه خو کله چې امیر دوست محمد خان مړینې ته نژدې وه نو داسې یې وصیت کړی وه چې د هغه د مړینې نه وروسته باید امیر شېر علي خان د هغه ځای ناستی شي. او همداسې هم د امیر دوست محمد خان د مړینې نه وروسته هغه د افغانستان پاچا شو، خو ډېر ژر بیا د هغه د مشر ورور امیر محمد افضل خان له خوا د پاچاهۍ نه گوښه کړای شو.

دامیرشیرعلی خان په اړه ښاغلی محمد کبیرویار په خپل کتاب ( له غوریانو تر درانیانو ) کې افغانستان درمسیرتاریخ چې دښاغلی غبار لیکنه حواله ورکوي اولیکي : کله چي په ۱۸۶۸ میلادي کال پوري په دې بریالی شو چي کابل پلازمینه ونیسي ،مگرهمدا مهال لا دانگریزي استعمار یرغلونو دوام درلود ، سره لدې چي امیر شیر علی خان دقضیی دحل او خلاصون کوشش کاوو تر څو دخت له زبرځواکونو سره دپرمختگ په تکل اړیکي ټینگي کړي په همدې نیت هندته لاړ او هلته یې دانگریزي استعمار له مخکښانو هریوه (وایسرای لارډ ما یو سره لیدنه کتنه وکړه او د دوستي اوښه نیت په درلودلو سره یې ورسره ژمني هم وکړي خو ددویم واکمن ( لارډ لټن ) په مشرکیدو سره ددې ژمنو او تړون اړخ بدل شو استعمارچیانو غوښتل چي دهند پولی دافغانستان شمال هندوکش ته ورسوي ، خو دنوي لارډ تکل داوو که یې ومني نوپاچا به وي اوکنه نو کوم بل داسی لاسپوڅي پاچا به غورکیږي چي انگریز ي استعمار ته یي سر ټیټ وي به هرصورت دشیرعلي خان تمه وخته اوبیا دروسانو دملاتړپه نیت ومزار شریف ته لاړ په دې وخت انگریزانو ۱۸۷۸ میلادي کال دنومبر میاشتي په ۲۱ نېټه په ډېر غورور سره بیا تیر پیل کړاو امیر هم دروسان دملاتړ په تکل هملته مړشو خو بیا رانه غلي ، خو دده زوی یعقوب خان چي دانگریزانو په لمسون دپلار په خلاف دتوطیې له لامله بندي او تازه له بند څخه خلاص شوي وو ، دسولې خبرې پیل کړي چي ددې خبرو په پایله کې د۱۸۷۹ میلادي کال دمۍ په ۲۶ نېټه دگندمک بدنام تړون لاسلیک شو

اویعقوب خان دانګریزي استعمار تولي هغه د سیسي چي زموږ دخاري ملي تمامیت په کې نغښتي وو دبرچي په زور ورسره ومنلي ، خوملت یې په وړاند دبغاوت سر را پورت کړی وو.

( خوله بلي خوا مرحوم حبیبی په خپل کتاب ( دافغانستان لنډ تاریخ ۳۱۷ صفحه ) کې لیکي چي انګریزانو دشیرعلي خان واکمني په رسمیت نه ده پیژندلي بلکي دهغه په وړاندي یې دده وروړ امیر افضل خان په پښورکې وساتلو چي بیا دیوجګړي په نتجه کې دي ګیر او دده زوی عبدالرحمن بخارته په تېښته بریالی شو. ) چي بلاخره دده دواکنمي دزوال سبب شو.

## امیر شیرعلي او دنوي تمدن پېر



په افغانستان کې چې امیر شېر علي خان په دوهم ځل لپاره پاچا شو ( ۱۸٦۸-۱۸۷۸م زیږدي ) په هېواد کې د نوي تمدن پیر پیل شو . په دغه پیر کې مطبعه هېواد ته راوړل شوه او په کار یې پیل وکړ . د شمس النهار اخبار د لومړي ځل لپاره خپور شو . د پوستي ډاګ غونډال فعاله شو او د پوست ټکټونه چاپ شول. همدا رنګه عصري لښکر یا پوځ جوړ شو چې ټولې پوځي اړتیا وې یې

پوره کولې . په همدې پیر کې په لومړي ځل باندې کابینه جوړه شوه او د مختلفو چارو لپاره د کار وېش او وزارتخونې جوړې او منځ ته راغلې او د کارونو د ښه والي لپاره د مسلکي کدرونو د روزلو لپاره یوه پوځي او یوه ملکي ښوونځئ پرانیستل شوې.


**اخځ :**

۱. Vogelsang ↑, Willem (۲۰۰۲). "War with Britain-۱٦". *The Afghans*. LONDON: John Willey & Willey-Blackwell, ۲۵۷ .pp .SOns, Ltd, UK.. ISBN ۹۷۸-۱-۴۰۵۱-۸۲۴۳-
.

۲. محمد کبیرویار په خپل کتاب (له غوریانو تر درانیانو ) کې افغانستان درمسیرتاریخ چي دښاغلی غبار لیکنه ده حواله ورکوي.

# امیر محمد افضل خان

(امیر محمد افضل خان ) ۱۸۱۱ - ۱۸۶۷ د امیر دوست محمد مشر زوی وو . محمد افضل د خپل پلار له مړینې نه درې کاله وروسته د افغانستان واک له خپل ورور امیر شېر علي خان نه ونیو . دده له مړینې نه وروسته امېر شېرعلي خان بېرته د افغانستان امیر شو

دسدوزو،محمدزی اوبارکزو اوهم هغه خپل منځي جګړو لادوام درلود دقدرت په سره یو ورور دبل وینو ته لاهمغه سي تږي وو افضل خان د دوست محمد په واکمني کې دهیواد شمال بلخ لوری ته واکمني چلوله تر ویوه بریده ددوست محمد خان دوصیت سره سم افضل خان دخپل ورور اطاعت هم منلو ،خو اعظم خان دیاغیانو دلګی جوړولي ترڅو دافضل په وړاند اووبه خړ کړي .له یوې خوا هیواد دتجزیو تر خطر لاندي ساه وهله له بل لوري څخه دقومي اوتربګني شاهي دورونو لړۍ یوې په بلې پسي دزوال لارې لټولي ،خوبلاخره دشیرعلي خان زوي داعظم خا ن سره یوځای شوي اودیوسترلښکرپه جوړولو یې افضل خا ن ته ماتي ورکړه او دي یې نظر بند وساتلو .
کله چي دافضل خان زوی عبدالرحمن خبرشو چي دپلارواکمني یې خپلو ترې نیولي نو لیځي راوغړلي د ۱۸۶۶ میلادي تراخیرو پوری یی بیرته دپلار واکمني ترلاسه کړه خو پلاریي تریوه کال پوري لاژوند اوبیا ۱۸۶۷ کال کې مړ شو.

# امیر محمد اعظم خان

امیر محمد اعظم په ۱۸۶۷ ز کال کې د امیر محمد افضل له مړینې نه وروسته د افغانستان پر پلاز کښېناست . دی څه کم او زیات یو کال پاچا وو . له ده نه وروسته په ۱۸۶۸ ز کال کې امیر شېر علي خان د افغانستان پاچا شو او امیر محمد اعظم له خپل وراره عبدالرحمان سره ایران ته وتښتېد .

کله چي دامیر افضل خان واکمني دیوه کال په موده سره ته ورسیده او دي په ۱۲۸۴ هجري کال کې مړشو نو له ده وروسته دده بل ورور امیراعظم خان دده په گدی کښېنستلو دي هم دنورو په څیر دلاسپوڅی څخه خالی نه وو ولي په پیښورکې هم دانگریزانو دغوړو وعدو په ورکولو سره دي ته هڅاوو چي په هیواد کې ناارمي او دانگریزي استعمار په گټه چلن باید ترسره کړي هغه وو چي په خپل پلان کې بریالی شو دهیواد ډیره برخه یی ونیوله له بل لوري عبدالرحمن دهیواد دشمال ولایتونه یی یو په بل پسی ورته فتح کړ اوبیا یی دکابل سره وتړل چي دواکمنی برخه یی پراخه شوه خودکندهار اوهرات سیمي لادشیرعلی خان په واکمنوپه



اعلیحضرت امیر محمد اعظم خان (۱۲۸۳ هـ ق)
S. M. Mohammad Azam Khan (1867)

لاس کې پاتي وي او کورنۍ جگړي لړۍ لاگرمه وه په همدي بهیر کې دشیرعلي خان ځواکونو دکندهار له لوري داعظم خان په لښکرو بری ور وړ چي په نتیجه کې یی کابل تری ونیوي او امیر اعظم خان او عبدالرحمن خان ایران ته په تېښته بریالي شول له څه مودي وروسته امیراعظم خان هلته مړشو او عبدالرحمن خان ته روسان (جنرال کوفمن) دعوت ورکړي او په تاشکند کې یې پنا ورکړه چي بیا هلته میشت شو .

## یعقوب خان



یعقوب خان دامیرشیرعلي خان زوي اودامیردوست محمد خان لمسي ووچي بارکزي خاندان یوه غلامه ځیره وه داهغه څوک دي چي دانگریزي استعمار ته یی سر ټیټ کړ او دگندومک په نوم تړون یي دهیواد اوملت پلورني په مقابل کې ترسر کړ، که څه هم دملت په ناخوښي اوداسعتمارتربرچي لاندي وو.

امیر شیر علي خان د دوه کاله انزوانه ورسته د خپل ځوي یعقوب خان سره په هرات کي لښکر تیار کړ کندهاریي ونیو او بیا د کابل په لور وخوځید په شش گاو کي د محمد اعظم او عبدالرحمن د لښکرو شره مخامخ شو پدي جگړه کي امیر بریالي شو محمد اعظم او عبدالرحمن خان د بنو له لاري هند ته وتښتیدل او بیا له هغه ځایه ایران ته والاړل. محمد اعظم خان څه وخت وروسته همغلته وفات شو او عبدالرحمن خان بخارا ته ولاړ او امیر شیر علي خان ددویل ځل لپاره پر تخت کیناست.

د امیو شیر علی خان تر مرگ وروسته د انگریزانو دوهم تیری لا پسې قوي شو او دا باید وویل شي چې پر افغانستان حمله کول اسان کار دی ولې دا ملک په قبضه کې ساتل ډېر گران کار دی ځکه افغانان هیڅ وخت په عنعنوي توگه خارجي زور او تیری نه شي زغملی. د امیر شیر علی خان مشر زوی یعقوب خان د لنډ وخت لپاره په کابل کی سلطنت وکړ او ده له انگریزانو سره د مې ۱۸۷۹ کال کې دگندمک تحمیلي تړون لاس لیک کړ او د دې تړون له مخې امیر په کابل کې د انگریزي حکومت سفیر ته غاړه کېښوده.

تر دې تړون وروسته د افغانستان زیاتې سیمې د انگریزانو په واک کې ورکړې شوې د انگریز د سفیر تر راتلو یوه نیمه میاشت وروسته بیا د پښتنو جزبات را وپاریدل او په ملک کې یوه عامه اله گوله پیل شوه او هغه مړ اوړ بیا را تازه شو او په نتیجه کې د انگریزانو سفیر ووژل شو او بیا محمد یعقوب خان د انگریزانو له خوا په ۱۸۷۹ کال د دیسمبر په میاشت کې بندي هندوستان ته ولیږل شو او په ۱۸۸۰م کال کې امیر عبدالرحمن خان پاچا شو. امیر عبد الرحمن خان په ۱۲ د نوامبر په ۱۸۹۳م کال په کابل کې د ډیورنډ لاین سرحدي پوله لاس لیک کړه او په دې توگه یې پښتانه سره بېل کړل.

## دګندمک تړون ته یوه لنډه کتنه

له مخکی لا امیر شیرعلی خان دانګریزانو سره دیو مطرح شوی فلان په عملی کولو سره ، سر ښور ولي وه خو دهغه واکمني نیمګړي شوه چي پر ځای يې يعقوب خان پاچا شو.

يعقوب خان د زوي اود لمسي وو.

ګندمک : ديوی سمی نوم دي ...

دګندومک تړون يعني لاس تړلي ملت او فروخت شوی هیواد ، انګریزانو ته دورسپارولو معنی ورکوله چي دانګریزي جنرالانو هر یوه جنرال براون او جنرل سرکیوناري له لوري څخه وو ،خو دهیواد له له لورې څخه دملت ناخوښه پآچا يعقوب خان وو دامعاهده د ۱۲۵۷ میلادي کال دمې دمیاشتي په ۲۶ نېټه په داسی حال کې ترسره شوه چي انګريزي لښکرې په سرحدي پولو کې ځای پرځای وي ملک دمحاصرې او اشغال ترسایه لاندې وو چي له هغومادو څخه يو شمېرعملي شوي په دې ډول وي :

(۱) لومړی ماده : دا دراتلونکی افغانستان اوبرتانيی د دوستي لومړی ورځ ده چي نوربه افغانستان دانګریزي امپراطوري په ولکه کې وي اوهریوبه متقابلي غوښتني مني . (۲) انګریزی استعمار خپله هرڅه بخښنه ددي تړون له مخي څخه کوي (يعني دتيري بخښنه به هم افغان ملت غواړي) (۳) ماده : افغان پاچا دنورهیوادونو سره اقتصادي ، سیاسي ،کلتوري اونورتړولنيزروابط دانګريزي استعمارچيانوله اجازي پرته نشي کولای. اوهمداډول ددې هیواد ساتنه اودفاع اوفوځي روزنه اودهغوي اړوند لوازم تر استعمارچیانو پورې اړه لري يعني سوله اوجګړه هم دانګريزانو په اجازه کیدای شي . ۶ ماده : دبرطانيي استاذی ددائمي موجوديت لپاره په افغانستان کې وي او افغان استاذي یا نمائيدګان به په مقبوضه هند کې وي ترڅو د دوستي روا بط او دفاعي نظام دټېنګښت سبب شی (۷) ماده : افغان پاچا او انګريزي استاذی به دمتقابل احترام او حقوقو مراعت ساتي .

ددوستي او اقتصادي چارو په موخه به انګريزان لوی سړکونه او لاری جوړوي يعني درغوني چاري به ورته کوي چي هغوي څخه یوه هم بل تړون دتلفوني اړيکو کرښه ده چي له اوسني پاکستان څخه به تر کابله پوري غزوي .

له هیواد څخه دوتلو تولي سرحدي پولي اولاري به انګريزانو ته سپاري ،ترڅو پاته انګريزي لښکروته دوتلو په وخت کې ورته مشکل نه وي ،لکه :لنډی کوتل .کوړک ،خيبر،سيال کوټ وغيره او څه نورې سرحدی پولي چي هغه هم دانګريزانوپه واکی وي ،خو وروستي ماده دا شوه چي امیر

صیب یعقوب خان به ئی په ډیره ایمانداري اومړوسترګومني چي مقابل کې .به دنورو تجهزاتو باوجود له پنځوتر شپږ لکو پوري پیسي هم ورکول کیږي لدې کرغیړن او ملت پروشي سودا وروسته ملک او اختیارئی دانګریزي جنرانو په لاس کې وو ددې تور تړون باوجود غازیانو دپاڅون انتظار ایستي دیو تصادف نه بلکي دیو مطرح شوي فلان له لارې په انګریزانو باندي دتکبیرپه چیغو دافغاني پوځیانو له لوري دیوپراخ پاڅون په ډول بلوا ورګډه کړه چي په نتیجه کې یې دانګریزي جنرال سرکیوناري په ګډون نوري انګریزی پوځیان هم ووژل شول او بلاخره د دوستي دابهیر مات شواو یعقوب خان هم دتښتي لاره خپله کړه نوره دانګریزي دوستي خیښي امیرعبدالرحمن خان ته پاته شوه اوهغه پاچاشو.

## امیرعبدالرحمن خان

**امیر عبدالرحمن خان** (۱۸۴۴یا ۱۸۴۰ز. - ۱د اکتوبر، ۱۹۰۱ز.) د ۱۸۸۰ څخه د ۱۹۰۱ کال پوري د افغانستان امیر پاتې شوی دی. د امیر محمد افضل خان دریم زوی او د دوست محمد خان لمسی، امیر عبدالرحمن خان د افغانستان په تاریخ کې د هغه بی واکه حاکم په توګه پیژندل کیږي چي له یوې خوا یې هیواد په انګریزانو خرچ کړ اوله بلې خوایی دهیواد دپاته توټي راتلونکي لپاره یو نظم جوړ کړ.



امیرعبدالرحمن خان دهیواد دتجزیي هغه مختوره څیره بلل کیدای شي چي تاریخ دتل لپاره ورته غلام اودانګریزی استعمار اله اوګوله بللیده . (یعني داهغه څوک دي چي کابل ،کوته ،پیښوریې دانګریزی استعمار په مټ سره بیل کړو.)

خوله همدي سترناورین وروسته یې یوبل کار وکړهغه داوو چې په هیواد کې یې له هغو ناخوالو او ګډوډیو وروسته چې د افغان- انګریزد دوهمې جګړې په بهیر کې رامنځ ته شوې وې، بیرته په کابل کې د افغان دولت واک له سره ورغوه.

کله چي انګریزانو امیر عبدالرحمن د سردار محمد افضل خان زوی د تاشکند څخه راوغوښت نو یې د ده سره د یو شمیر مرستو قول و کړ پدې شرط چي که دی په خارجي سیاست کي د انګریزانو سره مشوره و کړي . امیر عبدالرحمن هم د مجبوریت له مخي قبوله کړه . دی د پر تجربه کاره سړی وو ، دی

پوهېدئ چي د قومي خلکو سره څرنګه چلند و کړي او هم د انګرېزانو سره څرنګه په خپله ګټه په نرمي چلند و کړي .تر څو د تير کردار کفاره را وګرزوي .

ده و کولای شول چي د څو ورځو په مدت کي په کابل کي امنيت راولي او بيا د افغانستان نورو ښارونو ته پام شو . او پدې دول د افغان او انګليس دويمه جګړه پای ته و رسېده .

امير عبدالرحمن په دېر لږ وخت کي په هيواد کي خپل مخالفان يا له مينځه يوړه ، يا يې بنديان او يا يې فراره کړه . انګرېزانو هم د ده سره مرستي کولې . په ۱۸۸۰ م کال کي يې پنځه لکه روپۍ ، څو سوه توپونه او څو زره توپکان امير ته ور کړه او هر کال به يې ۱۸۰۰۰ پونده مرسته ور سره کوله .

ده دېر ژر تولو مخالفين لکه د غزني غلجيان او د منځني افغانستان هزاره ګان د ځان تابع کړه . د سپاه سالار جنرال غلام حيدر خان چرخي په واسطه يې د هيواد تولي هغه برخي چي د افغاني دولت له لاسه وتلي وې بيرته په لاس راوړې . په نورستان کي يې د اسلام دين خپور کړ او هغه ځای يې د نورستان په نامه و باله .



امير په هيواد کي د جاسوسۍ دايره جوړه او قوي کړه ، تکړه قاضيان يې مقرر کړه ، د پوستې دفترونه يې خلاص کړه ، شرعي محکمې يې د سره خلاصي کړې ، د کابل په شاهي مدرسه کي يې ديني عالمان مقرر کړه ، چاپخانه يې بيا خلاصه کړه ، په کابل کي يې د توپک جوړولو فابرکه په کار واچول . د ماليې دفترونه يې خلاص کړه ، د لارو غله يې له منځه يوړه .

د خارجي سياست په برخه کي يې په نرمي ګام اخيستئ . په ۱۸۸۵ م کال کي تزاري روسيې پر شمالي پنجده حمله وکړه او هغه يې و نيوله . که څه هم انګرېزانو بايد پدې هکله د ده سره مرسته کړې وای خو و يې نه کړه .

امير عبدالرحمن خان يوه لويه غلطي چي کړېده هغه د ډيورنډ معاهده ده چي بېله د ملت د نمايندګانو د خبرتيا يې په خپل سر امضا کړه . پدې معاهده کي افغانستان په شرقي او جنوبي سيمو کي ديري مځکي له لاسه ور کړې ۱۸۹۳ م . امير عبدالرحمن خان په کابل کي په ۱۹۰۱ کال کي مړ سو او پر ځای يې د ده زوی سردار حبيب الله خان پاچا سو .

# امیر حبیب الله خان

امیر حبیب الله خان یا امیر حبیب الله شاه په نامه هم یادېږي له (۲ د جولای، ۱۸۷۲ ز. - ۶ د جولای، ۱۹۲۹ ز.) ۱ د اکتوبر، ۱۹۰۱ ز. - ۶ د جولای، ۱۹۲۹ ز. د افغانستان واکمن پاچا و. هغه د امیر عبدالرحمن خان دویم زوی و او د خپل پلار تر مړینې وروسته پاچا شو. ده ته د پلار ارام هیواد ورپاته شو. د هیواد خلک د امیر عبدالرحمن څخه ډېر په دار کي وه، حتی د ده تر مرګ وروسته خلکو تر ډېره وخته باور نه کاوه چي امیر مړ دئ.



امیر حبیب الله خان چي عصري زده کړي درلودې و یې غوښتل چي په هیواد کي تعلیم او تمدن مینځ ته راشي ، هغه وو چي د حبیبیې لېسه او شاهي مدرسه یې جوړي کړې او حربي ښوونځی هم د ده د کارونو څخه ده. یو اخبار یې د سراج الاخبار په نامه را وایستئ چي مسئول مدیر یې محمد بیک طرزی وو کوم چي د لوړو زده کړو څښتن وو. د برېښنا فابریکه یې په جبل سراج کي جوړه کړه.

د امیر د پاچاهۍ په دوره کي لومړی نړیوال جنګ پیل سو. د جرمني او ترکیې د حکومتونو له خوا د امیر نه و غوښتل سوه چي پدې جګړه کي د انګرېزانو پر ضد د دوی سره ملګری سي، خو امیر د دوی نمایندګان ښه و نازول او هغو ته یې خپله بې طرفي و ښودله. دی هم د امیر عبدالرحمن په شان د انګرېزانو د ګټو ساتونکئ وو او د انګرېزانو له خوا حمایه کېدئ. دا وخت په هیواد کي د خلکو سره مترقي فکرونه پیدا سوي وه او نه یې غوښتل چي نور د انګرېزانو تر حمایې لاندي ژوند و کړي او هم یې په افغانستان کي د دا دول حکومت سره کوم چي امیر حبیب الله خان یې په سر کي ناست وو مخالفت درلود. خو امیر غوښتل چي دغه د ترقۍ فکرونه په زور او زیاتي د خلکو له مغزو څخه و باسي څو هغه وو چي په ۱۹۱۹ کال کي د خلکو له خوا د کله ګوش به تفریحي کمپ د خیمو په یوه کمپ کي په توپنګچه وویشتل شو او ځای پر ځای مړ شو. او پر ځای یې د ده زوی امیر امان الله خان پاچا شو.

## یادونه:

امیر عبدالرحمن د ۲۱ کالو سلطنت څخه وروسته د اکتوبر د میاشتي په لومړۍ نیټه ۱۹۰۱ میلادي کال د فلج (نقرس په ناروغۍ په باغ بالا کي مړ شو او دوه ورځې وروسته د هغه ۳۲ کلن زوی حبیب الله خان په تخت کېښناست.

او برتانوي حکومت هم هغه د افغانستان د امیر په توګه وپیژاند. امیر د تاج او تخت په وخت کې وعده وکړه چې زه به د ملي وحدت په ټینګولو کې زیار باسم او د خارجي تیري کوونکو په مقابل کې به په کلکه درېږم او کورنۍ شخړې به له منیځه ورم او د دې لپاره چې د خلکو محبوبیت ځانته پیدا کړي.

# سردار نصرالله خان

مارشال سردار نصر الله خان نایب السلطنة اعتواد الدولة (۷ د اپرېل، ۱۸۷۵ ز. - ۳۱ د مۍ، ۱۹۲۰ ز.) د امیر عبدالرحمن خان او اصل بیګم زوی، د امیر حبیب الله خان ورور او د امیر امان الله خان تره و. کله چې امیر حبیب الله خان د لغمان ولایت په کله ګوش کې ووژل شو نو سردار نصرالله خان په ننګرهار کې ځان د افغانستان پاچا اعلان کړ چې ډېر ژر د امیر امان الله خان په امر ونیول شو او بندي شو.



# امیر امان الله خان

امان الله خان (زېږېدنه: ۱ د جون، ۱۸۹۲ – مړینه: ۲۵ د اپرېل، ۱۹۶۰) له ۱۹۱۹ زېږیز کال نه تر ۱۹۲۹ زېږیز کال پورې د افغانستان پاچا وو. امان الله خان د افغانستان هغه پاچا دی، چې په ۱۹۱۹ زېږیز کال یې د خپل ملت په ملاتړ انګرېزان له هېواد څخه وشړل او یو خپلواک او سرلوړی حکومت یې جوړ کړ او په همدې توګه د افغانستان د خپلواکۍ ګټیالی بلل کېږي. د غازي امان الله خان د حکومت وختونه د افغانستان په تاریخ کې د یو بې ساري ولسواکۍ او ټولنیزو بدلونونو دوران وو.



،خوهیره دي نه وي چي ښاغلي امان خان دښځودبې پردي کولو لومړي پاچا هم ګڼل کیږي ولي لومړي یی خپله کوروالا په نیم لوڅ ډول دنوي تمدن ازادي اوپه ننني اصطلاحي ډیموکراسي شکل یوه عامه ننداړتون ته راڅرګنده کړه ، اودانګریزي استعماریوهدف همداوو

،خوبایدداهم ووایو چي غربي هیوادونوته دسفر کولو وروسته امان الله خان له خپل دریغ څخه په بله واو ښت ملت خپلی قرباني ددې لپاره ورکولي چي دصلیبي امپراطوري څخه ځان خلاص کړي اویواسلامي حکومت رامینځ ته کړي دهنداو برتانیا نظام خوافغانانو نه غوښتلو .

امان الله خان په ۱۳۰۹هـ. ق کال د کابل په پغمان کې زېږېدلی، دی د امیر حبیب الله خان زوی ، د امیر عبدالرحمن خان لمسی ، د امیر محمد افضل خان کړوسی او د امیر دوست محمد خان کودی دی . د امان الله خان مور سرور سلطان بېګم نومېده . کله چې په ۲۰ د فبرورۍ، ۱۹۱۹ زېږیز کال کې دده پلار په د لغمان په کله ګوش کې ووژل شو ، نو په هغه وخت کې امان الله خان د کابل والي وو او د کابل پوځ او خزانې ټول واک دده په لاس کې وه . په دې وخت کې امان الله خان په کابل کې پاچا شو او د خپلې پاچاهۍ له اعلان سره سم یې له انګرېزانو څخه د افغانستان خپلواکي اعلان کړه او د انګرېزانو پر ضد یې په ټول هېواد کې د خپلواکۍ د غزا ډول وغړاوه . نوموړي ډېر ژر د افغانستان د خلکو او قبایلو ملاتړ ترلاسه کړ او په همدې توګه لس کاله د افغانستان پاچا پاتې شو . امان الله خان دې ته ډېر لېواله و ، چې هېواد یې پرمختتګ وکړي او د نړۍ له پرمختللیو هېوادونو سره سیال شي، ده په همدې موخه د هېواد په بېلا بېلو ځایونو کې د نجونو او هلکانو لپاره ښوونځي جوړ کړل.

زده کړې
لومړنۍ زده کړې یې په شاهي دربار او بیا یې نورې زده کړې په حربیه مدرسه (حربیه ښوونځي) کې ترسره کړې . په پوځي زده کړه کې یې ځانګړی استاد هم درلود چې محمود سامي پاشاه نومېد . امان الله خان د خپل پلار په دربار کې زیات محبوبیت او مینه وال لرل . کله به چې امیر چېرته په سفر ولاړ ، نو د خپل عادت له مخې به یې خپل مشران زامن په نوبت سره ځایناستي ګرځول او کله به چې امان الله خان ته نوبت ورسېد ، نو له درباریانو سره به یې خورا غوره چلند کاوه ، له بندیانو سره به یې ډېره نرمي کوله ، او ان کله به یې پټ لیده کاته هم ورسره کول او پر پوځیانو به یې ځانګړی پام و . همدا لامل و چې کله یې خپله پاچاهي اعلان کړه ، نو په دربار کې له کومې ځانګړې ستونزې سره مخ نه شو . امان الله خان ډېر زغم درلود ، هوښیار او مدبر سړی و ، په ډېره صریحه او څرګنده لهجه یې خبرې کولې او کله به یې چې وینا کوله مقابل لوری به یې ډېر زیات تر خپل اغېز لاندې راووست . کله چې د امیر حبیب الله خان د پاچاهۍ په دوران کې روڼ اندو د مشروطیت غورځنګ جوړ کړ ، نو امان الله خان د همدې غورځنګ په فعالیتونو کې هم بشپړه ونډه واخیسته . د ځینو فعالیتونو له امله امیر حبیب الله د همدې غورځنګ غړي بندیان کړل ، نو . امان الله د خپلې پاچاهۍ په لومړیو ورځو کې له زندان څخه را خلاص کړل او په دې توګه یې غوښتل چې د همدغو روڼ اندانو له پوهې څخه د هېواد په پرمختیا کې کار واخلي. امان الله خان یو ځوان هېوادپال شخصیت و ، چې د افغانستان د سمسورتیا او پرمختیا لپاره یې ډېرې هلې ځلې وکړې ، خو له بده مرغه چې د پرمختیا او سمسورتیا په لار کې ورته یوه هکار دښمن کمین نیولی و او امان الله خان یې په دغه لار وړاندې تګ ته پرېنښود . امان الله خان د خپل پلار د مرګ پر اوومه ورځ ملت ته په وینا کې داسې وویل: "ای د افغانستان معظم ملته! ما د پلار د شهادت پر وخت د سلطنت وکالت په کابل کې پر غاړه درلود او اوس په هغه اصالت د امانت درونډ بار متوکلاً او متعصماً پر غاړه اخلم. کله چې ستر ملت زما پر سر د پاچاهۍ جوغه کېښودله، ما عهد وکړ چې د افغانستان دولت به لکه د نړۍ نورو مستقلو قدرتونو د هېواد په داخل او خارج کې ازاد او مستقل وي ، د افغانستان خلک به د قانون تابع وي ، بېګار او نور جبري کارونه به بند وي . دلته به ډېر اصلاحات راځي، چې هېواد په نړۍ کې خپل مناسب ځای ومومي، زه به د "شاورهم فی الامر" پر اساس د هېواد چارې اجرا کوم، تاسې به د خپل دین او هېواد په چارو کې ډېر هوښیار اوسئ او په بیدارۍ به وطن ساتئ. زه تاسو ، ټول اهل اسلام او ټول بني نوع انسان ته خیر او سعادت غواړم."کله چې . امان الله خان انګرېزانو ته د افغانستان خپلواکي اعلان کړه، انګرېزانو هېڅ غوږ پرې ونه ګراوه، نو ځکه . ار شو چې د انګرېزانو په وړاندې د غزا او جهاد اعلان وکړي.

افغان ملت په ډېر لږ وخت کې انګرېزانو ته ماته ورکړه. انګرېزانو چالاکي وکړه، د خپلې شرمېدونکې ماتې د پردې کولو لپاره يې د سولې خبرې پيل کړې او د افغان غږزيانو د لا نورې پرمختيا مخنيوی يې وکړ. د هېواد د فرهنګ د غوړېدا په لړ کې د . امان الله خان لومړی ګام د امان افغان خپرول وو، چې لومړی ګڼه يې د ۱۹۱۹ زېږيز کال د اپرېل پر ۱۲مه د عبدالهادي داوي په مديريت خپره شوه. دغې خپرونې د خلکو د ذهنونو په روښانولو کې پوره ونډه واخيسته او هېوادوالو ته يې د هېواد د پرمختيا لوری په ګوته کړ. د مطبوعاتو په برخه کې بيا وروسته په لسګونو نورې جريدې او مجلې خپرې شوې او په هر ولايت کې يوې جريدې خپرونې کولې. همدا وخت د ارشاد النسوان په نامه د ښځو يوه خپرونه هم وه. د قانون جوړلو په برخه کې امان الله خان د ۱۹۲۲ زېږيز کال د فبروري پر ۲۹مه په جلال آباد کې د ملت د ۸۷۲ استازيو په ګډون لويه جرګه جوړه کړه دکرزي غوندي لويه جرګه چي دغرب ترتاثيرلاندي وه ، او په ۱۹۲۳ کی د افغانستان لومړنی اساسي قانون ديې تصويب کړ داسي قانون چي له اسلام سره ټکرونه لري . په اقتصادي برخه کې يې د صنايعو انکشاف ته پوره پام وکړ او په باندينې تجارت کې افغاني پيداوارو د نړۍ مارکېټونو ته لاره موندله. په عمراني برخه کې نوي ښارونه جوړ شول او د کابل ښار له پخوا څخه څو چنده پراخ شو. د ولايتونو تر منځ لارې او سړکونو له سره جوړ شول او په لارو کې د مسافرو د هوسايي لپاره هوټلونه په کار ولوېدل. . افغان زده کوونکي د لوړو زده کړو لپاره بهرنيو هېوادونو ته په دې موخه واستول چې د هېواد په بشپړه آبادۍ او سمسورۍ کې برخه واخلي. خو له بده مرغه ځينو شر غوښتونکيو د پاچا دغو ټولو ښو کارونو ته بل نوم او عنوان ورکړ، پاچا ته يې سردرد او د پرمختيا د کارونو په وړاندې يې خنډونه جوړ کړل. کله چې . امان الله خان د هېواد د لا پرمختيا په هيله د ۱۹۲۷ زېږيز کال په وروستيو کې د اروپا په سفر ووت او چې بېرته له سفره راستون شو ، د پاچا د اصلاحي کارونو په وړاندې خنډونه لا نور هم زيات کړل شول. او بيا د سقاو زوی اړی ګړی جوړ کړ. . و نه غوښتل چې په هېواد کې يې وينه تويه شي او د ۱۹۲۹ زېږيز کال د جنوري په لومړۍ اوونۍ کې يې استعفاء ورکړه او پر ځای يې خپل ورور عنايت الله په پاچاهۍ وټاکه. خو د سقاو د زوی حبيب الله کلکاني په سر کې د پاچاهۍ نشه وه، ارګ يې محاصره کړ او . عنايت الله هم له پاچاهۍ لاس په سر شو. همدا مهال . امان الله خان د کندهار، له لارې هند او له هغه ځايه بيا ايټاليا ته لاړ، هملته يې له هېواده لرې ژوند غوره کړ او د ۱۹۶۰ کال د اپرېل پر ۲۶مه يې له دې نړۍ سترګې پټې کړې. اروا يې ښاده . د . د وصيت له مخې د هغه جنازه افغانستان ته راوړل شوه او په جلال آباد کې د خپل پلار د مرقد تر څنګ خاورو ته وسپارل شو.

# سردار عنایت الله خان

امیر عنایت الله خان د امیر حبیب الله خان زوی د امیر امان الله خان مشر ورور وو هغه د امان الله خان وروسته د افغانستان پاچا سو چي کله یې پلار په لغمان کې ووژل سو نو دپاچاهي اوواکمني واګې امان الله خان په لاس کې واخیستي .



دي هم تریوې اندازې سیاسي بصیرت او حلم درلود ،خو امان الله خان ډیر تیز او زر فیصله کونکي وو ولو که عنایت الله پر امان الله خان مشر وو لیکن بیا هم یې دده مشرتوب او پاچاهي ته غاړه کېښېښوده ده دپلار له کارنامو او عبرتنامو څخه ډیر کار اخیست او دهغه توصیې یې هم تریو ځای پوري عملي کولي چي په دې ترڅ کې عنایت الله خان انګلستان ته هم یو سیاسي سفر وکړ چي موخه یې دواکمني ټینګیدل وو ، خوانګریزانو غوښتني دده ترسویې او سفر لوړي ورته ښکاره کیدلي چي بیرته مایوسه راغلو دلته هیواد کې هم نور دبغاوت اوسرکشي تحریکونه ورځ تربلي زیاتیدلو فارسیانو هم دپاچاهي خوبونه لیدل ،خوبلي لوري ته امان الله خان لکه مخکي چي موذکرکړه دپښتني او افغاني عنعناتو په خلاف یو ه ازادانه وضع اختیارکړه چي دملت دکرکو او بغاوتونو سبب شوي اوهم دښمن ته دموقع په لاس ورغله چي نوره دامان خان تغرور ړتول کړي ،خو امان الله ددې پرځای چي دتښتي لاره غوره کړي خپل ورور عنایت الله خان یې دپاچا په توګه معرفي کړ.

بل لوري ته فارسي لښکر مشر حبیب الله کلکاني چي په بچه سقاو مشهور وو ارګ ته دورننوتلو لاري څارلي کلکاني صوفی مزاجه رویه غوره کړي چي ملت ته وښئ چي یو اسلام دوست شخص دي ،خو په پټه یې دفارسي حکومت کوښښ کاو د همدي هلوځلو په پیله کې دپاچا هي په نیول بریالي شو . اوعنایت الله ایران ته پنا یووړه چي دمرګ تر وروستي برید هم هلته پاته شول .

شپاړسم څپرکی

## امیر حبیب الله یا بچه سقاوو

### حبیب الله کلکاني (سقاو زوی)

حبیب الله کلکاني د امین الله زوي په ۱۹۹۰ ز کال کې زیږیدلي چې د کابل د کلکان او سیدونکي او فارسي ژبی وه دي دیوې غریبي کورنۍ د بزګر زوي وو، خوخورا چالاک او فریب ګر شخص وو چې په سقاو سره هم یادیږي.

د سقاو او امان الله خان خیړنه چې تاریخ تر کومه حده کړي دواړو ته یې د شک په سترګه کتلي پښتانه سقاوي یوغل او لومتمار معرفي کوي ،خوبلي لورې ته فارسیان بیا امان الله خان په لومړي ځل دغازیانو رهبراو لارښود ګڼي ،خووروسته کې یې دانګریزانو لاسپوځي بولي چې وائی امان الله خان خپله میرمن لیم لوخه دوخت پارلمان ته راخرګنده کړه چې نوریې د پردي او ستر کړي ماتي کړي او اوسني تاریخ لیکونکي سقاو هم دانګریزانو لاسپوځي اوګوډاګي ګڼي اوهم داډول فارسي تاریخ لیکونکي اویوشمیر د تاریخ نه ناخبره خلک د سقاوي اړدوړ دورې ته قانوني رنګ ورکوي او د نادرخان لخوا د حبیب الله کلکاني یا بچه سقاو دواکمنۍ راپرځول د پښتنو لخوا له تعصبه ډک عمل بولي په هرحال ، موږ به اوس د تاریخ له زاویې نه د سقاوي دورې اړدوړ ته سرور ښکاره کړو هغه بېلابېل لیکلي او تاریخي اسناد چې پدې اړه شته یو ښه ثبوت کیدای شي د کتاب په دې برخه کې راپوځای کړي.

په ۱۹۱۹ زیږدیز (۱۲۹۸) کال چې کله امان الله خان افغانستان دانګریزي ښکېلاک له ناولو منګولو څخه دملي پاخون په مټ خلاص کړ او افغانانو بشپړه توګه دخپلواکۍ مزه وڅکله ، نو شاه امان الله دهېواد د پرمختګ لپاره نور ګامونه پورته کړل ترڅو افغانستان له نورو پرمختللو هېوادونو سره سیال کړي امان الله خان که څه هم دانګریزي ښکېلاګرو سره ښې ډغرې ووهلي ،خوانګریزي استعماردنورو صلیبي امپراطوریو په ډول له سیاسي چل اوفریب څخه کاروا خېست اودخپل منیځی شخړو وریې پرانست له یوې لورې امان الله خان د برتانیایې سفر څخه نوی تقلید را وړ چې رښتیا هم زموږ له ټولنې اومذهب سره یې سمون لرلوله بلې لورې یې په هیواد نورداسي عوامل او اشخاص رامنیځ ته کړل چې د پښتنو ګتلي بریا اونوي حکومت بیا دشخړو او منځني جګړو ښکار کړي .

امان الله خان لومړی دهېواد دننه رفورم او اصلاحاتو ته لاس واچوه ترڅو ولس له نوي او عصري اروپايي تمدن سره اشنا کړي ، دا کار که څه هم دهېواد لپاره ګټور و خوله بلې خوا قسم خوړلو انګريزانو چې غازي امان الله خان ورته نه هېريدونکې ماته ورکړې وه په کراره کينه ناستل او دشاه امان الله لدې رفورم سره يې د يوشمېر افغانانو احساسات راوپارول ، که څه هم هغه مهال افغانستان دې ډول رفورمونو او اصلاحاتو ته اړتيا درلوده خوبايد دومره په بې صبرۍ او چټکۍ چې امان الله تر تطبيق لاندې نيولي وو نه واى ترسره شوي.

دشاه دې ډول اصلاحاتو يوتدريجي پلان ته اړتيا درلوده ترڅو ګام په ګام پرمخ ولاړشي څکه پر افغانستان ديوې انقلابي ټولنې سيوری خور و او د شاه دادول بېړه او بې صبري به خامخا ددې ولس له غبرګون سره مخ کېده ، انګريزانو دامان الله خان حکومت راپرڅولو پښې بدوهلې وې او له بريتانوي هند نه يې دملايانو په جامه کې خپل جاسوسان هم راليږلي ول ، لکه په ۱۹۲۵ ز کال کې انګريزانو يو شمېر قادياني ملايان لکه ملاعبدالحليم ، ملانورعلي اوملا نعمت الله په نوم چې ددې ډلې مشري يې کوله افغانستان ته راليږلي وو دې کسانو ظاهرا دملايانو ماسک پرمخ غوړولی و خو په باطن کې به يې داماني دولت پروانده منفي تبليغات کاوه ، دانګريزانو دې ډول ورانکارو تبليغاتو په هېواد کې دشاه غازي امان الله پرضد ولس راپاڅوه او هېواد يوه ستر ناورين سره لاس او ګريوان شو دهېواد په بېلابېلو سيمو کې شورښ پيل شو چې پدې شورښ او بلواوو کې دهېواد شمالي سيمې څخه يوتن حبيب الله دبچه سقاو په نوم له حالت نه په استفادې دامان الله خان پرضد راپاڅېده او دشمالي لاريې وتړله ، غلا او شوکمارۍ ته يې لاس واچاوه ، له خپلو غلو او لوچکو ملګرو سره يې پرکابل بريد وکړ بالاخره په هېواد کې اړدوړ پيل شو او شاه امان الله دېته اړشو چې هېواد پرېږدي او بهر ته له کورنۍ سره کډوال شو.

## دبچه سقاو واکمني او داړ دوړ دورې پيل

تاريخ پوهان ليکي بچه سقاو ياحبيب الله کلکاني چې وروسته يې ځان دخادم دين رسول الله په نامه ونوماوه ، اصلاً دانګريزانو په زور قدرت ته ورسېد ، بچه سقاو مخکې تردې چې واک ته ورسيږي دامير امان الله خان په حکومت کې په قطعه نمونه کې عسکر و ، چې بيا يې هلته سرکاري ټوپک غلاکړ او وتښتېد او له ملګرو سره يې يوځاى دغلو يوه ډله جوړه کړه چې لارې او کورونه به يې وهل ، يو ځل په ننګرهار کې دغلا په تور ونيول شو او زندان ته يوړل شو خو يوڅه

موده وروسته له زندانه هم وتښتېد چې پاره چنار او پېښورته یې سر وخوت هلته په یوه سماوار کې نوکر شو چې له هماغه ځایه یې دانګریزانو پام ځان ته راواړوه ، یوه ورځ په جومات کې دانګریزانو یوه جاسوس ملاچې لادمخه جوړشوی پلان و بچه سقاو یې داماني دولت پرضد تحریک کړاو ورته یې وویل چې لدې ځایه مخ پرورانديځه هلته یوه ونه ده او د ونې لاندې ځای وکینده چې هرڅه راووتل هغه در سره واخله.

رښتیا هم انګریزانو دخپل پلان شوې نقشې له مخې تروني لاندې پیسې او ټوپک ښخ کړي وو چې دې کار سقاو نور هم زړه ور کړ ، دا مهال په ننګرهار کې شینوارو قوم هم دشاه امان الله پروراندې پاڅون کړی و ، او هېواد له یولړ سیاسي ستونزو سره لاس او ګرېوان و ، لدې حالت نه په استفادې په ۱۹۲۸ زیږدیز کال کې سقاو هم دهېواد شمالي لار ته راووت او لار یې و ترله دولت دموضوع دحل په موخه دکابل ښاروال احمدعلي خان ورواستاوه او دغلو لدې ډلې سره دې هوکړې ته ورسېدل چې دولت به هر غله ته ۳۰۰۰ زره افغانۍ تنخواه او ټوله ته به ۸۲ ټوپکه او ورسره کارتوس ورکوي او لاسلیک یې هم ترې واخیست .

خو په همدې وخت دتګاو اخندزاده له نورو غلو سره په کلکان کې دملاویس الدین په کورکې حبیب الله) بچه سقاو ) دامیر په توګه وټاکه.

د۱۹۲۸ زیږدیز کال ددسمبر په میاشت کې سقاو اوملګرو یې دکابل په شهرآرا برید وکړ سقاو پدې جګړه سخت ټپي شو او ددرملنې لپاره په پټه دانګلیس سفارت ته یوړل شو(۱) دا خوارکی یوناپوه او کلیوال سړی و او پدې هم نه پوهېده دې دبل چا پراوړو ناست دی او لوبوي یې ، دا اصلاً انګریزانو دامان الله پرضد را پورته کړی و که څه هم انګریزانو ظاهراً خپل ځان نه ورښوده خو دخپلو ایجنټانو پواسطه چې پرمخ یې مذهبي ماسک غوړولی دا یې راوپاروه او دشاه امان الله خان دهیلو دیوې یې پرې مړې کړې دا چې یوشمېر خلک داخبرې نه مني چې ګني بچه سقاو دې دانګریزانو لخوا تحریک شوی وي خو دځینو معتبرو سرچینو او اسنادو له مخې داسې ښکارې چې ددې په راوستو کې انګریزانو پوره لاس درلود ، لکه څنګه چې مخکې مو هم یادونه وکړه کله چې بچه سقاو دکابل په شهرآرا برید وکړ نو له ټپي کېدو وروسته انګریزانو پخپل سفارت ورننویست نوله دې مالومېږي چې انګریزانو بچه سقاو سره لویه خواږي درلوده ، دشاه غازي امان الله خان دواکمنۍ پرمهال په کابل کې دایران سفیر سید مهدي فرخ وايي: (پرته له

کوم شکه د ۱۳۰۷ لمریز لېږدیز کال ښورښ او پاڅون دانګریزانو پخه نقشه وه ، او ددغه پلان طرحه دهند دپټو اطلاعاتو په اداره کې وشوه چې بیا په څټکي سره تر تطبیق لاندې ونیول شوه او امان الله خان یې دواک له صحنې لیرې کړ ، سفیر په اخر کې زیاتوي چې انګریز دلته دیوه ماهر شطرنجباز په توګه خپل چال وکړ ). (۲ ) څنګه چې مخکې مې هم یادونه وکړه انګریزانو په مستقیم ډول له سقاویانو سره اړیکې نه درلودې خو دنورو ایجنټانو پو سیله ورته لارښوونه کېده هغه ته دانګریزانو لارښوونکو ویلي وو چې په کابل کې دانګریزسفیر (همفریز ) درناوی کوه ، بچه سقاو هم په یوه غونډه کې داسې وایي:

)زه دانګریزسفیر څخه ډېر راضي او خوښ یم ، او خپلو ملګرو ته یې وویل چې د سفیر تنخواه او رتبه لوړه کړي ) (۳ ) له پورته شواهدو داجوتیږي چې انګریزانو خپله ټاکلې نښه په بریالیتوب سره دبچه سقاو په لاس وویشته او دلوټماری نه یې دپاهاهی موقف ته ورټېل وهه.

کله چې دحبیب الله کلکاني په مشری دسقاویانو دوره پیل شوه دا دوره په تاریخ ډېره توره دوره وه چې په پرنورو تاریخونو سربېره په ملي تاریخ کې هم داړدوړ په نامه یاده شوې ده ، دا ډېرې تورې ورځې وې هر خواته چور اوتالان ګډ و په ټول هېواد کې ښوونځي ، مدرسې او ټول ښوونیز بنستېونه وتړل شول ، سقاویانو دکابل ښار او شاوخوا سیمو کې دخلکو په رټلو او چورلو پیل وکړ سقاو له خپلو بې سواده یارانو سره ګډه اداره جوړه کړه ، پدې دورې ددولت اطلاق نشي کېدای څکه متشکله عناصر چې دیوه دولت په جوړښت کې اړین دي سقاویانو په پام کې نه وو نیولي ددوی کابینه هم یوه محدوده او کوچنۍ کابینه وه دپوهنې او عدلیې وزارتونه پکې بیخي له منځه تللي وو او ټوله کابینه یې په لاندې ډول وه:

۱ -سید حسین نایب السلطنه او وزیر جنګ.
۲ -حمید الله دده خپل ورور – معین السلطنه
۳ -عبدالغفور تګابي – دکورنیو چارو وزیر چې وروسته بیا دهمدې له لاسه ووژل شو.
۴ صاحبزاده عطاء الحق – دبهرنیو چارو وزیر
۵ صاحبزاده شېرجان – ددربار وزیر
۶ -غلام مجتبی خان – دمالیې وزارت وکیل.

دا دسقاویانو په لاس جوړه یوه محدوده کابینه وه چې له خپلو بې سوادو او غیرمسلکي ملګرو څخه یې جوړه کړې وه چې ددولت نوم ورته نشو ورکولای بچه سقاو چې کله واک ته ورسېد نو اعلان وکړ او ددولت ټول مالیات ، محصولات او عواید یې معاف کړل او خلکو ته وویل: ځئ لاړشئ خپل ساتېري وکړئ مرزان او چرګان وجنګوئ.(۴(

دسقاو نهه میاشتنۍ دورې دکابل ښاریانو ته دسرپه کاسه کې اوبه ورکړې غلا ، خپل سري ، اداري فساد ، قتصادي ناورین ، بې کاري ، دپیغلو نجونو په زوره ودول او ...... خپل اوج ته رسیدلي وو هرچا به چې څه کول پوښتنه به نه وه هرڅوک به راپورته کېده او ویل به یې ( زه دحبیب الله سره په یوسنګر کې وم ) او چې هرڅه به یې کول چاورته نه نشوای ویلی ، سقاویانو دکابل ټولو ښاریانو ته دکافرو په سترګه کتل او هرڅوک به یې چې لیدل ویل به یې امان الله کافر و او تاسو هم کافران یاست چې له هغه سره مو پدې ښار کې ژوند کاوه ، نهه میاشتي دکابل ښاریانو په ویرې او غم تیرې کړې ترڅو نادرخان له خپلو ورونو سره دپکتیاوالو په مرسته دلوګر له لارې پرکابل راوختل او ارګ یې کلابند او حبیب الله یې له یوشمېر ملګرو سره په دار وخیژاوه پدې توګه سقاوي دوره پای ته ورسېده او نادرخان دچارو واګې په لاس کې واخیستې.

# محمد نادر شاه



محمد نادر شاه د سردار محمد یوسف خان ځوی و. په ۱۲۶۲ هـ ل کال د حمل پر ۲۱ یا د ۱۸۸۳ م کال د اپریل پر ۹ زیږیدلئ دئ. د هغي پوهي په سبب چي په عسکري چارو کي یې درلوده د وخت د پاچا له خوا د دفاع د وزیر په توګه و ټاکل سو. د امیر حبیب الله خان تر مرګ وروسته د پاچا امان الله خان په دربار کي د ده عزت کېدئ. په ۱۳۰۳ هـ ل کال کي په فرانسه کي د افغانستان د سفیر په توګه و ټاکل سو. په ۱۳۰۵ هـ ل کال کي یې د سفارت څخه استعفی و کړه او هلته پاتي سو. کله چي پاچا امان الله ته د نا ارامۍ اوربل سو او حبیب الله کلکاني (بچه سقاو) ته د هیواد چاري و رسېدلې نو نادر خان هیواد ته راغئ، لښکر یې برابر کړ. هغه وو چي د ۱۳۰۸ هـ ل کال د میزان پر ۱۶ نېټه د نادر خان عسکرو د ده د ورور شاه ولي خان په ملګرتیا کابل و نیوئ. د میزان پر ۲۳ نېټه یې دمنځه یوورِ او دی د هیواد د پاچا په توګه و منل سو.

دایوه طبعي خبره ده چي دپښتنو لښکري زیات وخت دقندهار له خوا دخپل غورځنګ سرچیني راپیلوي، خو دنادرخان په وخت لویه پکتیا اوڅنګ لوریو ولایتونو په ډیره میړانه سره یو داسي پیاوړي لښکرجوړ کړ چي په ډیره کمه موده کې یې دسقاویانو تغرورټول اوپرځای یې یوپښتون پاچا راوست.

محمد نادر (انګریز) پداسي حال کي چي د نجات د لیسې فارغانو ته یې شهادتنامې ورکولې د یوه زده کوونکي له خوا چي عبدالخالق نومېدئ په توپنچه و ویشتل شو، ۱۳۱۲ هـ ل د عقرب ۱۶ نېټه. تر ده وروسته یې زوی محمد ظاهر پاچا سو.

**یوه یادونه:**

## د نادر خان په پاچاهي کې پرتې ستونزې

:نادرخان چې کله دسقاو واکمنۍ راوپرځوله نو هېواد له یو سخت اقتصادي ناورین سره لاس او ګریوان و په نهو میاشتوکې ددولت خزانه بېخه تشه شوي وه او هیڅ نه و پاتي، لکه څرنګه نادرخان پخپله ډېر پوه او باتدبیره سړی و کله چې دارګ مانۍ ته ورننوت نو قومي مشران یې راټول کړل او دامان الله خان اوبچه سقاو له تیروتنویې کارواخېست او هغوی ته یې دمیرویس خان نیکه په ډول په یوه وینا کې داسې وویل:

))زما هیله دهېواد ژغورل و او داهیله مې سرته ورسیده چې هېواد دغلواوپردو له منګولو څخه خلاص کړم ، زه دپاچاهۍ لیوا له نه یم خو یوه لویه جرګه به راغواړه ترڅو خپل زعیم وټاکو )) ټولو ګډونوالو پدې وخت په یوه ږغ ناري کړې چې جرګې ته ضرورت نشته ته پخپله زموږ مشر او پاچا یې پدې توګه نادرخان دافغانستان رسمي پاچا وټاکل شو .

نادرخان دپاچاهۍ په لومړنیو کلونو کې دهېواد دسمونتیا پرلوري ګامونه اوچت کړل او ویران ویجاړ کابل یې له سره ورغاوه هغه ښوونځي ، فابریکې او نور بنستونه چې دسقاو په دوره کې له کاره لویدلي وو بېرته ورغول شول او په هېواد کې پرتې ستونزې ترډېره بریده له منځه لاړې ، نادرخان سره هم ژوند یاري ونکړه او دیوتن زده کوونکي هزاره لخوا دتمانچې ناڅاپي ډز پر ابدي خوب ویده کړ.

اخځ :
۱) ۱- ( ، )۲ ( ، )۳ ( ، )۴: (دافغانستان پرمعاصر تاریخ یوه لنډه کتنه-استاد ابراهیم عطایي.
۲ -داسقلال څلورمه جبهه-عبدالخالق اخلاص.
۳ -دافغانستان دبهرنیو اړیکو تاریخ-لوډویک اډمیک
۷" http://ps.wikipedia.org/ " نه اخیستل شوی

۱. قدرت الله حداد ( فرهاد ) ، د افغان ملي تاریخ ، مخونه ، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز د ۱۳۸۳ لمریز کال چاپ .

## محمد ظاهر شاه

(زېږېدنه: ۱۶ د اکتوبر، ۱۹۱۴ ز. کال، مړینه: ۲۳ د جولای ، ۲۰۰۷ ز. کال) د افغانستان پاچا و. نومړی د . په اصتلاح په افغانستان کې د پاچايي رسمي نوملړ باندې نومول شوی او دی لکه خپل پلار د . محمد نادر شاه تر آري پاچايي په سلطنت کښېنول شو . دی د محمد نادر شاه زوی و چې د خپل د پلار د مړينې وروسته د افغانستان پاچا وټاکل شو.



ظاهر شاه دافغان پاچاهانو په اوسني لړۍ کې يو اځني پاچا دي چي له پلار وروسته پاچاهي يې په ډيره ارامي او کراري څلويښت کلنۍ کړه دده په پاچاهي بعضی مثبت او څه نوري نيمګړتياوي شتون لري چي دتاريخ دي بحث کې کتلای شي :

### مخينه

محمد ظاهر شاه په ۱۲۹۳ هـ ل ۱۹۱۴ ز. کال، په کابل کي زېږېدلی و.

### زده کړې

د کابل د حبيبيې او استقلال په لېسو کي يې زده کړې وکړې. بيا د پلار سره فرانسې ته ولاړ او هلته يې په زده کړو پيل وکړ. په ۱۳۰۹ هـ ل کال کي بيرته د فرانسې څخه هيواد ته راغئ او په عسکري ښانګه کي يې خپلو زده کړو ته دوام ورکړ.

### دندې

يو څل يې د دفاع د وزارت د وکيل او بيا يې د پوهني د وزارت د وکيل په توګه کار کړئ دئ. د پلار تر مړني وروسته په ۱۳۱۲ هـ ل کال کي پاچا سو او د ۱۳۵۲ هـ ل کال د سرطان تر ۲۵ نېټې پوري د افغانستان پاچا وو. څرنګه چي ظاهر خان د پاچهۍ تجربه نه درلوده نو زياتره چاري د ده د تره محمد هاشم خان له خوا چي د ده د حکومت صدر اعظم وو سرته رسېدلې . سردار محمد هاشم خان د ۱۹۳۳ م کال څخه تر ۱۹۴۶ م پوري صدراعظم وو . تر ده وروسته يې د ده د ورور شاه محمود خان صدراعظم سو ۱۹۴۶ م ـ ۱۹۵۳ م.

تر دوهم نړیوال جنګ وروسته افغانستان د لویو پروژو په منځ ته راوړو پیل و کړ . د هلمند او ارغنداو د بندونو جوړول د امریکا د متحده ایالاتو د تخنیکي او اقتصادي کارونو څخه دي .

په ۱۹۵۳م کال کې سردار محمد داوود صدراعظم سو . د ده په وخت کې د اقتصادي پر مختیا قرارداد د جرمني ، جاپان او ایټالیې سره امضا سو . دا درې هیوادونه د نړۍ د دوهمي جګړې ملګري وه . دا ځکه چې افغانستان د انګرېزانو سره په دغه وختونو کې ښه دوستي نه درلوده . د دوهمي نړیوالي جګړې په پیل کې لا محمد هاشم خان د هیواد بې طرفي اعلان کړه چې دا کار د افغانستان په ګټه وو . دغه د بې طرفۍ سیاست ظاهر خان تر اخیره پوري و ساتئ .

په ۱۹۴۷م کال کې هند د انګرېزانو څخه ازادي واخیستله . د دغي ازادۍ په نتیجه کې هند د خپلي خاوري یوه برخه د لاسه ورکړه . یوه برخه دغه د هند خاوره او یوه برخه چې انګرېزانو پخوا د افغانستان د خاوري څخه ګرزولې وې د یوه نوي هیواد (پاکستان) منځ ته راتلو سبب سوه. کله چې داود خان صدراعظم سو نو یې د پاکستان څخه د افغانستان د هغو خاورو د ازادولو غوښتنه وکړه کوم چې د ډیورنډ د خط په نتیجه کې یې له لاسه ورکړې وې . دا زیاتره هغه برخې وې چې پښتانه پکښې اوسېدل او د پښتونستان په نامه یې یادول . دې خبرې د افغانستان او پاکستان تر منځ جګړې او مشکلات منځ ته راوستل .

ظاهر خان په ۱۳۴۳ هـ ل کال کې د افغانستان نوی اساسي قانون مینځ ته راووست . د دغه اساسي قانون له مخې سیاسي فعالیتونه په هیواد کې ازاد سوه چې په نتیجه کې یې یو زیات شمېر سیاسي ګوندونه منځ ته راغلل . خلکو تر یوې اندازې پوري د خبرو او لیکنو ازادي پیدا کړه . تر دغه وروسته په هیواد کې د فارسي ژبې نوم په دري واوښت .

په ۱۳۵۲ هـ ل کال د سرطان پر ۲۶ نېټه سردار محمد داود د یوې کودتا په نتیجه کې د افغانستان لومړی جمهوریت اعلان کړ . ظاهر خان چې د داود خان د کودتا په وخت کې په ایټالیا کې وو د ۱۳۵۲ کال د اسد پر ۲۱ نېټه یې داود خان ته یو لیک را و لېږه چې په هغه کې یې نوي رژیم ته بیعت ور کړ او خپله په ایټالیا کې و اوسیدنه غوره کړه ،خود حزب لخوا په ایټالیا کې په څاړ ووهل سو اګرکه حمله مرګوني نه وه اوبیا په ۲۰۱۰ میلادي کال کې په بهرکې مړاوبیا یې دکرزي دحکومت او خارجي قواوپه غمرازي اولمانځنه خاوروته وسپارل شو .

# ښاغلی سردار محمد داود خان



سردار محمد داود خان (۲۶ د چنګاښ، ۱۳۰۲ل. - ۷ د غويي، ۱۳۵۷ل.)"د سردار محمد عزیز خان ځوی، په ۱۲۷۸ هجري لمریز کال چې له ۱۹۰۹ زېږيز کال سره سمون خوري په کابل ښار کې وزېږېد. د افغانستان لومړی ولسمشر محمد داود که ژوندی وای، نو سږکال په جولای کې به يې درې دپاسه سل کاله پوره شوي وای. هغه د خپل يو کم اويا کلو ژوندانه خورا ډېره برخه، په حکومت کې په کار کولو تېره کړې ده: له عادي افسر نه نیولې تر دفاع وزارت، له ولایت نه نیولې تر نایب الحکومه ګۍ او له صدارت نه نیولې تر ولسمشرۍ پورې.

محمد داود په دې ټوله موده کې چې څلوېښت کاله کېږي، نژدې هره شېبه د يوه فعال سیاسي لوبغاړي په توګه په عامه انظارو کې و. یوازې د ۱۹۶۰ مو کلونو له لومړیو نه د ۱۹۷۰ مو کلونو تر لومړیو پورې، تر هغو يې چې د جمهوریت د تاسیس لپاره په کودتا لاس پورې کاوه، له هر څه نه ځان ګوښه ساتلی و.

## د داود خان په اړه او د حکومت دوره

۱۹۵۳- ۱۹۶۳ اروانباد محمد داود خان د سردار محمد عزیز خان زوی دی. په ۱۹۰۹ کال په کابل کې زېږېدلی دی. ده خپل منځیني تحصیلات په استقلال لیسې کې سر ته رسولي دي. په فرانسې کې يې د کور جوړونې (مهندسۍ) په څانګه کې درس ويلی و او د کابل په حربي پوهنتون کې يې نظامي زده کړه وکړه. دی په ۱۹۳۴ کال کې د مشرقي د ولایت نایب الحکومه شو. په ۱۹۳۵ کال کې د کندهار د ولایت نایب الحکومه په حیث مقرر شو. د ۱۹۳۹ کال څخه تر ۱۹۴۷ کال پورې د مرکزي قواؤو قوماندان و. په ۱۹۴۸ کال کې د يوه کال له پاره داخله وزیر شو. د څه مودې لپاره پاریس کې افغان سفیرو. د ۱۹۴۹ کال څخه تر ۱۹۵۳ کال پورې د شاه محمود خان په کابینې کې د دفاع وزیر و.

محمد داود د ۱۹۵۳ کال د سپتمبر پر شپږمې نیټې د کابینې په جوړولو موظف کړای شو. دی يو وطنپال او د عیاشۍ او رشوت خوړلو څخه يو مبرا افغان و. صادق مسلمان او ډېر با تقوا و. دی د رهبرۍ شوي اقتصاد پلوی ښکارېده او په عین حال کې يې زمیداري (کروندګرۍ) او خصوصي پانګونه هم تقویه کوله. دی د هغو کسانو سره چې امتیازات يې د ځان له پاره غوښتل ښه نه و

حتى ده د خپل فاميل د امتيازاتو سره هم مخالفت کاوه. ده د خپل له نوم څخه رسماً د والا حضرت نوم لرې کړ. محمد داود خان غوښتل چې د افغانستان څخه يو مترقي د سياسي ، اقتصادي او اجتماعي پلوه پرخپلو پښو ولاړ هېواد جوړ شي . ده غوښتل چې په هېواد کې دې افراط تفريط ورک شي او د ژوندانه په وسيلو کې د منظمو اقتصادي او سياسي پلانونو په جوړولو سره تعديلات منځ ته راشي.

خداى (ج) ببښلى محمد داود خان د (۱۳۵۲) د چنګاښ د (۲۶) د سه شنبې په سهار د راديويي وينا په اورولو سره په هېواد کې جمهوري نظام اعلام، هغه ته د قانونيت ورکولو او استقرار لپاره يې د ۱۳۵۲ د زمري په (۴) د رژيم د پاليسۍ پر بناء د سياسي، قضايي، اداري او اقتصادي مسئلو په هکله تقنيني فرمانونه صادر کړل، دغه فرمانونه چې انفاذ يې د (۱۳۵۵) فصلونو او (۱۳۶) مادو کې اساسي قانون د هېواد له حقوقپوهانو څخه د جوړې کميټې په واسطه تسويد او د (۱۳۵۵) د سلواغې د مياشتې د لويې د اساسي قانون تر تصويب او توشېح پورې اعتبار درلود، لومړۍ ګڼه فرمان يې په (۹) مادو، دوه يمه ګڼه په (۴) مادو او دريېمه ګڼه يې په (۱۸) مادو کې تنظيم شوي وو.

وروسته يې په نورو قانوني نوښتونو هم لاس پورې کړ قوانين يې په تقنيني فرمان نافذ او وروسته يې د ۱۳۴۳ کال د اساسي قانون له مخې په (۱۳) جرګې لخوا تصويب شو چې د هغه د (۱۲۴) مادې پر موجب يې د ملي جرګې جوړېدل د (۱۳۵۸) کال د ليندۍ په مياشت کې اټکل کړي و.

د دې دورې تقنيني فعاليت د ژوند په مختلفو مواردو کې له (۲۶) قوانينو، (۱۲) تقنيني فرمانونو، (۳۰) اساسنامو، (۱۲) مقررو څخه عبارت و چې په ټوله کې کولاى شو د مترقي ماليې له قانون، د جزاء قانون په (۵۲۳) مادو کې او مدني کود په (۲۴۱۶) مادو کې، ، ارضي اصلاحاتو قانون، د بانکونو قانون، د ځمکو (اراضۍ)، د سروې، تصفيې او ثبت قانون، د بيمې قانون، د کورنۍ او بهرنۍ پانګې اچونې قانون، د کوپراتيفونو قانون، د سوداګرۍ او صنايعو د اطاقونو قانون، د استهلاکي موادو د ماليې قانون، د سياحت قانون، د ټرانسپورت او د جادې د ترانزېټ قانون او د بېسيم د دستګاه له قانون څخه يادونه وکړو.

نا ويلي دې پاته نشي د جزاء او مدني قوانين چې د محمد داود خان په وخت کې د هېواد د قانونپوهانو لخوا د يو شمېر اسلامي هېوادونو له هغې جملې څخه د مصر، الجزاير او عراق د هېواد د متخصصينو په همکارۍ تدوين شول، د هېواد د حقوقي اړيکيو په تنظيم کې اغيزمن سند ګڼل کېږي.

## د سردار محمد داود خان د مړي موندل

مړي څنګه وموندل شول ؟ عبدالولي باز (د بالاحصار د کوماندو افسر او د محمد داود د سرياور ورور) د داود خان او کورنۍ د غړو مړي د څرخي پله د پوليګون په سيمه کې وموندل شول. په تېرو دېرشو کلو کې ډېرو دا هيله درلوده ، چې ځان په هغه راز خبر کړي چې د افغانستان د لومړي ولسمشر محمد داود او د هغه د کورنۍ له وژنې او پټې خښېدنې سره يې تړاو درلود ، خو د دغه راز سپړل دومره ستر کار و چې له يوه کوټلي حکومتي پلان او زړه سوي پرته يې بشپړول ناشوني برېښېدل. د ۱۳۸۷ لمريز کال په پسرلي کې دغه هيله د ولسمشر حامد کرزي تر فرمان وروسته تانده شوه او وغوړېده. حکومتي کميسيون د هغه په لارښوونه د پلټنو کار پيل کړ. زه هم تصادفا" همدغه مهال په کابل کې وم. د داود خان د ورور له لمسي محمد نادر نعيم سره مې چې له وړاندې نه مو سره پېژندل ، د مړو د موندلو په چاره کې پر يوه کاري پلان سلا وکړه. ډېر ځله به موږ دواړه د سردار محمد داود له لمسي محمود غازي سره په ګډه څرخي پله ته تلو او خپلې پوښتنې او ګروېږنې به مو کولې. د کميسيون غړو د پخوانۍ څلورمې زغره والې لوا شاته بيديا کې په کار پيل کړی و. هلته د سهار له اتو نه د مازيګر تر درېو بجو پورې پنځوس- شپيته تنه کارګر د کميسيون تر نظر لاندې په بېلا بېلو ساحو کې په کيندنو بوخت وو. لويې کېږدۍ درول شوې وې ، د څښاک او خوراک غم خوړل شوی و. هر کارګر ته د ورځې درې سوه افغانۍ ورکول کېدې ، خو په کومه ورځ چې د سردار محمد داود او د هغه د کورنۍ د غړو مړي وموندل شول ، پر دغې تنخواه سل افغانۍ نورې هم د انعام په توګه ورزياتې شوې . هرو مرو به لوستونکي ته پوښتنه پيدا شوي وي ، چې مړي څنګه وموندل شول؟ کميسيون خپل کار په رسنيو کې له دې اعلان نه پيل کړی و ، چې هر چا ته د لومړني ولسمشر د خښېدو ځای معلوم وي ، له ډاره پرته دې ورشي او خبر دې ورکړي . د کميسيون غړو پخپله هم د پخواني کمونست رژيم له يو شمېر جګپوړو غړو سره تماسونه ونيول ، خو ګټه يې نه درلوده . هر يوه به يې ويل چې نه پوهېږي او خبر نه دي . ځينو خلکو له دننه او بهر نه ټېلېفونونه وکړل او يو شمېر احتمالي ځايونه يې وښودل . هره ښښه کميسيون ته يوه نوې دنده وه او چې کوم ځای به وښودل شو ، هلته به کار پيلېده . نژدې دوه اوونۍ وروسته سردار نادر نعيم خبر راکړ چې له پکتيا نه د پخوانۍ څلورمې لوا يو افسر ټېلېفون کړی او ادعا کوي چې د خښېدو اصلي ځای ورمعلوم دی. پادشاه مير يوه اوونۍ وروسته پخپله کابل ته راغی او چې د کيندنو ځای يې وليد ، نو ويې ويل چې تېروتي يو . تقريبا" درې کيلومتره وړاندې يې د صافي غره تر لوېديځې لمنې بوتلو چې د څلورمې لوا شمال

کېږي. د څلورمې لوا مخکنی افسر پادشاه میر لومړنی کس و چې د صافي غره په لمنو کې یې د ولسمشر محمد داود او د هغه د کورنۍ د غړو احتمالي قبر راوښود. کله چې وروروسېدو پادشاه میر وویل: همدا ځای دی. خو تر لږې شېبې وروسته هیجان په نهیلۍ واوښت. داسې برېښېده چې هغه هم ځای نه پېژني. هرې خواته یې وکتل او بیا یې په عاجزۍ وویل: "وروڼو! دېرش کاله تېر شوي او د ځمکې مخ اوښتی نو ځکه تیک نه پوهېږم چې قبرونه به چېرته وي". همدغه مهال یو لاروی تېرېده او د کمیسیون له کوم غړي نه یې وپوښتل چې دلته په څه بوخت یاست؟ کله چې وپوهېده نو په منډه ولاړ او د نژدې کلي دوه کسان یې راخبر کړل. حمیدالله او مولا گل دواړه د کلي ملکان راوختل، چې له دواړو سره خورا حساس معلومات و. مولا گل ویل که یې حکومتي اعلان اورېدلی وای نو لا دمخه به مرستې ته راغلی وای. د ده سبز اوسېدونکي مولا گل ته د ولسمشر محمد داود او د هغه د کورنۍ دغړو د خښېدو تیک ځای معلوم و. مولا گل تقریبا" شپېته متره شاته راغی، پر یوه ځای ودرېده او ویې ویل: یو قبر دادی. نژدې سل متره ها خوا ولاړ او په گوته یې اشاره وکړه: دویم یې دادی. مانا دا چې مړي په دوو ډله ییزو قبرونو کې په جلا ډول خښ شوي دي. پر دواړو ځایونو کېدنې پیل شوې. تر څه کار وروسته د مړو نښې ورو ورو رابرسېره کېدې: په یوه قبر کې دیارلس او په بل کې شپاړلس مړي وموندل شول: ښځې، کوچنیان او نارینه. له دووو ډله ییزو قبرونو ټول ۲۹ مړي وموندل شول چې ښځې، کوچنیان او نارینه په کې وو. په تېره بیا د کوچنیانو هډونه چې یو یې لا هم په خپلې مور پورې کلک نښتی و، زړه بوږنوونکي برېښېدل. وروسته روښانه شوه چې دا د ولسمشر لمسی حارث و چې د ویشتل کېدو پر مهال د مور په غېږ کې و. د غاړې جامې، بوټونه او د مړو اړوند نور وسایل هم وموندل شول. له مړو سره څنگ ته د هغوی بوټونه، جامې او نور څیزونه هم پراته وو. مړي وروسته یو یو د ملي امنیت روغتون ته ولېږدول شول او هر یو یې تر لازمو پلټنو وروسته تشخیص شو.

## دداؤدخان دوژلو پلان

پادشاه میر په کودتا کې د ښکېلې یوې مهمې لوا افسر او د کودتا د یوه مهم پوځي غړي اسلم وطنجار تولگیوال و. که څه هم د خلک دیموکراتیک گوند غړی نه و، خو غړو یې د پېژند گلوی له مخې پرې باور کاوه. ده ته د کودتا پر بله ورځ نوي قوماندان لارښوونه کړې وه، چې د خپلې قطعې په سیمه کې څو قبرونه چمتو کړي. کله چې مړي د خښنېدو لپاره وروړل شول، نو پادشاه میر وپېژندل چې دا د ولسمشر محمد داود او د هغه د کورنۍ غړي دي. هغه وایې، کله چې کودتایي افسران په هغه تیاره شپه کې ولاړل نو مړي یې یو د بل ترڅنگ کېښودل او له پاسه یې پرې د ورغلي موټر ترپال



وغوړاوه. پادشاه میر وایي چې تر کودتا دوه اوونۍ وروسته یې خپله دنده پرېښوده او پاکستان ته ولاړ چې د رژیم خلاف مبارزه وکړي. دی وایي چې په دغو دوو اوونیو کې یې د پخواني صدراعظم موسی شفیق د چانماري کېدو صحنه هم په خپلو سترگو لیدلې چې د واکمن گوند د مشرتابه یوه غړي یې لارښوونه کوله. د مولاگل نکل بیا د کلي د یوه ساده بزگر او د یوه زلموټي کیسه وه. مولاگل ویل چې پر دغه سیمه یې د تلو راتلو لارتېره شوې وه. یوه ورځ چې له معمول سره سم په خپله لار روان و، په دغه سیمه کې یې د عسکرو او موټرو ډېرسارې گڼه گوڼه لیدلې وه. د یوه عسکر له خولې یې اورېدلي وچې دلته داود خان او د هغه د کورنۍ غړي خښ شوي او دی یې ساتنې ته درول شوی دی. څو ورځې وروسته چې پهره ولاړه نو ده د مور په لارښوونه د قبرونو ځای په نښه کړ او په مذهبي دود یې حلوا ورته راوړه او په لارویو یې وویشله .... دادی دېرش کاله وروسته له مولاگل سره د خپل زلمیتوب د مهال حافظې مرسته وکړه او د افغانستان د لومړي ولسمشر محمد داود او د هغه د کورنۍ د ځینو غړو د خښېدو تیک ځای یې کمیسیون ته وښوده ....مولاگل او کلیوالو یې اوس پر هغه ځای زیارت جوړ کړی دی.

اخځني ،دافغانستان ملي تاریخ.

۱. ‌أ د سردار محمد داود خان وېپاڼه

http://www.bbc.co.uk/pashto/news/story/۲۰۰۹/۰۳/۰۹۰۲۱۵_m_daudkhanabdulwalibaaz.shtml

## د غوايي کودتا او د داود خان وژل

مخکې له دې چې د (۱۳۵۷) ل کال دثور په اوومه رڼا واچوو دموضوع د ښه روښانتیا لپاره به د سردار محمد داود خان د جمهوري ریاست په مّوده (۱۳۵۲) ل کال باندې خبرې وکړو، چې د سردار محمد داود خان کودتا څرنګه وشوه؟ چا وکړه؟ او موخه یې څه وه؟



سردار محمد داود خان په (۱۳۴۲) ل کال له صدارت څخه استعفا وکړه او لس کاله په کور ناست وو، د داودخان په انزوا کې ژوند تېرولو کمونستانو ته زمینه برابره کړه، چې د داود نه استفاده وکړي او دخپلې کورنۍ په خلاف چې کومه عقده او کینه ورسره پیدا شوې وه هغه هم سېرابه کړي.

سره د دې چې داود خان د شخصیت په لحاظ ډېر پاک او داخلاقي سجایاؤ څخه غني اوپر وطن مین شخصیت ؤ، خولېونی مزاجه او ځان غوښتنه پرې هم غالبه وه.

داودخان دکمونستانو او په ځانګړې ډول پرچمیانو په ملاتړ او حمایه باندې د چنګابښ کودتا وکړه داود خان هغه کسان دکابینې دغړو په توګه معرفي کړل، چې د چنګابښ د شپږویشتمې نېټې دکودتا فعال غړي وو. دمرکزي کمېټې غړي هر یو حسن شرق، غلام حید رسولي، عبدالقدیر نورستانی، فیض محمد، مولاداد، سرور نورستانی، یوسف فراهي، عبدالله، عبدالحمید محتاط، پاچاګل وفادار، غوث الدین، فاضل اوضیاء مجید دکمېټې څه نور کمونستان هم دوزیرانو په توګه انتخاب کړل، چې له هغې ډلې څخه فیض محمد چې عسکري تورن او پرچمي ؤ دکورنیو چارو وزیر، نعمت الله پژواک کمونست دمعارف وزیر، عبدالحمید محتاط مخابراتو وزیر ستم ملي ګوند پاچا ګل وفادار دسرحدونو وزیر، جیلاني باختري دپرچم ګوند دکرنې وزیر، محمد خان جلالر د کی، جی، بی (K.G.B) غړی دسوداګرۍ وزیر.

دسردار محمد داودخان دکابینې اکثره غړي کمونستان ؤ، خلق او پرچم هغه کوله چې د هېواد په استقرار کې د داود موجود یت د یوسمبول په حیث وساتي، او ددولت ټول واک د دوی په لاس کې وي. نعمت الله پژواک چې دپوهنې وزیر وو د ببرک په مشوره د اتیا (۸۰) تنه کمونستانو ښوونکو

نومونه دکورنیو چارو وزیر فیض محمد ته ورکړل او هغه دحسن شرق له لارې له د اود خان څخه تائید واخیست او هغوی یې ټول په افغانستان کې د ولسوالانو او علاقه دارانو په توګه وټاکل.

خپل مخالفین له منځه وړل:

کمونستانو هڅه کوله چې خپل مخالفین له منځه یوسي چې په دې لړۍ کې تریوبریده بریالي هم شول، هاشم میوند وال او موسی شفیق چې دظاهر شاه د پېر صدراعظمان ؤ ویې نیول او بیایې ووژل، همدارنګه د وخت اسلامي نهضت (جوانان مسلمان) ډېر شمېر غړي یې ونیول او شهیدان یې کړل. همدا علت ؤ چې جوانان مسلمان د داود خان په خلاف نظامي پاڅون وکړ.

کله چې داود خان دکمونستانو په خامیو او غلطیو پوه شو نو په خپله سیاسي تګلاره کې یې د بدلون راوستلو په موخه وغوښتل چې یوائې پر روسیې اتکا ته پای ورکړي، او له نورې نړۍ څخه دانزوا له حالته ووځي، لمړی سفر یې په (۱۳۵۵) لمریز کال د بوټو په بلنه پاکستان ته وکړ. په (۱۳۵٦) لمریز کال جنرال ضیاء د داود خان په بلنه کابل ته راغی، همدارنګه په (۱۳۵٦) لمریز کال داودخان د مارشال ټیټو لیدنې لپاره بلګراد ته ورغی، ورپسې یې مصر، سعودي عربستان، لیبیا او ایران ته سفرونه وکړل په دې سفر کې محمد خان جلالر هم ورسره ؤ. محمد خان جلالر د دغه سفر ټول جزئیات د روسې سفارت ته ورکړل او روسان یې د داودخان په اړه حساس کړل.

د دې نه وروسته یې دننه په افغانستان کې سفرونه وکړل، خو دا د داود خان ورستی شپې ورځې وې، روسانو د هند کمونست ګوند همدارنګه دپاکستان عوامي نیشنل ګوند ته وظیفه ورکړه چې د داود خان دحکومت په سقوط کې رول ولوبوي او هغوی عملاً په کار پیل وکړ. په افغانستان کې دننه دخلق او پرچم ګوندونو ترمنځ دروغې جوړې منډې شروع شوې، او د روسیې سفیر وتوانیده چې د دوی ترمنځ یو ائتلاف رامنځ ته کړي.

په دې شپو ورځو کې میر اکبر خیبر ترور شو خیبر په (۱۳۳۰) ل کال له حربي پوهنتون څخه فارغ شوی ؤ، چې دمحمد نادر خان پرقبر یې دګلونو دګېډۍ په نه ایښودلو سره دفراغت سند ورنه کړی شو او څوکاله بندیې هم تېر کړ. دخیبر د ترور په ارتباط ډېر ضد او نقیض نظریات موجود دي خو ددې ټولو غورچاڼ دادی چې خپله روسانو دافغاني کمونستانو په لاس ترور کړ. کوم اختناق چې داودخان په ملت راوستی ؤ او په اخر کې کمونستانو هم آه نشو کولی دخیبر په مرګ مات شو او دمړي سره یې یولوی مارش وکړ او داود خان په ضد یې شعارونه ورکړل او داودخان ته یې خپل زور وښوده. دخیبر د ترور په ارتباط ډېر ضد او نقیض نظریات موجود دي خو ددې ټولو غورچاڼ دادی چې خپله روسانو دافغاني کمونستانو په لاس ترور کړ. کوم اختناق چې داودخان په ملت راوستی ؤ

او په اخر کې کمونستانو هم آه نشو کولی دخیبر په مرګ مات شو او د مړي سره یې یولوی مارش وکړ او داود خان په ضد یې شعارونه ورکړل او داودخان ته یې خپل زور وښوده.
د دې نه وروسته دکمونستانو مشران نورمحمد ترکی، ببرک کارمل، شرعي جوزجانی، داکتر شاه ولي او.... و نیول شول او ځیني تر تعقیب لاندې ؤ.
د عبدالقدیر نورستاني او غلام حیدر رسولي سستو او بې پایې کړنو کمونستان دافغانستان په نظامي مراکزو کې دخوځښت لپاره چمتو کړل.
په ۱۹۷۸م کال داپریل په ۲۷مه (۱۳۵۷) لمریز کال دثور په اوومه په یوناڅاپي توګه دځمکنیو زغره والو او هوایي قوتونو له خوا پرجمهور رئیس محمد داودخان او دهغه په دولت یوه کودتا وشوه چې دثور داوومي کودتا یا دهغه وخت په اصطلاح یې په (انقلاب) شهرت وموند. په کودتاکې ځوانو افسرانو او دخلق دیموکراتیک ګوند درهبرۍ غړو برخه درلوده خو انکار نه منونکي شواهد دا په ډاګه کوي، چې شوروي په مستقیمه توګه لاس پکې درلود. دکودتا عمده عامل دا وو چې داود خان دخپل حکومت په وروستیو کې دپاکستان سره مناسبات نرم کړل او دایران سره یې نژدې اړیکې ټینګې کړې. مصر، سعودي عربستان، لیبیا، او کویت ته یې سفرونو کې دهغوی دمرستو وعدې هم حاصلي کړي او تر دې ټولو غټه خبره داوه چې دامریکا ولسمشر جیمي کارتر دعوت ورکړ او پروګرام دا وو چې په همدغه (۱۹۷۸) م کال امریکا ته هم سفر وکړي.
دغه سفرونه چې دشوروي اتحاد داجازې پرته روان ؤ، هغوی ته یې لوی تشویش ایجاد کړی ؤ، او په دې پوه شول چې افغانستان یې له لاسه وځي او دبلې خوا د داود خان او برژنیف ترمنځ ټکر چې په کرملین کې راغلی وو، شوروي اتحاد د داسې حرکت انتظار نه درلود نو ځکه یې د داود خان دچپه کولو پلان جوړکړ، چې لمړی سر کې دخلق او پرچم ترمنځ د اتحاد د راوستولو او بیا یې په اردو کې خپل درې سوه تنه مشاورین ودې ته وهڅول چې د محمد داودخان په ضد دنظامي پاڅون پر وخت جدي مرسته وکړي. داودخان د خلق او پرچم د کودتا تصور څخه دومره لرې وو چې کله په ارګ ډزې پیل شوې داسې فکر یې وکړ چې کودتا دمسلمانانو لخوا په لار اچول شوې، داودخان دا خبره له یاده ایستلې وه چې دافغانستان اطلاعاتي دفتر او (ملي مصونیت) ټولې حساسې شبکې د (K.G.B) تر نظر لاندې وې.

## پېښه داسې پیل شوه:

کله چې خیبر ترور شو دا دحمل میاشت وه، هغه اختناق چې د داود خان رژیم راوستی و هغه دخیبر د مرګ سره کمونستانو هغه خپسه دخپل ځان لپاره ماته کړه او دخیبر مړي سره یې مارش وکړ، د رژیم

په ضدیې شعارونه ورکړل نور نو روسانو او افغاني کمونستانو د داودخان په ضد سپکې سپورې شروع کړې. داودخان دکمونستانو دمشرانو دنیولو امر صادر کړ. نورمحمد ترکی، ببرک کارمل .... ونیول شول، د شب های کابل لیکوال وایې چې د دوی د نیولو امرماته شوی وو، خوکله چې حفیظ الله امین ته ور شپې ناوخته ورغلم هغه زما دمشر ورور تولګیوال وو دوه میلمانه ورسره وو، هغوی رخصت شول ماته یې وویل چې اوس ډېر ناوخته دی تاسو چای وڅښئ او دمه وکړئ سهار به وختي درسره لاړشم. حفیظ الله امین د کودتا نه وروسته د کتاب مؤلف ته کیسه کوي چې هغه دوه میلمانه جنرالان وو، نیمه کودتا مو ترتیب کړې وه او نیمه نوره مو بیا ستاسو داستراحت نه وروسته په تلیفون ترتیب کړه.

جګړن محمد رفیع دڅلورمې زغره والې قواوو رئیس ارکان، چې قوماندان یې سرور نورستاني شوروي ته د استراحت لپاره تللی ؤ، همدارنګه وطنجار د دفاع وزیر غلام حیدر رسولی ته پشنهاد وکړ چې دتعلیم او تربیي د پروګرام مطابق باید ټانګونه او زره پوښونه وازمویل شي او کاریې وکتل شي رسولي هم موافقه ورسره وکړه. رفیع او وطنجار به د څلورمې قوا وسایل راوباسي او (۱۵) زغره لرونکی قوا به هم دځان سره ملګرې کوي که څوک مخالفت کوي هغه به له منځه وړي. وطنجار په هغه استعلام کې لاسوهنه کړې وه چې د ټانګونو او زرې پوښونو د ازموینې لپاره هرو لسو ټانکونو ته د شپږو ګولیو (مرمیو) د ورکولو د اجازې هیله کړې وه.

نو وطنجار د (٦٠) پرځاي یوصفر ورزیات کړ او (٦٠٠) ګولي له ځېرمتون نه واخستې چې په همدغو ګولیو بیا د جمهوري ریاست مانۍ وویشتل شوه. ټانکونه د سهار په لسو بجود کابل لورته رواخوځېدل دا د ثوراومه ورځ وه همدغه ورځ په ماسپښین کې د داودخان دکابینې غونډه روانه وه داودخان ته ډېرژر د ټانکونو دراتلو خبرورکړی شو. داود خان رسولي او دجمهوري ریاست ساتندویه ټولګي قومندان جګړن ضیاء ته امروکړ چې حالت روښانه کړي ضیاء پوښتنه وکړه جګتورن محمد عمر ځواب ورکړ چې هغه لوا مشرد جمهوري ریاست مانۍ ته د ساتنې لپاره راليږلي دي عمر ته امر وشو چې بیرته لوا ته ستون شي خو امر یې ونه منلو دې پسې نوره قوه هم راورسېده د جمهوري ریاست مانۍ نوره بیخي پرټانکونو کلابند شوه د دې قوې مشري اسلم وطنجار، سید داود تړون، نظرمحمد، شیرجان مزدوریار او احمدجان په غاړه درلوده. وطنجار د غرمې په دولس بجو د جمهوري ریاست پرمانۍ دلمړي ډزامر وکړ وروسته نورو ټانکونو هم ډزې وکړې.

(دافغانستان مېړانه اوغمیزه) دکتاب لیکوال وایي چې د افغانستان سیاسي ژوند وروستیو لسوکلونو پېښو له ډېرو مهموګډون کوونکوسره شخصي اړیکواوخبرواترو زه په دې باوري کړم چې

په دغه پېښو کې بنسټیز رول د عبدالقادر په مشرۍ د افغانستان د کمونستانو ګډې جبهې په نوم پټ سیاسي سازمان لوبولی دی. د یادونې وړ ده چې نوموړی په (۱۳۵۲) کال له پاچاهۍ ضد کودتا نه وروسته د هوایي ځواک د قوماندانۍ له څوکۍ نه ګوښه کړی شو. د یولړ شمیرنوله مخې نوموړي سازمان (۶۰۰) غړي او دوه زره مینه وال درلودل، دی په قوم چارایماقي ؤ نو په خلق او پرچم کې یې هم چندان محبوبیت نه درلود.

مولف لیکي چې زه دا سړی دېربنه پېژنم هغه خپل دغه کار (کودتا) تېروتنه وګڼله ځکه هغه د خلق اوپرچم ډلو او ټپلو داړلی اوزیبښلی ؤ.

د دې ډول تاریخي دندو سرته رسولو لیاقت او استعداد پکې نه وو. جنرال لیاخوفسکي وایي چې وروستیو پېښو او پرمختیاوو وښودله چې د قادر نظر صحیح دی.

کودتاه روانه وه او هوایي قواو هم برخه درلوده ځیني تاریخ لیکوالو لیکلي چې د تاشکند څخه هم پروازونه کېدل او د جمهوري ریاست ماڼۍ یې بمباروله. د سردار محمد داود خان اکثره ملګري او دوستان چې اردوکي یې درلودل د کمونستانو له خوا په نښه شوي ؤ او د کودتا په جریان کې یې ووژل یوازې د تاجبیګ د دافع هوا غونډ د مرکزي درستیزوال تورن جنرال عبدالعلي وردګ د تشویق له امله مقاومت وکړ او دکودتاچیانودوه الوتکې یې راوغورځولې.داودخان خپله کورنۍ په ځان را ټوله کړه تسلیمېدو ته یې غاړه نه کېښودله او نه د تېښتې په لټه کې شو کولای یې شو چې د فرانسې سفارت ته تللی وی کوم چې د ارګ سره یې نښتی او ګډ دیوال درلود، مګر داکاریې ونه کړ مقاومت یې وکړ اودا به یې ویل چې نه غواړي چې د روسانو په ژوبڼ کې بندي شي. داودخان وغوښتل چې د اردو د اعلی قومندان په حیث د اردو اداره او مشري پخپله غاړه واخلي نو ده له دې امله هغه مخابرې ته لاس کړ چې په همدې منظور تل دده په مېز پرته وه او عسکري قطعوته به یې نېغه لاربښوونه پرې کوله خو ناڅاپه متوجه شو چې د مخابرې د ستګاه له کاره وتلې د مخابرې کوډ او چینل بدل شوی نو ویې ویل چې (روسها کارخود کرد) روسانو خپل کار وکړ.

داود خان خپله کورنۍ په ځان را ټوله کړه تسلیمېدو ته یې غاړه نه کېښودله او نه د تېښتې په لټه کې شو کولای یې شو چې د فرانسې سفارت ته تللی وی کوم چې د ارګ سره یې نښتی او ګډ دیوال درلود، مګر داکاریې ونه کړ مقاومت یې وکړ اودا به یې ویل چې نه غواړي چې د روسانو په ژوبڼ کې بندي شي.

ارګ د هوایي او زمیني عملیاتولاندې وو د ګارډ مقاومت هم وار په وار کمېده.

د داودخان دکورنۍ غړي يې يو په بل پسې زخمي اود دوو زامنو عمر او خالد زخمي کېدل اومرګ يې پخپله وليده بالاخره د کمونستانو درې تنه واړه رتبه کودتاچيان چې مشري يې تورن امام الدين کوله د داود خان حضورته ورغلل اود تسيلمۍ غوښتنه يې ترې وکړه پر امام الدين يې د خپلې تومانچې وروستۍ ګولۍ هم فيرکړه اما م الدين يې زخمي کړ مګر مړ نه شو. د امام الدين نورو ملګرو پر محمد داودخان د ګوليو باران پيل کړ او په هغه ځاى کې چې دى د افغانستان تر ملي بيرغ لاندې ولاړ وو پرمرميو غلبېل غلبېل کړ او د کورنۍ نور نارينه غړي يې هم ووژل او ښځينه غړي يې د څرخي پله زندان ته يوړل هغه زندان چې داود خان د خپلو مخالفينو لپاره په ډېره عصري بڼه جوړ کړى وو.

کمونستانو خپل مشران د کابل د توقيف ځاى څخه رابهر کړل اوپه ډېره خوشحالۍ او غرور يې په ټانک کېنول او دکودتا دعملياتو مرکزکابل راډيو ته لاړل، حفيظ الله امين د وياندوى او انانسر په توګه دکابل راډيوله لارې جګړن اسلم وطنجار او ډګروال قادر معرفي کړل چې وطنجار په پښتو اوپه درې ډګروال قادر چې په (سګ) يې شهرت درلود پوځي حکومت اونور رژيم اعلان کړي.

د کودتا د قايميدو درې ورځې وروسته نظامي شورې پرځاى انقلابي شوروي اعلان شوه اود دولت رهبري داسې وټاکل شوه: (۱) نورمحمد تره کی جمهورريس دانقلابي شوري ريس او صدراعظم (۲) ببرک کارمل دجمهوري رياست انقلابي شورى اوصدارت اول مرستيال (۳) حفيظ الله امين د صدراعظم مرستيال او خارجه وزير (۴) محمد اسلم وطنجار د صدراعظم مرستيال اودمخابراتو وزير. (۵) عبدالقادر د دفاع وزير اوداسې نور.

په دې کې (۱۳) وزيران خلقيان او (۸) پرچميان وو کله چې وزارت خانو ته ولاړل هرچا دخپل جناح غړي په ټولو ارګانونو نصب کړل کارونه فلج شول د حفيظ الله امين او کارمل ترمنځ ناندريو اوبدو تبليغاتو فضا ډېره توده شوه. دکابل په سياسي ټولنو کې سخت نفرتونه راپورته شول خو له دې معلومېدل چېد نورمحمد ترکي اته فرمانونه يو د بل پسې د ملت غوږونو ته رسول کېدل چې هغه هم د ملت د پاڅون پيلامه وه روسي مشاورين راغلل او په وزارتونوکي يې خپل کار پيل کړ، دغه مشاورين اکثرا داسې وو چې د افغانستا ن په اړه يې هيڅ ډول معلومات نه درلودل د اسلام نه خو يې بوى هم نه وړه او د افغاني ټولنې د حالت په باره کي ورته يواځي سرکب معلومات ورکړل شوي و. دا وضع تصادفي نه ده بلکې يو منظم پلان ترکار لاندې دى او دا دواړ، لوري بايد يوځل بيا يو د بل پرضد تخريب پيل کړي، د نورمحمد ترکي اته فرمانونه يو د بل پسې د ملت غوږونو ته رسول کېدل چې هغه هم د ملت د پاڅون پيلامه وه روسي مشاورين راغلل او په وزارتونوکي يې خپل کار پيل کړ،

دغه مشاورین اکثرا داسې وو چې د افغانستا ن په اړه یې هیڅ ډول معلومات نه درلودل د اسلام نه خو یې بوی هم نه وړه او د افغاني ټولنې د حالت په باره کي ورته یواځي سرکب معلومات ورکړل شوي و. هو دغه کسان د خپل سیستم بچي وو او بې له ځانګړو ارمانونو او خیالونو سره ډیر ځله به یي دافغانستان حالت سره هیڅ اړخ نه لګاوه روزل شوي وه، دوی لمړی ځل د پردیو روحیاتو ټولنیز جوړښت، دودونو او رواجونو سره مخامخ شول او هغوی هغه مهال کمونستان دې ته هڅول چې په بشپړه توګه د شوروي اتحاد دکمونست ګوند تجربې کاپي او په کلکه یې پلې کړي. په دي مشاورینوکې داسې کسان هم وو چې په روسیه کې نل غځوونکي وو او د کابل په پولي تخنیک انستیتوت کې یې د مشاور په توګه دنده سرته رسوله. یوه پېژندل شوي چارواکي په دې اړوند داسې لیکلي: چې د وزیرانو شورا غونډه به پیل شوه ټول به د میزترشا کیناستو.

هروزیرسره به خپل مشاور راننووت غونډه به روانه وه خبرواتروبه زور واخیست مشاورین به ورو ورو مېزته رانږدې کېدل اوله دې سره سم به وزیران له مېزه لرې کېدل چې په پای کې به یواځې مشاورین دمېز تر شا پاتې شول او یوله بل سره به په ناندریو اخته شول د روسي مشاورینو خو دا حال وو او د سولي په لحاظ یې هم همدغسې افراد رالیږل.

که بل طرف افغان کمونستانو ته وګورو چې ترکي د دوهم ټولګي فارغ الکساندر مایورف د جنرال رفیع په اړه چې یو وخت د کمونستانو په حکومت کې د دفاع وزیرۇ وایي: زه په روسیه کې د حربي پوهنتون استاذ وم چې رفیع هلته تحصیل کولو دی زما یو مضمون کې ناکام شو د دیپارتمنت ریس رانه وغوښتل چې دی کامیاب کړم زما ځواب ورته دا وو چې زما خپله خوښه ده بیا دپوهنځي ریس او بالاخره د پوهنتون ریس هم غوښتنه همدا وه او زما ځواب هم یو وو. په اخر کې کی جي بي KGB جلب کړم او راته یې وویل چې نور نه پوهېږم خو دی کامیاب کړه وعده مې ورسره وکړهالتحصیل وو، چې کله داود خان قومي تخلصونه منع کړل نوموړي خپل تخلص په (ترقي) بدل کړ. د خلقیانو په وینا ترکي په افغانستان کې د کارګر ګوند بنسټ ایښودونکی او دکمونستي رژیم لمړی دولتي مشر دی. همدارنګه الکساندر مایورف د جنرال رفیع په اړه چې یو وخت د کمونستانو په حکومت کې د دفاع وزیرۇ وایي: زه په روسیه کې د حربي پوهنتون استاذ وم چې رفیع هلته تحصیل کولو دی زما یو مضمون کې ناکام شو د دیپارتمنت ریس رانه وغوښتل چې دی کامیاب کړم زما ځواب ورته دا وو چې زما خپله خوښه ده بیا دپوهنځي ریس او بالاخره د پوهنتون ریس هم غوښتنه همدا وه او زما ځواب هم یو وو. په اخر کې، کی جي بي KGB جلب کړم او راته یې وویل چې نور نه پوهېږم خو دی کامیاب کړه وعده مې ورسره وکړه چې دوهم چانس کې به یې کامیاب کړم. کله چې افغانستان ته

دلوی سلاکار په توګه راغلم روسي مشاورین مې ولیدل او د رفیع غونډې افغاني وزیران مې ولیدل ډ خپګان سره مي وویل چي دا انقلاب د کامیابېدو نه دی.
الکساندر وایي: ما په خپل ژوند کې درې قسمه خلک ډېر بد راتلل چې احمق، لټ، تمبل، او شراب خور خو بد بختانه چې افغانستان ته راغلم د ادرې واړه صفتونه یوسړي کې وو چې هغه کارمل ؤ.
د تره کي په وخت کې زموږ ولسوالي ته چه کوم ولسوال رالیږل شوی وو هغه د ننګرهار په دارالمعلیمن کې ناکام شوی وو او کمونست ګوند داسې سړی په خپل حکومت کې ولسوال کړ، نو افغاني کمونستان همغه د داود خان خبره چې واړه هلکان وو په هیڅ نه پوهېدل دوی ددې هېواد تاریخ، دین، او رواج سره نا اشنا وو د شوروي اتحاد په پله یې پل کېښوده او دهغوی خیالي کورکالي ډوډۍ ورته بلا تشبیه جنت ښکارېدل نوریې هیڅ نه لیدل چي د دوي دواړو (روسانو او افغاني کمونستانو) بې تجربګۍ او بې دینۍ انجام دی چه تر او سه افغانان په سره بټۍ کې پراته دي

## د کمونستانو جنایات

تره کي د خپل ګوند غړو ته دستور ورکړی ؤ چې په هرډول یې کولای شي خپل مخالفین وټکوي او حفیظ الله په وینا چې ویل به یې: (( د افغانستان د اوولس ملیونه نفوس نه یوازې یو ملیون موږ ته بس دی ))
په افغانستان کې د خلکو سرمال او ناموس محفوظ نه ؤ هر خلقي او پرچمي عام او تام صلاحیت درلوده چې د مسلمان اولس سره څه ډول چې یې زړه غواړي عمل وکړي، د کمونستۍ معیار به د اوږدو بریتونو پرېښودل، شراب څښل، ددین او روحاني شخصیتونو سپکاوی، په دین پورې ټوکې او ملنډې وهل، د شپې په مجلسونو کې د ښځو او نارینه ؤ ګډون، روسي ښځې درلودل او په روسیه کې تحصیلات وو.
د افغان سید جمال الدین عکسونه چې کوم ځای ؤ هغه ټول او د هغې پرځای په ټولو حکومتي ادارو کې د لینن عکسونه او مجسمې لیدل کېدلې، چې دایې د مارکسېزم او لیننېزم تګلارې ته دژمنې نخښه وه.
ټولنیز حالت دومره له اختناقه ډک او په اختلافاتو بنا شو چې د کورنیو غړو به یو دبل جاسوسي کوله ښځې د مېړه پرواړاندې او اولاد خپل پلار او مور په وړاندې.
د کابل پوهنتون د مرکزي لیلې دروازې د شپې له خوا چانه شوې بندولې او هره شپه به یې محصلین ویستل او بیا به یې وژل. د کیراړې (۱۸۰۰) بې ګناه مسلمانانو عام وژنه، په ټول هرات کې په یوه

اونی کې (۲۴۰۰) افغانان ووژل شول د حفیظ الله امین ورور عبدالله امین د شمال زون د ریس په توګه یې دافغانستان شمالي ولایتونه اداره کول په زرګونه بندیان به یې ترانسپورتي الوتکو په واسطه د سالنګ دغره د پاسه د الوتکو نه راغورزول او په دې توګه به یې وژل.

د زمان خان دکلا مړي چې (۵۰۰) تنه ؤ د زندانیانو لست یې داود خان ته نه وو ورکړل شوی او کمونستانو په خپل سر کړي و.

انجینر ظریف د کندهار والي د ډنډ ولسوالۍ (۴۸) تنه قومي مشران په خپل دفترکې بې ګناه مړه کړل چې وژنه کې خپله هم برخه واخیستله.

د څرخي پله زندان چې له بندیانو ډک شو د کار داسانتیا لپاره یې د عاجلې وژنې شروع شوې. نیول شوي کسان د لستونو له مخې په کټګوریو وېشل کېدل، لمړی درجه لست به هغه کسا ن و چې باید شهیدان شي دوهمې درجې د زندان معنی درلوده، د داکترنجیب الله د ورور په وینا چه په خپله استخباراتي دوره کې یې (۹۰۰۰۰) کسان شهیدان کړي دي کوم چې په دوی کې یوهم سیداکبرشهید دی چې د داودخان په رژیم کې د خپلو ملګروسره ونیول شو او بیا په (۱۳۵۸) کال کې په شهادت ورسېده.

د د څرخي پله زندان مدیر سید عبدالله به هره ورځ سهار وختي زندان ته راتلو او ویل به یې چې څوک جنت ته تلل غواړي؟ هرچابه چې خبره وکړه هغه به یې شهید کړ سیداکبرخپل پیره دارته (۵۰۰) افغانۍ ورکړې اوچاړه یې د بازار څخه راوغوښتله کله چې مدیر بیا راغی او ویې ویل چې څوک جنت ته تلل غواړي سیداکبر مخې ته ورغی اوویې ویل چې زه جنت ته تلل غواړم اوځو چړې یې ووهلو زندان د عسکرونه خالي شو د بهر نه ټانګ راغی اویوکندهاری عسکر ترې راکوزشو او سیداکبر شهید یې د کلاشنکوف په شپېلۍ کوټې ته وردننه کړ. سید اکبر افسوس وکړ اوویې ویل: الله جل جلاله دا ستا رضا ده چې دشمن ته دې کلاشنکوف لاس کې ورکړی ا و ماته چاړه اوبیایې د کلاشنکوف په مرمیو شهید کړ. په خپلو وینو یې په دېوال ولیکل : اسلام زنده باد او نور نوي ملګري یې ورسره شهیدان کړل.

دا ټول کارونه د کمونستانو په لاس ترسره شوي چې صرف دایې ببلګې دي دې ته ورته په زرګونو نورې پیښې شته چې له خلکو هېرې نه دي. د افغان ولس دې جلادانو به مسلمانان د بټ د نینو غوندې وریتول او د ومره ډېر یې په پولي ګون او د څرخي پله تر شا وژلي چې هغه سیمه اوس هم غوره ده.

دا ټول کارونه ولې وشول؟

زموږ ځوانانو ولې چپي تنظیمونو ته لاره وکړه علتونه او لاملونه یې ډېر دي خو مهم یې دلته په لنډ ډول ذکر کوو:

۱. په هېواد کې دیني زده کړې ته د دولت لخوا لازمه پاملرنه نه کېدل او په عمومي ډول د نوي نسل لپاره د دیني زده کړې پروسه خورا ډېره کمزورې وه.

۲. د کلیو او بانډو امامان د وخت د مشکلاتو ځواب ویونکي نه ؤ او یا حکومت داسې خطیبان مقرر کړي وو چې د حکومت پالیسي یې تعقیبوله.

۳. هغه استادان چه په مکتبونو او مدرسو کې وو اکثرا یې محافظه کاران یا یې تعلیمي سطحه ټیټه وه.

۴. اقتصادي وروسته والی او دبیروکراسي شدت ځوانانو د نویو سیاسي او ټولنیزو علوموسره څه ناڅه اشنایي پیدا کېدل وو. اقتصادي فشاریې په مستقیم ډول په خپل وجود احساساوه او له بل پلوه د ظاهرخان د بیروکراسۍ حالت هغه تحریک کوونکي عامل ؤ چې بدلون او فاجعې په لور یې ورکش کړل.

۵. انارشي او ګډوډي، په ښوونځیو او پوهنتونو کې انارشي او خپل سري دې حد ته رسېدلې وه چې محصلینو او زده کوونکو ګروپي او انفرادي کړو وړو استادان او ښوونکي تر بدې اغېزې لاندې راوستي وو. محصلینو او استادانو ته د حکومت لخوا هغه حقوق نه ورکول کوم چې په کار وو.

۶. غیر منظم ځوانان د چپي ګروپونو لخوا تکلیف کېدل او حتی په ډوډۍ کې یې خاورې اچول.

۷. د چپي استادانو لخوا محصلینو ناکامول یانمرې کمې ورکول

۸. د ځوانانو دعلمي او شعوري سطحې ټیټوالی چې په ډېره اسانۍ سره بدې لار ته منحرف کېدای شول.

۹. د روس فارغ التحصیلانو او په روس کې د افغاني محصیلینو په کال کې یو یا دوه ځلې په رخصت راتلل په شعوري او غیر شعوري تبلیغ د کمونیزم خیالي افسانو او د حیوانیت جنسي اړیکو بیانول.

۱۰. دلیلیو په بنه د یوشمېر زده کوونکو او محصلینو ژوند سره د دې چې دلیلیو ژوند د نېکو او عالي خصلتونو د نظریاتو د کسب په اړوند مناسب چاپېریال کېدای شي اما دهغه خاصو شرایطو په وجه چې موجود وو د چپي (خلق او پرچم) ډلو د فعالیت جلب او جذب لپاره په زړه پورې شرایط برابر کړي وو.

دغه ډلې د عمر او جنس د اختلاف او په غیر اخلاقي توګه د سازمان ورکولو په وجه د یو شمېر ځوانانو

لپاره د سرګرمۍ او اماتوري مبارزې سازمانونه وګرځېدل او نوموړي ډلې یې د کمیت په لحاظ تقویه کړې، د دغو ډلو د غړیو اړیکې له اسلام سره له یوې خوا ضعیفې او له بلې خوا په کې له اسلامه کامل او شامل برداشت له نشت سره برابر وه.

دی ته ډېره اړتیا وه چې اسلام ورته د ژوندانه د بشپړ، واکمن او ځواکمن نظام په توګه معرفي شوی وای خو د دې ستونزو سره سره (جوانان مسلمان) هغه مهال د یادو لوړ مېړانې وکړې چې د افغانستان مسلمان ملت ته د لارې د مشال حیثیت لري او تول عمر به د افغانستان مسلمان ملت پرې ویاړي.

او په پای کې د هغو یو نیم میلیون شهیدانو سپېڅلو روحونو ته دعا کوو چې اتحاد جماهیر شوروي یې له نقشې څخه وویست او هغه هېواد یې په روسیه بدل کړ او د همدغه شهیدانو د وینو په برکت په افغان ځوانانو کې د ویښتابه پروسه ګړندۍ شوه او له اسلام سره یې وتړل.

اخــذ لــیکونه

سرې لښکرې.

۲. د افغانستان مېړانه او غمیزه

۳. په افغانستان کې ربښتیا څه تېر شول

۴. د افغانستان سقوط

۵. داود خان د کې جي بي په لوموکې

۶. د افغانستان معاصر تاریخ ته لنډه کتنه

۷. د افغانستان تاریخ او څېړونې

۸. شب های کابل

۹. نهضت اسلامي

۱۰. د اندري سخاروف خاطرات

استاد صراف یادا ښتونو څخه

شپاړسم څپرکی

# دکمونستي واکمنیو دوره

## نور محمد ترکی



نور محمد ترکی (۱۵ د جولای، ۱۹۱۳ - ۱۴ سپټمبر، ۱۹۷۹) د مارکسیستي آندونو پلوی افغان سیاستوال، لیکوال، او په ښکاره توګه یو مشهور بلواګر وو، خوکټنې یې پردو وخوړې. نوموړی د ۱۳۵۷ ز کال د غویي د میاشتې له اوومې نېټې څخه (او ۱۹۷۸ زیږیز کال نه) په ۱۳۵۸ ل. کال کې تر خپلې مړینې پورې د افغانستان د انقلابي شورا رئس و. نور محمد تره کی د ځینو سرچینو پر بنسټ د ۱۹۱۷ ز کال د جولای پر ۱۵ د افغانستان د غزني ولایت د ناوې ولسوالۍ په سره کلي کې زېږېدلې دی.

ځینـنه

نور محمد تره کی د ځینو سرچینو پر بنسټ د ۱۹۱۷ ز کال د جولای د میاشتې په ۱۵ نېټه د افغانستان د غزني ولایت د ناوې ولسوالۍ په سره کلي کې زېږېدلې دی. دی د افغانستان او په ختیځ تره کی و. د نور محمد تره کي د رسمي ژوندلیک له مخې هغه په ډېر کوچنیوالي کې خواریکښ او په پنځه کلنۍ کې یې په مزدورۍ لاس پورې کړی و. پلار یې لږه موده وروسته دی په ښوونځي کې شامل کړ او لومړنۍ زده کړې یې په مقر کې ترسره کړې. همدا راز یې د هند په بمبۍ کې لس کاله په انګرېزي ژبه د شپې ښوونځی هم پای ته ورساوه او هماغلته یې انګرېزي ژبه هم زده کړه. په بمبۍ کې دده د ژوند د پړاو په اړه داسې مفصل مالومات شتون نه لري، خو داسې ویل کېږي، چې زلمي تره کې همدلته له سوسیالیستي ایډیې سره پېژند ګلوي وکړه. تره کي په ۱۹۳۲ ز کال کې په کندهار کې د مېوې په یوه شرکت کې د مېوې د صادرولو په چارو کې د یوه مامور په توګه په دنده پیل وکړ. په دغه شرکت کې په کار کې د بریاوو په ترلاسه کولو سره دی په بمبۍ کې د کمپنۍ په استازیتابه په کار وګومارل شو.

## لیکوالي او سیاست

تره کي خپل فعالیت د سیاستوال او مامور په توگه نه ، بلکې لکه د ژباړن او لیکوال په توگه پیل کړ .



دده لیکنې په بېلابېلو ورځپاڼو کې چاپېدلې . د شوروي اتحاد د ادبیاتو په اړه یې له انگرېزي ژبې څخه څنې لیکنې ژباړلې . دده لیکنې د نړۍ او د افغاني ټولنې د بېوزلې طبقې پرتله کولو باندې څرخېدې، چې له هغوی څخه یې په ۱۹۵۸ ز کال کې د بنگ مسافري ، په همدغه کال کې د سپین ، په ۱۹۶۲ ز کال کې د څړه ناولونه یادېږي .

یو ملگري دنورمحمد یوه عجیبه خاطره راته وویله چي کله یې نورمحمد وژلو ،نومخکي تروژلو یې له جېب څخه یو دخلک گوند کارډ راو ایستلو اویو دپېنځه سو۵۰۰ افغانیو لوټ بیایې خپلو قاتیلانو ته وویل چي تاسو ،خودېربې وفایې راسره وکړه ځکه چي دیوه هدف ملگري و لیکن زما داکاټ به زمایادگار کورته ورکړي اودایوپېنځه سولوټ چي زما شخصي روپی دي دبیت المال حق نشته کې دابه مې خپلو بچانو ته ورکړي نورمې دملک سره خیانت نه دي کړي همداکاټ اوپنځسویځ مې سترجرم دي .

خوریښتني خبره داده چي داغیرت یې په اسلام کړي وای ،نونه به یې ملگرو جفاکوله اونه به یې دمرگ وروسته حالت داسلام په ضدجگړه کې کیدلو دغلامی اوپه پردوبادارانو اعتماد دقدرت په سر جگړه اودخپل یار په لاس مرگ داټول دافسوس هغه دردونکي انجام دي .

خلقانوته صرف دا امتیازدنورو ننني صلیبی ملگروپه پرتله پاته سو چي دوي نه شتمني ترگنده وکښه اونه یې په شرقی اوغربي هیوادونوکې پېسي پټې کړي ،خوداوسني صلیبي امپراطوري په دوران کې یې هغه ارمان هم پوره شوچي داوفایې هم په جفا بدله کړه.

خوپه هرصورت نورمحمد دخپلو خلقي اوکمونستي ملگرو له لورې ووژل شو چي په نتیجه کې یې خپل خاص ملگری حافیظ الله امین چي دده ځای ناستي ته سترگي په لاروو دپاچاهي په بې واکه گدی کېښناست ، دوژلونورتفصیل دامین دپېښلیک په پای کې لوستلای شي .

# حفیظ الله امین



حفیظ الله امین (۱۱ اګست، کال ۱۹۲۹ - ۲۷ دسمبر، ۱۹۷۹) د کابل ولایت په پغمان ولسوالۍ کې د قاضي خېلو په کلي کې زېږېدلی. نوموړی د نور محمد تره کي څخه وروسته د افغانستان په کچه دریم ولسمشر او د مارکسیسټ، لنینیست ګروهې د خلق دموکراتیک کمونستي ګوندي جمهوریت دوهم مشر پاتې شوی.

داسې ویل کېږي چې حفیظ الله امین د امریکا پلوی و او د مړینې څخه وروسته بیا روسانو او دده نورو مخالفو ډلو غړو دی د سي آی اې (CIA) د جاسوس په توګه هم یاد کړی. اړینه ده وویل شي، چې له امریکا او له سي آی اې سره د حفیظ الله امین د پټو اړیکو په اړه کوم اسناد شتون نه لري او داسې احساسېږي، چې دا خبره د ده د سیاسي بدوالي، په تېره بیا په لومړي سر کې د ستمي او بیا پرچمي کړیو غړي ببرک کارمل لپاره یوه داسې پلمه وه، چې شورویان د ده له منځه وړلو ته نور هم راولمسوي. د حفیظ الله امین د حکومت په ۱۰۴ ورځینۍ مودې کې، پرته د یوې ناکامې پوځي بغاوت او بلوا څخه بل کوم داسې سرغړونه او د ده په وړاندې ولاړېدنه نه ده ترسترګو شوې. په ۲۷ د ډسمبر، ۱۹۷۹ زېږدي کال کې حفیظ الله امین د روسي پوځونو له خوا په خوړو کې د زهرو ورکولو په لړ کې د افغانستان د ولسمشرۍ ماڼۍ ارګ کې ووژل شو او پر ځای یې ببرک کارمل د افغانستان د ولسمشر په توګه په ګوماړل شو.

## مخینه او زده کړې

حفیظ الله امین د پغمان د قاضي خېلو په کلي کې زېږېدلی او د یوه دولتي مامور زوی و. امین د کابل پوهنتون څخه د شمېرپوهنې او پنځپوهنې په څانګو کې بری لیک ترلاسه کړی و، او بیا وروسته په یوې لیسې کې د ښوونکي په توګه يې دنده درلوده. په ۱۹۵۷ زېږیز کال کې چې کله ده یو تعلیمي بورس وګاټه نو بیا امریکا ته ولاړ. هلته په کولمبیا پوهنتون کې د ښوونکي په توګه د روزنپوهنې په نورو زده کړو بوخت و او د زده کړو د بشپړېدو څخه وروسته هېواد ته راستون شو او هلته یې د ښوونکیو د روزلو په اداره کې په ښوونه لاس پورې کړ. په ۱۹۶۲ زېږیز کال کې بیا د دوکتورا په نیت یو ځل بیا امریکا ته ولاړ، دا ځل دی د هېواد څخه د باندې د افغانستان د زده کوونکو په ټولنه کې د لومړي ځل لپاره په سیاست کې راننوت. د زده کړې په وختونو کې چې کله نوموړی د لنډمهال لپاره د کولمبیا پوهنتون په انګړ کې د زده کوونکیو نړۍ کې اوسېده، دا هماغه

مهال وو چې حفیظ الله امین د مارکسیزم سره لېوالتیا وموندہ، که څه هم چې د شپېتو لسیزه د ګډوډۍ لسیزه وه چې هر څوک د سیاست په ډګر کې نه پرېښودل کېدل، خو د کولمبیا پوهنتون له پلوه کوم داسې خنډ نه وو.

په ۱۹۶۵ کال کې حفیظ الله امین پرته د دوکتورا د اخیستلو بېرته خپل هېواد ته راستون شو او د انجونو په یوه لېسه کې یې د ښوونکي په توګه دنده ترسره کوله. هغه ډېر ژر د افغانستان د خلق ډیموکراتیک ګوند غړی شو، او د همدغه ګوند یو ډېر وتلی لوړپوړی مارکسیست خلقی شو.

ولسمشر سردار محمد داود لا د تر اوسه پورې کلابند وه او څرنګه چې حفیظ الله امین او دده ځینې نور ملګري د زندان نه خوشې شول نو نوموړي د کودتا قومنده په لاس کې واخیستله.

د سردار محمد داود خان د مړینې نه وروسته نو بیا د خلق ډیموکراتیک ګوند د افغانستان واکمن ګوند شو او په همدې توګه نور محمد ترکی چې په هغه وخت کې د ګوند مشر وه، ولسمشر وټاکل شو او حفیظ الله امین او ببرک کارمل د ولسمشر د لومړي وزیر مرستیالان شول. په همدغه وختونو کې په هېواد کې د مارکسیستي او لېنېني اصلاحاتو د پلی کولو په غبرګون کې ډېر خلک ددوی مخې ته ودرېدل او د خلکو لخوا ګڼ شمېر بلواګانې وشوې.

د ۱۹۷۹ کال په فبروري میاشت کې د متحده آیالاتو سفیر آډولف ډبس په کابل کې ووژل شو او په همدې توګه د خلق ګوند په پرچم ګوند باندې برلاسي موندلې وه. کارمل چې د پرچم ګوند غړی وه نو د افغانستان نه دباندې اروپا ته ولېږل شو. د ۱۹۷۹ کال د مارچ د میاشتې تر پای پورې حفیظ الله امین ښکاره کنټرول یې تر لاسه کړی وه چې بیا د ترکي لخوا د لومړي وزیر دنده ورکړل شوه خو ترکی لا تر اوسه پورې خپله دنده درلوده.

په هېواد کې ګډوډۍ همداسې روانې وې او همدغه نوي رژیم د روسیې مرستو ته اړ وه. دا د ترکي او لیونېد برېژنف تر منځ د لیده کاته وه چې د حفیظ الله امین د ګوښه کېدو پرېکړه وشوه.

## د ترکي وژنه او حفیظ الله امین

وروسته له دې چې نور محمد ترکی بېرته کابل ته راستون شو نو د حفیظ الله امین نه یې وغوښتل چې د هغه سره وګوري. د حفیظ الله امین شرط دا وه چې که چېرته د روسیې سفیر الېکساندر پوزانوف د

ده د ژوند ضمانت وکړي نو دی به د ترکي سره به وګوري. دا ضمانت هغه ته ورکړ شوی وه خو د ایمانداری له مخې نه وه ورکړ شوی.

کله چې حفیظ الله امین د خلکو مانۍ ته راغی نو په دغه وخت کې دزې وشوې. امین جوړ روغ د دې ځای نه په تېښته بریالی شو، بیا لږه شیبه وروسته حفیظ الله امین د خپلو پلویانو سره مانۍ ته راستون شو او د مانۍ یو ساتندوی ته یې امر وکړ چې ترکی بندي کړي.

په ۱۴ د سپټمبر ۱۹۷۹ کال کې امین د حکومت واک په خپل لاس کې ونیوه. یو څو ورځې وروسته د حفیظ الله امین حکومت داسې اعلان وکړ چې ترکی د یوې "ناجوتې ناروغۍ" له امله مړ شو.

د افغانستان د کمونستي جمهوریت ولسمشر (سپټمبر ۱۹۷۹ - دېسمبر ۱۹۷۹)

## د روسانو د یرغل اقدام
## د حفیظ الله امین وژل کېدل

حفیظ الله امین د خپلو هم ګوندیانو سرحد دسمبر میاشتې په ۲۲ مه، روسي سلاکارانو افغان وسله والو ځواکونو ته مشوره ورکړه ترڅو د ټانکونو او نورو مهمو تجهیزاتو څخه د ساتنې لپاره لاس په کار شي. په همدې حال کې، له کابل څخه د باندې سیمو ته مخابراتي اړیکې د شلیدو په حال کې وې او په دې توګه د پلازمینې مخابراتي اړیکې د هیواد له نورو سیمو سره پرې شوې. ددې حالت په لیدو، امین د ولسمشرۍ دفتر د تاج بیګ ماڼۍ ته ولیږدوه او په دې فکر کې وو چې دا ځای به د نیواک په وخت کې په اسانۍ سره وساتل شي. پنځه ورځې وروسته د دسمبر په ۲۷ مه، د شوروي اتحاد د استخباراتي ادارې (KGB)د ځانګړو ځواکونو د (Alpha Group)چې د افغاني سرتیرو جامې یې اغوستې وې، په کابل کې د ولسمشرۍ په ماڼۍ باندې برید وکړ او د لږ تلفاتو په زغملو سره یې ولسمشر حفیظ الله امین او د هغه ۲۰۰ ساتونکي ووژل. ددې ترڅنګ د شوروي ځانګړو ځواکونو (Spetsnaz) د کابل د تیلي کمونیکیشن یا مخابراتو مرکز په چاودنه کې له منځه یووړ او په دې توګه د افغانستان وسله وال ځواکونه فلج شول او تر هغه وخت د ماښام په ۷:۰۰ بجو کې یې د کورنیو چارو وزارت هم ونیوه. په ترمذ کې د شوروي پوځي قوماندانۍ د امین تر نیول کیدو پورې انتظار ونه ایست او سمدلاسه یې د کابل راډیو له لارې د ببرک کارمل یو غږیز پیام چې له وړاندې ثبت شوی وو او په هغه کې ویل شوي وو چې افغانستان نور د امین له واکمنۍ څخه خلاص شوی دی، خپور کړ. د شوروي د کمونست ګوند سیاسي بیرو وویل چې هغو دا کار یوازې ددې لپاره ترسره کړ ترڅو د افغانستان او شوروي ترمنځ د ۱۹۷۸ کال هغې معاهدې ته چې د ولسمشر ترکي لخوا د دوستۍ، د معاهدې، همکارۍ او ښه ګاوندیتوب په موخه لاسلیک شوی وو، خپله وفاداري په ډاګه کړي. د شورویانو له قوله د حفیظ الله امین وژل کیدل د افغانستان د انقلابي شورا پریکړه وه چې وروسته یې ببرک کارمل چې له دې وړاندې په مسکو کې د جلاوطنۍ ژوند تیراوو، د ولسمشر په توګه انتخاب کړ.

**د سي آی اې CIA د جاسوسۍ تور**

د لومړي ځل لپاره د روسيې حکومت او رسنيو په حفيظ الله امين د سي آی اې د جاسوس تور ولګاوه، دا يو داسې تور و چې په امريکا او په نوره نړۍ کې يې شک سره ورته کتل. د دغې ادعا په وړاندې يو بل قوي دليل دا و چې حفيظ الله امين تل په خپلو رسمي غونډو کې او نورو ځايونو کې د روسيې د سوسياليستي هېواد سره دوستانه اړيکې څرګندولې. او بيا وروسته د هغه د مړينې څخه او د هغه د دوه ځامنو د مړينې څخه، د حفيظ الله امين د ښځې له قوله داسې ويل کېدل چې هغې غوښتل خپل د بچيانو سره د روسيې پخواني هېواد ته ولاړه شي، ځکه چې د هغې خاوند تر پايه پورې د روسيې اتحاد ته وفاداره و.

**اخځني :**

قدرت الله حداد ( فرهاد ) ، د افغان ملي تاريخ ، ، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز د ۱۳۸۳ لمريز کال چاپ.

http://ps.wikipedia.org/w/index."

# دسرو لښکرو (روسانو) د یرغل لومړی ورځ
## ( او ببرک کارمل )
## (یو لنډ مطلب )



د ۱۳۵۸ د جدي په ٦ نېټه دکمو نسیتي زیږنباک دیرغل لومړی ورځ وه چي ببرک کارمل دکارل مارکس استاذی په روسي ټانګانو سپور دیرغلګروسره هیواد ته راغلي ،داورځ نه هیردونکي ورځ ده داپه تاریخ کې هغه توررداغ اوزخم ده چي هیڅکله یې رغیده نه کیدای ،خوهغه زخم لاجوړ نه دي دهغو یرغلګروپاته شوني لاژوندي دي اوهغه ستري ځیري دجهادي برم خاوندان چي دوی یې په مړوسترګوله هیواد ه شړلي وو ،لاهم دژوند وروستي شېبي سباکوي چي اوس یې بچان ددوي پرځای دبابا دنده په مخ بیا ،لیکن هو ، انګریزان وائی چي دوي اوس لا ستړی دي بیاکه اوساشو بیا له دوي سره جګړه کول ګرانه ده ځکه چي دلته زموږ نیکونو داځمکه په تېښته کچلی ده .

په هغه چا یرغل او برید روا دی چې د نورو په هېوادونو یې برید کړی وي. لکه انګریزانو، چې د پښتنو په لرغوني او تاریخي خاورې یرغل او برید کړی و او د دواړو ترمنځ درې مشهورې جګړې شوې وې. هغې خو د پښتنو او پرنګیانو ترمنځ د قاضي عبدالحلیم په حواله له دوو سوو اته څلوېښتو بریدونو، څخه زیات و کم شوي دي. په دغو ټولو جګړو کې انګریزانو ته ملا ماتوونکی ګوزار ورکړی او د جګړې له ډګر څخه یې تېښتې ته اړ کړي دي. د افسوس خبره دا ده، چې زمونږ ځینو برسراقتداره واکمنانو د افغان ملت سره خیانت کړی دی او د جګړې په ډګر کې یې یوازې پرېښی او د یو سازش له مخه یې د غدر نه ډکه لاره نیولې او خپله خپلواکي او ایمان یې داؤ طلبی ته وراندې کړي دي.



د امير شير عليخان د واكمنۍ دوره نسبتاً يوه د علم او عرفان دوره وه. په دغه دوره کې اخبارونه راوتلي، تعليمي اداري جوړې شوې او عسکري القاب د ختيځ د نابغه افغان سيد جمال الدين له خوا منځته راغلي دي.
خو د روسانو په وعده وغولېد او په سر کې يې بل خيال پيدا شو. روسانو ورته وويل، چې که انگريزانو په افغانستان حمله وکړي مونږ به له تاسره ملگري و او ستا ملگرتيا به کوو.
هوښيار پښتنو دا د روسانو چل باله چې کيداى شي په دې کې دوکه پرته وي او روسان دې ته هيڅکله زړه ښه نه کړي، چې د انگريزانو په وړاندې د افغانستان په پلوۍ ودرېږي او همداسې وشول. خپل زوى امير محمد يعقوب خان يې چې په زندان کې شپو او ورځو تېرولو يې ماغزه خراب کړي وو او سوچ ليونى ترې جوړ شوى له زندان نه راوويست او د افغانانو پاچا يې وټاکه. پښتانه حيران شول، چې دا ليونى او پادشاهي، په هر حال ليونيان تل د بادشاهۍ په تخت کښيني او د هېواد د بدبختۍ او بدمرغۍ لامل گرځي او په خپله يې له کابل نه د مزار شريف په لور پښې سپکې کړې.
هلته روسانو په هغه دغه وغولاوه. په دې کې يې زوى نائب السلطنت عبد الله جان چې ناجوړه وه او روسي ډاکټر يې چې په روسي سفارت کې ډاکتر و د ده معالجه کوله. زيات امکان لري، چې همدغه معالج ډاکټر يې غلطه معالجه کړې وي او داسې دوا يې ورکړې وي چې د ده ژوند يې له خطر سره مخامخ کړى وي، چې په پاى کې د همدغه غرض الوده ډاکټر معالجې د مرگ خولې ته ورستى وي، چې په پاى کې يې له ژوند سره وداع وکړه او مړ شو.
امير شير عليخان د غم او وير په ټغر کښيناست او د وير او ماتم ورځې شروع شوې. د روسانو د همدغو غولونو چې له ځانه يې جعلي خطونه جوړول امير شير عليخان ته سرخوږى پيدا کړ او په پاى کې دې هم د خپل زوى په شان مړ شو او هماغلته په مزار شريف کې ښخ شو. انگريزانو هم له چالاکۍ

نه کار واخیست له امیر محمد یعقوب سره یې په خپله ګټه د ګندمک تړون لاسلیک کړ او د افغانستان زیاته برخه یې انګریزانو ته وربښودله لکه څنګه چې د دیورنډ کرښه د افغانانو په تاوان تمامه شوه دغه راز د ګندمک کرښه د امیر محمد یعقوب خان د لیونی فیصلې په اساس د افغانستان په تاوان تمامه شوه.

د افغانستان اوسنی لانجه د روسانو د هغې لانجې دوام دی، چې د ١٣٥٧ د ثور د ٧ نېټې د منحوسې او لعنتي مداخلې له امله منځته راغلې ده. دغه لانجې د افغاني کمونستانو د واکمنی په وخت کې چې تولې فیصلې یې انی او فوري وې پرته له دې چې په شرعي قوانینو وپوهیږي د خپل غیر منطقي استدلال په اساس منځته راغلې او د رب العزت په قوانینو، پوهو، روحانیونو په وژلو شوې دي. دوی پرته له دې چې په سرونو کې میخونه ټکوي کرت به یې په لاس کې ونیو او له یوه پښتون څخه به یې په ازبکه او ترکمنه لهجه پوښتنه وکړې چې "این چیست" که "کرت" به یې وویلې نو سمدستي به یې واژه، چې "پشتون" است او که وبه یې ویل چې "قروت" نو ویل به یې چې "از خود ماست کشته نشود" په دغه اساس دوی فیصلې کولې او په دغه توګه به یې د خدای په مسلمان مخلوق هدیرې ډکې کړې.

ما ته یو عیني شاهد ویلي دي چې له پل چرخي څخه به یې تورې خولی په سر زندانیان وویستل او پلیګون ته به یې ورسول. په زیاترو به یې په داسې حال کې خاورې وراچولې، چې ژوندی به و او چیغې به یې وهلې، خو دغو ظالمانو رحم نه وربانده کاوه او بلدوزر به یې ورته اړم کړی و او په ژوندیو کسانو به یې خاورې وراړولې او کسان به یې په ژوندوني ښخول. نه پوهېږم، چې ګران لوستونکي به دغه وحشي او دد منشانه ظلم ته کوم نوم غوره کوي او په کوم نامه به یې خلکو ته وربېژني.

په دې کې شک نشته چې د افغانانو په وژلو کې روسیې له امریکې سره د جوال خوله نیولې ده او تراوسه پورې روسیې له لارې شل زره پوځیان افغانستان ته داخل شوي دي دا خبره تننی نه ده، بلکې هغه وخت، چې طالبان په سلو کې د افغانستان په ٩٠ برخه واکمن و د روسیې او امریکې د کاري ډلې یوه ډېره مهمه غونډه چې د طالبانو د تهدید د مخنیوي په خاطر د ٢٠٠١ کال د سپتمبر په ١٩ په مسکو کې وشوه یوه ګډه اعلامیه یې خپره کړه. په دغې کاري ډله کې د متحدو ایالاتو د هیئت مشري د بهرنیو چارو مرستیال وزیر ریچارډ ارمیتاج او د روسیې له خوا د بهرنیو چارو لومړي مرستیال ویاچیلو ایوانویچ په غاړه درلوده. د کاري ډلې په دغې اعلامیې کې روسیې د سپتمبر د ١١ نېټې د پېښې له امله خفګان ښکاره کړ، چې د امریکایي ډلې له خوا په ډېرې مننې ومنل شوه او د

امریکایې ارغ له خوا یې منته وشوه او دوارو خواوو دا پرېکړه وکړه، چې د ترهګرۍ په ضد به په متحده توګه عمل کوي، خو دا معلومه نه شوه، چې ترهګر څوک دي امریکا که روسیه، څکه چې دوارو مساعي سره شریکې دي، خو داسې څرګنده شوې ده، چې د ۱۳۵۸ د جدي په ٦ نېټه لومړی ۸۵ زره تنه لښکر ورپسې د پرش زره تنه نور، په دغو عسکرو کې د قرغزستان د وخت د جمهور رئیس عسکر اقایوف په وینا په دغه یرغل کې د قرغزستان (۵۰۰) تنو عسکرو ګډون درلود، چې ۲٦۰ تنه په ځې وژل شول چې دافغانستان یرغل ددوي په وینه اوبی واکې بدل شو.

یو روسي جنرال د جګړې جریان د شوروي سوسیالستي جمهوریتونو اتحاد ته داسې لیکي:

"تر هغه ځایه چې د ځاني تلفاتو په باره کې ماته راپور رسیدلی دی غرض کوم، چې: ۲۷۹۸۱ تنه مړه، ۷٦۵۲۰ تنه ټپیان، ۱۸۱۸ تنه اسیران شویدي. په مجموعي ډول په دې جګړه کې د شورویانو ۷۰۰ – ۷۵۰ جټ او هلیکوپټر الوتکې، ۵۰۴ – ٦۰۰ عرادې ټانکونه، ۷۴۰ – ۸٦۰ نفر وړونکي زغروالې واسطې، ۹۵۰ ډول ډول توپونه او ۱۴۰۰ – ٦۰۰۰ عرادې لارۍ له منځه تللي دي. د ځینو کتونکو په نظر په دې جګړه کې ۷۳ میلیونه ډالره او د ځینو نورو په وینا ۹۵ ملیارده ډالره زیان راغلی دی.

په ۱۹۸۲ کال کې د څلوېښتم لمبر لښکرد استازو او شخصاً د مسعود لخوا یو تړون لاسلیک شو چې د هغو له مخې مسعود ژمنه کړې ده چې په جنوبي سالنګ کې به په شوروي پوځي کتارونو یرغل ته اجازه نه ورکوي .

دغه راپور ښیي چې د افغانانو پر ضد د روسانو پر ضد د پر لاسونه شریک و، چې تول یې له خاورو سره خاورې شول. دغسې دړواخله امریکا او ناټو ،خو ملت وایو چې حساب ټینګ کړي چې ګټه به ډیره یوسي که تاوان دا دالله پاک یو سترامتیاز دي چې افغانانوته یې ورکړي چې دنړۍ هرسترزبرځواک ددوی په لاسونو راچپه کیږي له دې افغانان په دې تشوجیبو اولوڅوپښو امریکا ،برتانیا اونوري صلیبي نړۍ ته نه شي تلای بلکه الله پاک هغوي ورته راولي اوبیایې دلته دشرمیدلي انجام اوماتي سره مخ کوي .

اخځلیک: اسرې لښکر کی جی بې :د قتیل یادښتونه ، www.bcnawa.com bbc

# ببرک کارمل



ببرک کارمل(۱۹۸۰)د افغانستان د کمونستي دور څخه دریم پاچاوو.
. دهیواد درې یرغلیزه استثمار اودرې سترګو داګیان چې یو مثلث جوړوي هغه لکه : ۱ - دانګریزي استعمار اوشاه شجاع ۲ - روسي استعمار اوببرک کارمل ۳ - امریکائی استعمار او حامد کرزي بس همدا دګودا ګې مثلث دویم غړی دي مخینه

ببرک کارمل د ۱۹۲۹ز کال د جنورۍ په ٦مه، زیږېدلی او د ۱۹۹٦ د ډسمبر په ۳مه مړ شو. نوموړی د ۱۹۸۰ نه تر ۱۹۸٦ پورې د افغانستان د کمونستي رژیم دریم ولسمشر و. هغه په ژبه کې ډېر ممثل، او یو ډېر ماهره مشمشه ګر و. کارمل په مارکسیستي لارښوونې کې ډېر نوم درلود. وروسته له دې چې د روسانو لخوا په قدرت کښېنول شو، خو هغه بیا پدې و نه توانېدو چې د خپل واک پیاوړی کړي او په همدې توګه په ۱۹۸٦ کال کې یې ډاکټر نجیب الله ځای ناستی شو. وروسته له دې چې د ولسمشرۍ د دندې نه ګوښه شو بیا نو ببرک کارمل چا د افغانستان په سیاسي سټېج کې و نه لیده او د ولسمشرۍ نه وروسته ده هم افغانستان پرېښود او مسکو کې پاتې شو. بیا په ۱۹۸۹ کال کې یو ځل بیا کابل ته راستون شو، خو د ژوند وروستۍ شېبې یې په مسکو کې تېرې کړې او په هماغه ښار کې ومړ، خو هغه مهال زما یادیږي چې ترمړیني وروسته کارمل روسانو په داسي حال کې راوړ چې نور کارنه تری اخیستل کیدي نویی دافغانستان مزارشریف حیرتان ښارته راوړ چې د ترمذ اوبخارا په پولو ته خیرمه بازار دي همدلته یې ښخ کړ، خوکله چې د طالبانو لښکري حیرتان ته ورسیدلي نو ببرک کارمل قبریې ونړولو او دده پاته هدوکې یې داموسند ته واچول او دټوکو په ډول به طالبانو ویلو چې روسانو ! خپل ګوډاګي مو د آمو لەلاري درولیږلو.

پخواني وختونه او ژوند

ببرک کارمل د افغانستان د یو پوځي جنرال زوی و، که څه هم چې په یوې شتمنې تاجکې کورنۍ چې اصل او نصب یې کشمیر دی، د کابل ختیزې خوا ته پروت کلی، کمري کې زیږېدلی. په ماشومتوب کې یې چې کله مور مړه شوه نو ده هم ډېرې سختې شپې او ورځې تېرې کړې.

د ځوانۍ د وختونو په لړسه کې يو عام زده کوونکی و او وروسته د فارغېدو نه د کابل پوهنتون د حقوقو په پوهنځي کې خپلې زده کړې ترسره کړې او ډېر ژر د ژبني فصاحت او تمثيل له مخې د پوهنتون په زده کړه پالو کې نوم ووېسته او د زده کړه پالو په ټولنه کې هم ډېر کوانده او فعال وه. بيا وروسته د مارکسيستي اندونو خاوندانو سره د تړاو له مخې د هغوی د سياسي ګوند غړی شو او په همدې توګه په سياسي چارو کې د فعاليت پخاطر پينځه کاله په بند محکم شو.
په بنديخانې کې کارمل د يوې نوي سياسي څېرې، مير اکبر خيبر سره اشنا شو. دده درېيم ملګری مير محمد صديق فرهنګ هم د روس پلوی کيڼ لاسی وه او د ببرک کارمل هم انده سړی. وروسته له دې چې د پوهنتون نه خلاص شو ببرک کارمل د پلان په وزارت کې دنده درلوده او هغو کسانو سره چې د کمونېزم په هکله يې مالومات درلودل خپلې اړيکې وساتلې، پدغو کې يو مير محمد صديق فرهنګ او بل علي محمد زهما، د کابل د پوهنتون يو پروفېسر وه.

**سياسي ژوند**

د ببرک کارمل د ولسمشرۍ په وخت کې د افغانستان ملي بيرغ، دا بيرغ د هغه د حکومت په وختونو کې پدې موخه بدل شو چې خلکو ته دا ښکاره کړي چې يعنی د ده حکومت د تېر حکومت په پرتله ډېر اسلامي حکومت دی او بېرته يې تاريخي ارزښتناکه رنګونه په پام کې نيولي دي کوم چې د کمونيستي حکومت له خوا د ترکي د ولسمشرۍ په وختونو کې نه وه په پام کې نيول شوی.

**قدرت له لاسه ورکول**

د کارمل د ولسمشرۍ په وخت کې حکومت يوازې د کابل په ښار، د ولايتونو مرکزونه او هغه ستراتيژيک ځايونه او سيمې چېرته چې روسي او افغاني پوځيان او ملېشې ګومارل شوي وې، بشپړ واک هم نه لرو ولي چي دافغان مجاهدينو دمقاومت بهير خورا ګرندي وو چي ان دهيواد ټولي سيمي بغير له ښارونو په ولکه کې وي او مجاهدين اکثر دګاونډ پاکستان پولو ته مجاجر سوي وو دنورې اسلامي نړۍ دهمکاري باوجود دامريکا برتانيي اوچين له خوا هم پوره مرسته کيدله ؛ چي دهمدې مقاومت په درشل کې دکمونستی اوغير اسلامي مفکورې روسي يرغل ورځ تربلي دزوال په لور تيل کيدلو ولي چي له يوې لورې افغان اولس دملي اسلامي پاڅون تاييا ترلي له بلي لوري دروسي يرغل داتير دبين المللي قوانينو په خلاف او هم دغرب ناخوښه وو.

- اخځني : د افغانستان ملي تاريخ، سرې لښکر په افغانستان کې د ببرک کارمل ژوندليک - Afghani.com
- "http://ps.wikipedia.org/w/index."

# ډاکټر نجیب الله



ډاکټر نجیب الله د اختر محمد زوی د ۱۳۲۵ کال د اسد د میاشتې په ۱۵ نېټه د کابل په «مراد خانیو» کې د احمدزیو کورنۍ کې زېږېدلی. هغه خپلې زده کړې د حبیبیې په لېسه کې پای ته رسولې او وروسته بیا د کابل پوهنتون د طب پوهنځۍ کې ومنل شو او په ۱۹۷۵ کال کې د هماغه پوهنځي نه طبیب وواته څکه ورته ډاکټر وائی.

ډاکټر نجیب الله (۱۹۴۷—سپټمبر ۲۷، ۱۹۹۶) د افغانستان ډیموکراټیک جمهوریت په کمونېستي وختونو کې ځلورم او وروستنی مارکسیست او لنینیسټپال ولسمشر و. ده د خپل د حکومت په شپږو مسلسلو او بدلېدونکو ناکراریو کې کمونستي بادارانوته خپل مقاومت وښود، خو د نړېوالو په ملاتړ د افغان مجاهدینو دېرلپسي مقاومت په تتیجه کې د حکومت دننه پوځي کړیو ناکراریو، بډوالي او د فشارله کبله حکومتي چارې له لاسه ووتلې. خو ددې تر څنګ ډېری افغان اکاډمیک روڼ اندي او د سیاسي پوهنې څېړونکي په هغه دا نیوکه لري چې د حکومت په منځ کې يې فاشیست عناصر لکه عبدالرشید دوستم د عوامو د ډار لپاره ساتلي و او سیکولر نظام چې په ټولنه کې د مذهبي افکارو غندنه او ترې واټن نیولو په مانا ده ورته يې د افغانستان په نالوستې او دودپالې ټولنې کې لومړیتوب ورکاوه چې واک او ځواک يې نور هم ټکني شول.

هغه د ثور انقلاب د لومړۍ ورځو ټول ریفارمونه باطل کړل او د پرچمیانو مارکسیستي مفکوره يې په هېواد کې پیاده کړې وه. که څه هم چې د نوموړي حکومت پوځي برلاسي درلودله خو د اسلام پالو جنګیالیو فشار ته يې حکومت ټینګ نه شو او همدا وه چې په (۱۹۹۲ کال کې) يې واک له لاسه ووت دلته له یوه لوري کمونستي امپراطوري اویرغل دزوال په ګنده سلګۍ وهلي بل لورې ته دخارجي اوګاونډي مرستیالو دخپلي اوږدي دوښمني په اساس دمجاهدینو دمنځني اختلافاتو لړۍ جاري وساتله چې دنجیب دواکمني له ورسپاریدلو وروسته چې دټولو په رائی دوخت لیوني مجددي حضرت ګل پاچاسو ددې عصر سقاویانو ناخوښي وښوده چې ډېر ژر کورنۍ جګړې پیل او دمجددي پاچاهي هم دوام ونکړه.

# پخواني وختونه ، شخصي او سیاسي ژوند

**د واکټر نجیب الله د ولسمشرۍ دوره ٦ کاله وه.**

نوموړی په ۱۹٦۵ کال کې د افغانستان د پرچم ګوند غړی شو ، سره له دې چې دی یو د پر ځیرک سړی وه خو د خپلو نورو ملګرو په مېنځ کې د تکړه جوسې له مخې د نجیب ګو ، نامه مشهوره شوی وه. په ۱۹۷۸ کال کې چې کله خلقیانو او پرچمیانو پر سردار محمد داود خان کودتا وکړه او خلقیان د واک خاوندان شوه نو ښاغلی نجیب الله یې د هېواد نه دباندې ایران ته ولېږه او دی هلته په تهران کې د افغانستان سفیر شو. خو بیا وروسته ډاکټر نجیب الله یې د دندې نه ګوښه کړ او نوموړی د روسانو تر راتګ پورې په اروپا کې اوسېده.

داځه چې د روسانو دپرلپسي ګوډاګي واکمني له ترکي ترنجیب تو ل دیوتالي اویوغالی اوسیدونکي وو یوپربل هیڅ برتري او خوبائی نه لري ،خوبعضی ملګري اولیکوالان وائی چې نجیب خو دیوداسي مرګ لیاقت نه درلود کوم چې طالبانو ورته ورکړ، ولي هغه محکمه نشو اودبین الملل په دفترکې یې فناا خیستي وه ، خو دومره باید ووایم چې ښاغلي حکمتیار صیب په خپله یوه لیکنه کې دهرات د ځلیرویشت سوه ...شهیدانو قاتل بلل او دهمدي دلیل لپاره یې خورا په زړه پورې اسناد او شواهد پیش کړي اوهم یې دپلچرخي زندان دمحبسینو دظلم ،قتل اوزیاتي فاعل بلل دي .

دنجیب دوره نوره تکاني وه حالت دمجاهدینو په ګټه اوبري تمامیدونکي و ه داخلي اداري نظام وروځ تربلي ګډوډ و ، دنظامي اوپوځي چارو مزي هم کمزوي کیدونکي وو روسان هم په دې پوهه وو چې دنجیب واکمني دزیوال په لورې ده چې له دې سره جوخت یې دشمال له غیرپښتون اقلیتونو سره اړیکي ټینګولي ترڅو دمسعود په مشر یوپراخي شمال اتحاد رامنځ کړ ، خوبلي خواته بیا دجنوب ختیځ اولویدیځ مجاهدینو دبریا کرښې دکابل خوا ته لنډ ولي چې په همدې بهیرکې دجهادي تنظمونو دفلان له مخي تنی په نجیب ګودتا وکړه ،خوناکام او بیا پاکستان ته په تېښتنه بریالي شو .

دنجیب اداره نوره بی اعتماده شوه چي لدې سره مجاهدینو له غرنو څخه دښارونو په نیولو برياليي کیدل ، دلوي پکتيا ولايتونه يو په بل پسي فتحه شول اوشمال کې هم دبلخ ولايت فتح شو همدا کال چي وروسته قندها ر اوهرات هم سکوت وکړدنجيب وروستي شيبي وي چي جنرال عظيمي ديوي بلوا په ترڅ پرارگ حمله وکړ نجيب غوښتل چي روغ رمټ ووزي ،خو دجنرال دوستم عسکرو پرې نښود،بس همدامهال کابل کې دروسانو وروستي کمونستي حکومت را نسکوره شوه اودمجاهدينو لښکري دتکبير په چيغوسره کابل ته ننوتلې ،خو وروستی ناخوالي دليکلوندي ،خوبياهم اړينه يادونه شوي دنړیوالومطبوعاتو مجاهدضد افکار لرونکوعناصروته هم ښه چانس و چي مجاهدين توهين کړي مسلمه امت ټول انتظار وچي دمجاهدينواسلامي غرور اوبريا په نتيجه کې به په افغانستان کې يوسوچه اسلامي حکومت رامنځ ته شي ،خوګاونډيانو اوکفري نړۍ دي ارمان ته افغانان پرې نښود خبره برعکس تمامه شوه.

اوولسم څپرکی

# دمجاهدینو بریا او دازادۍ لومړۍ ورځ

دافغانستان تاریخ د هسکوټیټو، جنګ جګړو، میړانو او اتلولیو ډک دي، خوکله هم داسې اشتباوې شوې دي چې جبرانول یې بیا د زرګونو او حتي لکونوانسانانو په قرباني کولوسره شوني شوي دي. دغوایي د اوومې او اتمې پیښې هم په تاریخ کې د دوو بېلابیلو او نه هیریدونکو پیښو په توګه ثبت شوې دي.

په افغانستان کي د شوروي ماته د شلمي پیړي تر ټولو ستر او مهمه پیښه وه چې نظیریې د بشریت په تاریخ ډیر لږ پیدا کیږي. ځکه چې د شوروي سور پوځ د منځني اسیا د هیوادونو په



خالص ربانی حکمتیار محمدي مجددي سیاف

پرله پسي نیولو سره د یوه نه ماتیدونکي پوځ په توګه نړیوالو ته ښکاره شوي وو او هیڅ کله د یوي جدي او سختي مقاومت سره مخامخ شوي نه وو مګر دا چې هغه یي په پوره ډول سره له منځه وړي وو. پرته له دي په افغانستان کي د شورویانو ماته فقط یوه پوځي ماته دافغانستان په ساحه کي نه وه بلکه چي دا یوه داسي پراخه او هر اړخیزه ماته وه چې د پخوا شوروي لوي امپراتوری یي د نړي د نقشي څخه بلکل نسکوره کړل او پایله یي یوازي د افغانستان آزادي نه و بلکه چي د منځني اسیا ټول هیوادونو ته د آزادي لوي نعمت وړ په برخه کړل اوله بله خوا ګاونډي اود جنوبي اسیا پاته هیوادونه یي د شورویانود قهرجن پرمختګ څخه وژغورله.

برسیره پر دا په افغانستان کي د کمونستانو ماته په نړي کي د ماتریالیزم د ایدیالوږي ماته وو. دشورویانو یرغل یوازي یوه پوځي یرغل نه وو بلکي چي په اصل کي دغه یوه

ایدیالوږیکي یرغل وو چي مقصد یي د بشریت په کلتورکي کي د دین او د معنویت پوره له مینځه وړل وو.

له همدي کبله په دغه فرصت کي د افغان مسلمان مجاهدینو او ده پاک او مجاهد شهیدانو د خاطري ژوندی کول زموږ یوه دیني او انساني وظیفه ده هغه کسان چي د آزادي بیه یې په خپلو وینو سره روزلي دي او دآزادي بیرغ یې د تل لپاره د نړي پړبام (پامیر) باندي وچت ساتلي دي تل ورته سوکاله ژوند اوله ویاړ ډک زرین تاریخ غواړو.

د ۱۳۵۷هجري لمریز کال دغوایي په اوومه نیټه یو شمیروطن پلورونکوتش په نامه افغانانو د کرملین د سڅغنو په نیغ په نیغه مرستې سره په هیوادکې خونړۍ کودتاوکړه اوپه افغانستان کې یې دجګړو، تاوترخوالیو، ظلمونو او کړاوونو سریزه برابره کړه چې پایلې یې ترننه روانې دي. نوکله چې د غوایي (ثور) د اوومې نیټې یادونه کیږي هر افغان دغه ورځ دهیوادپه تاریخ کې د تورې ورځې په توګه پیژني اودافغانستان هروګړي ددې ورځې اودکمونیستي کودتاپه پایله کې یا دویرپه تغرناست دي اویاهم په یونه یوډول کړیدلي اوځوریدلي دي. دغویي په اوومه د خلق د دیموکراتیک ګوند غړیو د یوه خونړي کودتا په ترڅ چي د مسکاو له خوا طراحي سوي وو، واک ته ورسیدل.



سردار محمد داود خان چې د افغانستان لومړني ولسمشر و د خپلې کورنۍ له ډېرو غړیو سره د دغه کودتا په ترڅ کې په یوه ډیره تراژیدیکه ډول سره ووژل شو. او د کمونستي احزابو مشران چي په زندانونو کي د محاکمي په انتظار کي و آزاد او په داسي حال کي چي د افغانستان د واکمني خوب یي هم نه لید له، د خپلو کمونستي بادارانو په زورپه ډیره نا باوري سره د واک پر څوکي کښیناستل. او د افغانستان د اوس مهال (معاصر) تاریخ یوه تورتم او ترخه صفحه یي پرانیستل. او په بدل یي ډیر کسان چې د پخوا څخه په پوهنتونو کي د کمونستانو مخالفان وو او د هغوي سره آزاده بحثونه کاوه او ګڼ شمیر نور بیګناه خلګ او همدا رنګه د داوود خان د حکومت سیاسي او پوځي چار واکي د رژیم د

مخالفت په تور زندانونو ته واچول شول. د افغانستان پخواني بيرغ په بشپړه توګه بدله شوه او پر ځاي يې تک سور خونرنګه بيرغ د خلق د ګوند دنشان سره پورته سوه .
د نور محمد تره کي په مشرۍ نوي رژيم ګڼ شمير د اسلام ضد او دافغانانو د کلتوري په خلاف فرمانونه جاري کړل شو او له همدي کبله د افغانستان په بيلابيلو سيمو کې د دغه رژيم پر ضد ولسي وسله وال مقاومتونه پيل شو .
آخوا کمونستهان د خلق او پرچم په ډلو وويشل شوې او دهغوي خپل منځي اختلافات د واک د نيولو پرسر را وپاريدل او د نور محمد تره کي پر ضد حفيظ الله امين کودتا وکړه . او نور محمد تره کي په دغه دويمه خپل منځي کودتا کې ووژل شو لږه موده وروسته حفيظ الله امين هم د شوروي اتحاد د پوځي يرغل په خاطر قرباني سو او خپل واک او ژوند يي له لاسه ورکړ. ببرک کارمل د شوروي اتحاد ځانګري سړي د شورويانو دسور پوځ په ملاتړ د مسکاو څخه افغانستان ته راوستل سو . هغه څوک چي د کابل دخلکو له خوا هغه ته د شاشجاع ثاني ( هغه شاشجاع چي انګريزان يي افغانستان ته راوستلي وو) لقب ورکړ شوي دي .
او په همدي توګه افغانستان د شورويانو دسور پوځ تر تيرۍ لاندي راغلی . خو پسله څوارلسو کالو (۱۳۷۱) شوري په افغانستان کي د يوي سختي او تاريخي ماتي سره مخامخ شو .
د ۱۳۷۱کال دغوايي په اتمه نيټه ميړنيو اوسربښندونکومجاهدينو دکرملين ډلاسپوڅي رژيم له شرمه ډک ژوندته دپاي ټکي کيښنوداودافغانستان دخلکوسپيڅلي جهاددبري پولې ته ورسيد. دابري بايد د هغوځينو قدرت غواړو مشرانو او قوماندانو کارنامه او ميړانه ونه بولو چې ترنته يې د اولس په وينوتجارت کړي او د څه د پاسه يو نيم ميلون شهيدانو او په لکونومعيوبينو، کونډو او يتيمانو د ريښتيني اسلامي اوملي حکومت هيلې په سين لاهوکړې او په خپل منځي جګړو اونښتواخته شول. بلکه دا د هماغه ييلې پښنواوپه اسلام اوهيوادمينو اوريښتينومجاهدينودسربښندنو، ميړانواووينوبيه ده.
که څه هم زموږپه هيوادکې داهرڅه دبهرنيودلاسوهنواوبلاغوښتنوسوغات دي خوکه افغانان په هيوادکې د جهاد له برياليتوبه وروسته يوموټي اوپريوه چورليزراټول شوي واي هغه وخت به دبهرنيانولاسوهنې هم بې اغيزې وې .

په افغانستان کې دنامتوجهادي مشرانواومجاهدینوپر سربښندنوباید سترګې پټې نه شي ځکه همدادافغانستان دجهاداومیړانې له برکته په نړۍ کې کمونستي بلاک دړې وړې شواوتودواوبوته د رسیدولپاره یې د پخواني شوروي لرغونې هیله دتل لپاره دهغه په دړې وړې کولوسره دتاریخ کندې ته وسپارله او دافغانستان دمجاهدینودمبارزې اومیړانې ځخه په الهام اخیستوسره دمنځنۍ آسیاهیوادونوخپلواکي ترلاسه کړه، خوله بده مرغه چې د پخواني شوروي جمهوریتونه په تیره بیاروسیه چې د هغه اصلي میراث خوره ده اودنړۍ نور هیوادونه اوقدرتونه دباید دافغانانوددې میړانې احسانمن وي اوترې مننه وکړي چې نړۍ یې له یوه ښکیلاکګر اوپراختیاغوارې ځخه وژغورله که موله هیواداوخلکوسره مرسته نه کوي کم ترکمه خودې زموږپه کورنیوچاروکې لاسوهنه بنده کړي،اوتردې زیات دې زموږله هیواده دخپلووسلو اوپراختیاغوارو سیاستونو د لابراتوارپه توګه کارنه اخلي اوافغانان دې پرېږدي چې خپلې ستونزې اواختلافات په خپله اوارکړي.

افغانان ددې پرځای چې دخپل وران اوله هره پلوه ویجاړهیوادبیارغونې ته پام وکړي اودروسانواودهغوي دمزدوررژیم په وړاندې دجهاد دشهیدانوهیلې عملي کړي، د کونډو او یتیمانو اوښکې پاکې کړي، د جهاد د وخت د معیوبینواو د هغوي بچیانوته یوه ګوله ډوډۍ ورکړي، دجهاد دبري له هماغه پیله دپردیوددسیسوښکارشوي اوترننه دالړۍروانه ده.

افغانان بایدپوه شي چې بهرنیان ترهغه زموږوینې زیښې اوترمنځ مواختلافونوته لمن وهي چې ساه موپه بدن کې وي نوافغانان لکه څرنګه چې دجهاداومیړانې په ډګرکې یې د تاریخ لویه کارنامه پرځای پرایښې ده بایده دي چې د واحد اوسوچه اسلامي او د ټولوپه خوښه خپلواک نظام په جوړولوکې هم متې راونغاړي اوهیوادمونورله دې بدبختیو اوکړاوونو خلاص کړي خو په هر صورت د ثور اتمه هغه ورځ ده چې له نن نه ۱۹ کاله وړاندې مجاهدینو دخپلو وینو په نذرانې او دسرونو په قربانۍ افغان غیور ملت ته په میراث بریښودہ.

خواوس دغه له ویاړ اوبرمډکې ورځې زموږ په هیواد کې په داسې حال کې لمانځل کیږي چې هغه یرغلګرغربي اوشرقي یعنې کمونستي اوصلیبي ځواکونه یې په ننداره کې ورسره شامل

اودوي دخجالت تېښتي سترګي دپردوتوپکودشپېلیوترسورولاندي پیاهم دغلامۍ اونړیوال یرغل تردرشل پورې ترلي ترسره کوي .
نوباید پدې موخه دغه ورځ لمانځي چې پدی ورځ دیونیم میلون شهیدانو او میلونونو معلولینو پرځای پرېښودوورسته مجاهدین خپلو سپېڅلوموخوته ورسیدل چې نړیخورکمونستي زېښاک ته ماتي ورکړل شوه ،او دا ورځ ځکه د لمانځلواوستائلوده، چې پدې ورځ زموږ هیواد دپردیو له منګولو خلاص شوی او ددی ترڅنګ چې هیواد مو ازادي خپله کړې دبرلین بدنام دیوال ونړید، دشوروي اتحاد په روسیه بدل شو او ګاونډي هیوادونه دروسي ښکیلاګرو دشومو اهدافو نه خلاص شول.
خوبلکي نه هغه جهادي شخصیتونه چې پرون یې دازادۍ سپېڅلي جګړه وګټله متاسفانه نن بیادیهودي دامونودترور کیدو لامله په مغلوبه فضاء اوچاپیریال کې په ډیرمایوسه انداز سرونه ورسره ښوروي اودنړیوال صلیبی یرغل کې واقع اومرستندویان دي نن هغه خلقي اومجاهد یوځای په یوه پارلمان کې دپاته مجاهداولس دمقاومت ځپلوپریکړې کوي.
دوي چې اولس تریل هرچاډیرناړې سوري وکړي چې په خپلوکې جوړسي اوجګړه پای ته ورسوي دوی یوهم تردې تیرنه وه چي دوطن اوچادمذهب جګړه بلله ،خونن هم وطن مغلوب اوپردي شواوهم مذهب اواسلامي برم دپردو دپلونو ښکارشو.

# صبغت الله مجددي




صبغت الله مجددي ( ۱۹۲٦ - ). په ۱۹۹۲ کال کې د کمونېستي رژیم د راپرځېدو وروسته د افغانستان د مجاهدینو د اسلامي دولت د لومړني ولسمشر په توګه دنده درلوده. صبغت الله مجددي د نجات اسلامي افغانستان د ګوند مشر هم دی.

ښاغلی مجددي په پاکستان کې د مجاهدینو تر منځ د یوه پخواني تړون پر بنسټ د افغانستان د اسلامي دولت ولسمشر شو. نوموړی تر دوو میاشتو پورې د افغانستان ولسمشر و چې بیا تر ده وروسته برهان الدین رباني د ولسمشرۍ په چوکۍ کښېناسته. هغه په دې هېڅکله و نه توانېده چې د مجاهدینو د بېلابېلو ګوندونو او تنظیمونو تر مېنځ پخلاینه راولي.

په اوسنیو سیاسي پېښو کې، مجددي د طالبانو د واکمنۍ پر مهال ځان د سیاست نه ګوښه کړی وه خو کله چې . د ۲۰۰۳ کال په ډېسمبر میاشت کې د دکرزي حکومت د اساسي قانون له مخې، ښاغلی مجددي د لویې جرګې د ریس په توګه وټاکل شو. نوبېرته یې دخپلوبادارانوپه غوښتنه دسیاست مېدان ته راودانګل ،خوکله دېیاپخلاینې په نوم کمېسون کې اوکله بیادمشاور اویاشوراګانوکې څه ناڅه کوډاومات څه ترې جوړشي ،خوزیات عمریې خوړلي دکارکولوجوګه نه دي ، صرف ددې لپاره چې دپیر،سیداواغایاجهادي مشرپه نوم لایو څه ترې جلا کیدای شو .

## پخواني وختونه سیاسي او شخصي ژوند

ښاغلی مجددي په ۱۹۲٦ زېږیز کال کې د افغانستان لویدیځ ولایت هرات کې زېږېدلی. نوموړی د مجددي له کورنۍ نه ده چې نسب یې د احمد سرهندي مجددي پورې رسېږي اومتأسفانه چې دخپلې کورنۍ وروستنۍ روحاني لړۍ یې په یوه سیاسي بهیربدله کړه چې خلک اوس ورته هغه عقیده نلري کوم چې ددوي دکورني نورو مشائخوته یې لرله اولانورهم دشک په سترګه ورته ګوري .

## دولسمشرۍ وخت

صبغت الله مجددي د یوولس ورځو وروسته په کابل کې د مېشتو ګوندونو لخوا د هغه تړون له مخې د دوه میاشتو لپاره ولسمشر وټاکل شو چې په هغه تړون کې د ګلبدین حکمتیار د حزب اسلامي ګوند او شعیه ګوندونه په تړون کې نه ؤ شامل شوي. په همدې تړون کې داسې هم راغلي وه چې د صبغت الله مجددي د ولسمشرۍ د مودې وروسته به د جمعیت اسلامي ګوند مشر برهان الدین رباني د څلورو کالونو لپاره د افغانستان موقت ولسمشر وټاکل شي.

ښاغلي مجددي دټول ملت داولس مشرپه توگه خلقي اوپرچمي جنايت گارانوته هم عمومي عفوه اعلان کړه ،خوپه دې ترڅ کې يې رشيد دوستم ته دخالدبن وليد لقب هم ورکړي او بعضی وائی چي دا د زور خبره وه اوځيني نوربيايې دپرديو دپاليسي اومنځني شړو سرچنه بولي خوبه هرصورت دمجددي دواکمنۍ په لنډه موده کې ډيرې سترې تيروتي اودپردو لاسوهني وشوي.

د ۱۹۹۲ د جون په مياشت کې د مجددي د ولسمشرۍ موده پای ته نه وه رسېدلي چي په مجددي باندي راکټي کوزار وشو نومجددي هم ډيرژر او واک يې د رهبرۍ شوراوشمالي غړو ته وسپاره، چې تر دې وروسته رهبرۍ يا شمالي شورا برهان الدين رباني د ولسمشر په توگه ونوماوه. د همدې دول يوطرفه ترتيباتو د مخالفت پر اساس حکمتيار پر کابل باندې راکټي بريدونه پيل کړل چې همدا بريدونه تر درې کالونو پورې پرله پسې توگه کېدل او په همدې توگه د ۱۹۹۵ د فبرورۍ په مياشت کې حکمتيار کابل پرېښودلو ته مجبوره شو اومجددی هم دمرگ له گوښونوسره مخ و چي څه موده وروسته يې په تياره باندی توغندي بريده هم وشو ،خوبالاخره رباني سبب دده په ځای دراتلونکو کلونولپاره پاچاه شو.

اخځنې : قدرت الله حداد ( فرهاد ) ، د افغان ملي تاريخ د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز د ۱۳۸۳ لمريز کال چاپ . باندنی ترنې د صبغت الله مجددي وېبپانه اونوری انټرنيتي ويب پانی

# برهان الدين رباني



**برهان الدين رباني** () - (۱۹۴۰ - ۲۰ د سپتمبر، ۲۰۱۱ ز.) کال کې زیږیدلی د ۱۹۹۲ - ۱۹۹۶ ز. کال پورې یې د افغانستان ولسمشر ي په داسي حال کې وکړه چي یوائی په کابل باندي واکمن وو( ډیروتاریخو لیکونکو دده دنمګړي واکمنی علت دپښتنودښمني ښودلي ده .) همداراز هغه دکرزي دحکومت د سولې د شورا مشر او د جمیعت اسلامی د ګوند مشر او پخوانی جهادي رهبر هم پاتې شوی. نوموړی د توکم له پلوه دېګانی دی. او د افغانستان د ژغورنې د جبهه ملي تر نامه لاندې سیاسي ګوند لارښود هم وه، چې همدا وروستی نومېدلی ګوند د بېلابېلو پخوانیو کورنیو جګړو کې ښکېلو ډلګیو یوه سیاسي اېتلافي مرکزی جبهه ده چې په افغانستان کې یې د طالبانو د اسلامي غورځنګ په وړاندې د جګړې لپاره لاس یو کړی دی. رباني د افغانستان د ولسمشر په توګه تر هغه مهال پر کابل کې خپل واک چلاوه تر څو چې د طالبانو له غورځنګ سره په ټکر کې او د کابل په نیولو سره د کابل ښار څخه تېښتې ته اړ شو. د هغه دولت د ملګرو ملتونو او د ګڼ شمېر نورو هېوادونو لخوا یو پېژندل شوی موقت دولت و.

**پيژندنه :**

برهان الدين رباني د محمد يوسف ځوی دی چې په ۱۹۴۰ ز.کال کې د افغانستان سهېلي ولايت بدخشان کې زیږیدلی. له ۱۹۹۲ ز څخه تر ۱۹۹۵ ز پورې د افغانستان په کورنیو جګړو کې ښکېل و ، او د ملګرو ملتونو د بشر د حقوقو د څانګې له خوا چې وايي ، ده افغانستان کې بې توکمپالنې ،تجزيې او تبعيض ته لار هواره کړه او ده په خپله حکومتي دوره کې بې پر بې ګناه ولسونو هر راز غير بشري تېري ترسره کولو باندې تورن دی همدارنګه بې دی د افغانستان د ډېرو لرغونو اثارو پر(دبدخشان لعل اوداسي نور..) لوټلو او د بيت المال پر خرڅولو هم د بشر د حقوقو له خوا تورن دی ،خوترټولو ستره لوبه اوخيانت له جهاد اومجاهدينوسره وشولکه چي رحمان باباوائی له ازاره چابازار موندلي نه دي .

زده کړې

وروسته له دې چې يې خپلې لومړنۍ زده کړې په بدخشان کې پای ته ورسولې نو بيا کابل ته ولاړ او هلته يې د ابو حنيفه په دارالعلوم شرعي کې خپلې زده کړې پرمخ بيولې. وروسته له دې چې نوموړی د همدغه دارلعلوم نه بری وواته نو بيا يې د کابل پوهنتون کې د اسلامي قوانينو او شرعياتو فاکولتې کې لاره وموندله. په کابل پوهنتون کې د څلورو کالونو د مودې وروسته يې په اسلامي زده کړو کې نوم ترلاسه کړ چې ډېر ژر بيا په ۱۹۶۳ ز. کال کې په هماغه پوهنتون کې د استاد په توګه دنده ترسره کوله. د دې لپاره چې خپله اسلامي زده کړه نوره هم پراخه کړي خوځنګ کې دسياست په زانګو کې زنګيدلو په همدې تکل په ۱۹۶۶ ز. کال کې مصر ته ولاړ او هلته يې په قاهره کې د الازهر په اسلامي پوهنتون کې دتخصوص لپاره په زده کړو پيل وکړ او د هماغه پوهنتون نه يې په اسلامي علومو او اسلامي فلسفه کې د ماسټرۍ برې ليک ترلاسه کړ.

دجميعت اسلامي تنظيم جوړنه اوسياسي بهير

کله چې برهان الدين رباني په ۱۹۶۸ ز. کال کې بېرته افغانستان ته راستون شو نو بيا يې د جميعت اسلامي افغانستان ګوند لپاره په سياسي فعاليتونو پيل وکړ. هغه د پوهنتون په غولي کې د محصيلينو په جذب او منظمولو پيل کړی و. چې د همدغه فعاليت په پايله کې د ۱۹۷۲ ز. کال په ګونديزو ټاکنو کې د يوه ۱۵ کسيزه ډلګۍ او د جميعت اسلامي د بنسټګر، غلام محمد نيازي لخوا د جميعت اسلامي د ګوند مشر وټاکل شوګواکي داسي ښکاري چي ازهر نه يوائې ددينې اوعصري علومو مرکزدي بلکي دسياسي اهدافو لپاره هم ترې کاراخيستل کيدي چي ښاغلي سياف ،رباني اودهغوي نورملګري چي دکابل اوپښتنوپه وژلوکې يې لاس لرلو.

کله چې په ۱۹۷۴ ز. کال کې افغان پوليس د کابل پوهنتون ته د ده د نيولو په تکل راغلل نو برهان الدين رباني د خپلو پلويانو لخوا پټ شو او پوليس و نه توانېدل چې هغه ونيسي او په همدې توګه هغه پاکستان ته په تېښتېدلو کې بريالی شو. کله چې رباني پېښور ته ورسېده نو هماغلته يې د خپل ګوند مرکز تاسيس کړ او له هماغه ځايه يې د جميعت اسلامي د ګوند لارښوونه کوله. په پاکستان کې د نورو جهادي ګوندونو تر څنګ يې د روسانو او د هغه وخت د حکومت په وړاندې د جهاد اعلان وکړ او بيا د امريکا په وسلو او پېسو او د پاکستان په پوځي او سياسي لارښوونو د روسانو د يرغل په واندې ودرېده. کله چې په ۱۹۹۲ ز. کال کې د ډاکټر نجيب الله دولت د مجاهدينو دبريا په

ترڅ کې رنګ شو نو د رباني په مشرۍ د مجاهدینو لومړنۍ ملېشې کابل ته راننوتلې چې بیا تر ډېر مهاله یې د کابل واک له خپلو منځني جګړو سره ،سره په خپل لاس کې نیولی وه.

برهان الدین رباني پرته د ولسي رایو په کال ۱۹۹۲ز بړدي کې د ولسمشرۍ په څوکۍ کښېناست. په پام کې وه چې دی به د شپږو میاشتو لپاره د حکومت چارې سمبالوي بیا به ولسواکه رایو ته لار هواروي،

د ملګرو ملتونو د بړېوالو حقوقي څانګو لخوا په ښاغلي رباني باندې د هغه د حکومت په وخت په عامه وګړو باندې د هر ډول تېریو د مخ نه نیولو نیوکه روانه ده او همدا رنګه د ده ډلو په حکومتي واک باندې خپلسري وپش اچولو او په منځ کې د نه جوړجاړي له لامله د خلکو شتمني ویجاړولو ، د خلکو ناروا وژنې او د کابل ښار ټولنیزه ښاري ودانیو د ورانیو تورونه پر لګېدلي دي او تر ټولو ستره نیوکه دهیواد تجزیه ده چې طالبانو یې مخه ونیوه کني نو اوس به لوی تاجکستان اولوي ازبکستان دډیورنډ کرښې په ډول ځانګړي وو.

مړینه

برهان الدین رباني د ۲۰۱۱ ز کال د سپتمبر پر ۲۰ مه ، د ۷۰ کلو په عمر ، مازدیګر ناوخته د کابل په زړه وزیر اکبرخان مېنه کې په خپل کور کې د طالبانو د اسلامي تحریک لخوا په فدائی برید کې ووژل شو چې په یو حیرانوونکي ډول یې په پګړۍ کې د بارودو مرګوني سېستم جوړ کړي چې نوموړی فدائی طالب دهغه په توسط د پخلاینې دسترۍ مشي په مهال ووژلو.

اخځنی : دافغانستان ملی تاریخ ، مسعود وپیژني رحمت الله صافی کتاب دحکمتیارصیب پټی توطئی بربنډه څیرې .بی بی سی.


۱. http://www.bbc.co.uk/pashto/afghanistan/۲۰۱۱/۰۹/۱۱۰۹۲۰_rabani_killed.shtml
۲. http://www.bbc.co.uk/pashto/afghanistan/۲۰۱۱/۰۹/۱۱۰۹۲۱_as_rabbani_fenural.shtml

## په هیواد کې دناارامۍ اوظلمونو دور

### دطالبانو دغورځنګ درامنځته کیدولاملونه :

روسانو دخپلي ماتي په پای کې دفساد او الحاد هغه تشه چي باید جګړه جاري پاته شي د شمالي تحالف په جګړه مارو باندي ډکه کړه ترڅو ددوي پاته شوني دهیواد په راتلونکي خپلواک حکومت کې پوره ونډه ولري اوهم افغانان خپل ماتي خوړلی رقیب سری لښکرې تعقیب نه کړي چي بخارا اومسکوته پسي ورواو ړي.

خو هم هسي وشو پرافغانستان دکمونستي زیښناک ناروا اویرغلیزتاړاک د ماتېدوسره سم دمجاهدینو غیرمنظمه واکمني چي پرجهادي ډلومشتمله وه رامنځ ته سوه ،نوکه له یوې خوا دکلونوړیدلي هیواد اودردیدلي اولس سترې وو له بل لوري دګاونډیانولپاره ترټولوښه چانس اوموقع وه ، چي هیواد او اولس ارام او ارمان ته پرې نږدې همداوو چي دجوړو سوتنظمی ډولوټپلوڅخه دخپل مېنځنی رقابت او غچ اخېستني میدان تود وساتي ، په ټول هیواد کې دواکمنې ،ګدۍ اوروپۍ په سرجګړې اوناخوالې پیل سوې ،هرقومندان او امیرکوښښ کاوو چي خپله ساحه اونفوس زیات کړي ، چي په نتیجه کې يې ټوپک خپل دفاعی ، اقیصادي ، سیاسي او دزور واکۍ سمبول وګرزاوو.بس نوره خوښه دټوپک وه .( البته دومره بایدووایوچي دمجاهدینو دبدنامۍ په موخه یوشمېر بهرنیوکړیوهیڅی کړی ترڅوجهاد ،مجاهد ،هجرت ،علماء اوروحانیون بدنام کړي چي له همدې ګډوډۍ اوناارامۍ څخه په استفادی سره ډیر څه په لاس ورغلل »

### ( ۲ )اخلاقی فساد:

دطالبانو ترتحریک وړاندي بدمعاشانوهغه څه وکړل چي لیکل به یې یووخت راته څوک پېغور کې نوځکه بعضی هغه څه لیکل نه غواړم چي دې بدبختانو دخپلومسلمانو ورونوسره کړي دي ،خوبیاهم دومره ویلای سوچي اخلاقي فساد دې نتېجي ته رسیدلي وو چي غلا ،زنا ،قتل،شراب ،فحشي ،لواطت ،قومیت ،منطقه پرستي اوژبني تعصبات دپردیوپه لمسون دهیواد تجزیه ،مذهبي تیري اوداسي نورظلم غداري چي هیواد اوله اولس سره وسوه ددې اخلاقي فساد اوج ته رسیدل ددطالبانو دراتګ سبب شو چي اولس تنګ سو اویودرېیم ځواک دراوستو په انتظار و چي کله به یوداسي ځواک اوغورځنګ رامینځ ته شي چي ددې بدبختویوځواب ووائی .

## (۳) ټوپک او پاټک سالاري :

لکه پورته چي مو يادونه وکړه دکمونزم له ماتېدو وروسته مجاهدين په دوه برخو ووېشل سو يوهغه هوشياره او اسلامپال اشخاص ووچي نوردواک ،توکم اوسيمې په سرجګړه ورته ناورا اوله خپل غوښتونکي هدف څخه لري وه، خوبله ډله بيا دزور او زر ليواله او دمجاهدتر سپېڅلي نامه لاندې واک ته درسيدولاره غوره کړه ،چي دهيواد پلازمېنه يې دخپل منځنۍ جګړويوخونړي مرکز وګرزاوو اوکيداى شي چي داسي څوک به هم وو چي ديواسلامي حکومت دراوستوهوډ به يې لرلو ،خوهغه ډېر کم اوبې واکه وو او واک يوازې په پاټک اچولو کې وو.

دهيواد په ټولولويولاروکې دهرتنظيم پاټکونه (چي دمحصول په نامه يې له عام اولس اودهيواد له تاجرو څخه په زور نقدي روپۍ اوتجارتي وسائل اخيستل )چي بلاخره دپاټکسالارانو دابهيردې حد ته ورسيدچي نورنودخلکومال اوناموس خپله ددوي لخوا لوټېدلو، هيچانشواى کولاى چي له يوې سيمې تر بلې پوري په امن خپل سرمال اوناموس ورسوي چي همدا دطالبانو داسلامي غورځنګ درامنځ ته کيدو دويم لامل و.

## (۴) ظلم او زور زياتي لړۍ :

درېيم لامل :ددې لرغونی هيواد اوغيورمجاهدپروره اولس په تاريخ يوتورداغ بلل کېداى سي دهيواد شمال کې روسي اوايراني ايجنټانودتوکم اوسېميزوناندريوپه سر داورلمبې دکابل ترجنتي ښاره راورسولي چي دکابل مظلوم اولس اوښاريې په کې لوپه لوپه کړدښارجګپوړي ودانې يې ويراني کړلې دهيواد ارشيف ، او دولتي اداروټول توکي اوسامانونه يې چوراو لوټ کړل،دښاريانوناموس دسترحدلرسره مخ و ،شتمني يې تالااوغلا کړل شوي ، دښځو دتيوپريکول او دمرو اتڼ (له ژوندوخلکوڅخه دسرونوپريکول )له موټرو څخه دښکلونجنواو ځلميانورا ايسارول... او دې ته ورته ناخوالې يې وکړې .

نواولس ته بې له ښېرا اودعا بل څه نه وو پاته چي ويل به يې خدايه !

يوداسې اسماني لښکرې راولې چي نه دتوکم ،نژاد ،قوميت خوانسي اونه دظالم ،واکمنی اوشتمنی خوانسي اوداواکمن ظالمان زموږ له سره لېرکړي !

هغه ووچي په نتيجه کې يې دطالبانو اسلامي تحريک دهيواد له جنوب څخه را وټوکيدي او دظلم ،عرياني ،فحاشي اوبدمعاشي تغريې يوپه بل پسې ټول کړ.

خودا اسماني لښکري نه وي بلکي دا ددېني مدرسوهغه پاک زړي او سپېڅلي اوددې ملت اصلي بچان وو چي خپل ټول عمريې ددين او الله په لارکې بخښلي وو دوي نه شتمني لرله او نه واکمني

،خويواځې دعقيدې استغناء اوفناء غرور دومره جرأت او ميړني احساسات ورکړي وو چې بې له الهي امره دبل څه پروايې نه لرله ، ولي چې دوي په ديني مدرسوکي قراني ارشادات اونبوي لاربنودني ترسره کولي چې دالله پاک ارشاد دي :چاچي زماددين مرسته وکړه ، زه به دهغوي مرسته وکړم . ،بل ددې عزم په راپيدا کيدلوسره دراشده خلافت خاطراتو اوحماسو هم ددوي احساسات په غورځنګ راوستلي وو چې دې نتيجه کې په (۱۹۹۴)ميلادی کال کی دښاغلي ملامحمدعمرمجاهد حفظه الله په لاربنودني اورهبرۍ سره دفساد په ضدجهاد ترعنوان لاندې يو منظم اسلامي قوت اوتحريک پيل سو داسلام سپيني لښکرې يا ځمکني پريشتي په ډيره کمه موده کې دهيواد کوټ کوټ ته خپل اسلامي نظام ورساوه چې داولس هغه غوښتني چې خدايه امن راولي ! خدايه ! يواسلامي خپلواکه حکومت راولي داظالمان زموږ له سرو لېرکړي ،هغه ترسره شو دشهيدانو دوينورنګ په يوه اسلامي حکومت واوښت اودمظلوميت ارمانونه پوره شو .

**يوڅونور عوامل چې دطالبانو دراتګ اودملت هيله وګرزيده**

د جهادي ډلو دواک په سر جګړې دنورو مادي او مالي زيان ترڅنګ، دځاني او عام اولس وژنه تقريبا ترڅلوېښت زره وګړو پورې واوېښتله دجګړې پای او دسولي اوپخلاينې امکان نه دنړيوالو بشري کړيوسره کيدی اونه هم داسلامي هيوادونو له اتحادي يې سره ددې توان وو؛ ملي شتمنۍ لوټ شوي شمالي ټلوالي دبدخشان په لعلونو يوعام تجارت پيل کړ وه، دجنوبي ولاياتو مسکينوټوپکيانو اخر دچورلکو اوټانګانو په کباړولوپيل وکړ ،خودا کړني هيڅ ملي خيانت نه بلل کيدي ،ولي ملت دسر اوناموس ساتلو په لټه کې وو بس يواځې ديوه سپين سهار په تمه يې شپې او شپې سباکولي او ديودرېيم ملي قوت په راپاڅيدوټول ملت انتظارسي او سترګې په لار وو.«يادونه ! هغه مجاهدين چې دروسی کمونستي ښکېلاک په وړاندې يې کومې برياوې حاصلې کړی وي ، دهغوي ددې برياوو په لاسته راوړنو غيرمجاهدينو دمجاهد په نامه هغه لوبې وکړي چې دافغان مجاهدينو وياړلی تاريخ يې وربدنام کړ ،خومجاهدينو دخپلو بچانوپه مټ بيرته ديونوي بدلون او اوښتون په وسيله اووسله خپله بايللې بريا وګټله چې په نتيجه کې يې يواسلامي غورځنګ رامېنځ کړاودجهادبرم يې په يوه اسلامي حکومت تازه کړ.

## (۲)تر امارت وړاندي تنظیمي واکمني او اداري نظام )

ددې جګړه مارو او خپلسرو ملیشو ډلو ترمینځ کوم ریاست او یو نظام ،خو بالکل نه و، او دالاځه افغانستان د ډلو په مابین کی ویشل شوی وو، بس فقط قدرت او شتمني ته لیونی وه،هره یوه په ځانګړو ښارونو قدرت لرلو چې یوائې دهغه دخوښې امر به منل کیدو ،او پاچا او امیر د دوی هیڅ داسي ځانګړی قدرت نه درلودی چې دوی دقوانینو په احترام مجبور کړی او په خپلو فرمانوئی مقید کړی چې دطالبانو تر ظهور وړاندي مسعود، دوستم او اسماعیل دشمال ختیځ بیا تر جنوب لویدیځ پورې دښتنو



احمدشاه مسعود او رشید دوستم

داکثریت په وړاندي یو مثلث جوړ کړي وو په دې وخت کی دربانی او مسعود حکومت پر یو شمیر ولایاتو واکمني لرله فقط په شمال او په میځنی سیموکی،او دشمال بل لورې ته بیا د رشید دوستم دګلمجمع ډلی شپږ ولایتونه په خپله مشرې او او بدمعاشي چلوله .او دهیواد جنوب لویدیځ ته د اسماعیل خان نظام او واکمني وو ،چي همدا دهیواد دتجزیې نښې وي ،نو هغه وو چې د طالبانو اسلامي امارت یو په بل پسي ړنګ کړ او پر ځای یې اسلامي نظام پلي کړي .

## (۴)بدامني او ګډوډي:

داچي روسي یرغل د افغان مجاهدینو په موټ مات او دړې وړې سو نړۍ او د وطن خلکو له همدې باتورو څخه داتوقع لرله چې اوس نو که خیر وو روسي لاسپوځي حکومت ړنګ سو پر ځای به یې سوچه اسلامي نظام او له افغاني ننګه ډکه اداره جوړه شي ،لیکن ددې پر ځای بر عکس دګاوـ وند ـ یانوـ د ډار لامله چې ګواکي نه داسي افغانستان جوړسي چې زمونږ دمنافعو په ضرر وي نو له همدې سره هرګاونډی خپل جاسوسا ن ،چاپلوسان ،پایلوسان وګومارل چې هیواد ګډوډ کړي او کفري هیوادونو بیا غوښتل چې : جهاد ،مجاهد، هجرت او مهاجر بدنام کړي مذهبي جذبا ت او احساسا ت مړه او ساړه کړي چې په نتیجه کي عریاني، بدمعاشي او پاټکسالاري رامنځ ته کړي همدا وسو چې هرچا خپل مال ،اولاد او ناموس خوندي نه بلکي پردي بللو ،د تجارت او معملات، نیمه برخه دټوپکیانو وه ، شتمنی ،جګپوړي ودانې یا قبضه او یا ویرانیدلې غلا چور او چپاو اوج ته

رسیدلي دهیواد دبیت المال شتمني په ګباړکې په ګاونډیانو وپلورسوي دالاځه چي په هیواد کی امنیت بېخي له پښوولوېدی حتی دسړیو ،میرمنو اوماشومانو اغواو غلاکیدل پیل سو هغه خارجي موسیسات چي جاسوسي لپاره راغلي اخیرهغوي ته هم ژوند ګران سو اوپه ګڼ مېشتوځایو کی دډلو مسلح جنګونه چی په لس ګونومړی اوزخمیانوسبب به ګرزیدلو اومالونه به لوټ سوځایونه او ودانی به خرابې سوی له همدې وجهی خلک یوواک ته سترګی په لارو، چی امنیت راولی اوقراری جوړه سی نوهمدا یوبل لامل وو چي وطالبانوته يې مخ او لاره خلاصه کړه.

## (۵) دجګړ ما رو لنډواټن اوډیری پیسي:

دایوطبقه خلک وه چی دموړوالی اومالداری علامې چټکی پری ښکاره سوې په داسی حال کی چی دخود سرو ملیشو په مابین کی جګړه ښه توده وه او سبب دمالداری ئی په معادن(کانونو)تجارت اوقیمتی ډبرو اوغمیو ، دسلاح اودولتي اوزړو اوسپینو پلورل اوله خارجي هیوادنو له خفیه اینجسانو او اجنټانو ته يې خدمت کاوو ، ددې په څنګ کی بعضی لوړمنصبه خلګودګمرکی مالواودسرحدي ټکسوڅخه هم ډېرڅه ترلاس کړل،نوپه دې وخت کې یوطبقه مالداره اشخاص رامینځ ته سوه چي خورا شان اوشوکته يې لرلو او پرمظلومه طبقه به ئی خودسري حکومت کاوه دزور اوظلم پړاوو ورځ په ورځ زیاتېدلو ، نورملت مایوسه و نه يې بل داسي څواک لدلو چي یافنا ورورې اویا دننګ تمه ترې وکړي لیکن ظلم هم اوج اوپای لري اوظالم هم یووخت چاته په تمر ورځي چي هغه يې دناکامي سبب شي ،خوهمداسي وشو.

## دوهم خارجی عوامل:

.(۱)پردولتي اقلیم برابر خارجي عوامل بېخي ډېرپرله راواوښتل هر هیواد خپل منافع لټول ولوکه که يې خپلي ګټي دبل په تاوان کي لټولي اویایی خپل عزت دبل په بی عزتي کې ترلاسه کاووایران داکوشش وو چي د افغانستان له اقلیتونو څخه دخپلواهدافو موخي لاس ته راوړي چي مذهبي اوهم ملی ګټی دواړي ولټوي چي هلته يې دتاجک ، ازبک اوهزاره لږکیوته چانس اوموقع برابرولي خوبلوري ته پښتانه دپاکستان لخوا سپورټیدل چي پښتانه رهبران او تنظیمونه ووپاکستان کوشش کاوه چي په افغانستان کې یودوست حکومت رامنځته سي ترڅوتجارتی تبادله ئی په آسانی سره له منځنی آسیا سره متبادل شي اوهم دپرتوګاونډیانو له شره ځان وساتي اوهیواد کې دخپل نفوس پراختیاته ادامه ورکړی.ددې امیدئی دربانی اومسعودپه حکومت کی نه ترسره کیدلو، ولی دوی ئی دهند،انډیا، اوروسیی سره په سیاسي اوپوځی مرستومتهم کړو،اوپردوی ئی دوستم او

حکمتیار راوه پاڅول ترڅو ختم ئی کړی، خوبالاخره دواړه لوري د طالبانو له لوري مات او خرڅوري سول.

## (۲) دامریکا متحده آیالات:

بل لوري ته دامریکی متحده آیالاتو دخپلو ګټو پربکړه وکړه او دطالبانو راپاڅیدل یې دځان په نفع وبللو چې دوی یې دروسي ایران اوچین په وړاندي ګواښ بلل نودوی په ابتداءکی دطالبانو مخنوي ونه کړه ،خووروسته چې ګټې سره ګډوډې اومختلفې شوې اوضاع سرچپه غوندی سوه طالبانو اسلامي نظام اعلان کړي اداري نظام یی جوړکړي پنځه نوي فیصده خاوره یې دځان کړه اودنوري نړۍ مسلمانانو ته یې دخواخوږي اوهمدردي لاس وغځاوو دیوه اسلامي بین الملل همږغیز فلانونه یې مطرح کړل نودوی هم دطالبانو دښمني ته لېښي رابډوهلي اویوه نړیواله صلیبي پوځي اداره یې سره همغږي کړه اوهغه وخت چې په انتظار کې یې تیرکړی وو په هغه یې پښېماني وښودله په ابتداءکی امریکادسیاست په اسمان کی خپل اهداف لټول اوبل واشنګټن نه غوښتو چې ایران دې په افغانستان کی نفوذپیداکړی اوایران ئی د شرق اوله منځنی اسیا له اړیکوڅخه منع کاوه اودقزوین له دریاب څخه چې له خلیج عربی وروسته دوهمه لویه نفطی (تیل) زېرمه دی دامریکا متحده آیالاتو نه غوښتو چې دطالبانو مخ ډب کړی ؛لیکن یوشمیرشنونکي اوتاریخ لیکونکی بیا ایران او اسرائیل دواړه دامریکی پټ رازي ملګري بولي چې دواړه په مذهبي تعصب اوضد کې ساري نه لري دواړه غواړي چې سني مسلمان په اسیاکې کمزوري سي په عربی نړۍ کې اسرائیلو دشعیه لړکیوپه مرسته دصلیبي پټوچاسوسانو په همکاري ډیرڅه وکړل دافغانستان او روسي په ضدجهاد څخه امریکا اوبرتانیادیرڅه په لاس راوړل هغه قلم وال چې لږ جهادي افکار به یې درلودل اوڅه ناڅه به دلیک لوست ، مطبوعاتي اوفرهنګي چاروسر اشناوو هغه یې ټول غربی نړۍ ته جلب کړل ترڅوداوسني یرغل لپاره ترې کارواخلي چاته یې فرهنګي اومطبوعاتي روزنه ورکړه لکه اوس چې نننی صلیبی تبلیغاتي میډیا ددوي په موټوچلوي اویوشمیرنوریې بیا دسیاسي اوپوځي چاروپه موخه وګمارل لکه نننی ډیموکراسه صلیبی پلوه اداره او ورته څیرې اوڅه نور چې دلي په هیواد کې یې په نظامي اوجګړیزو چارو ګمارلی وو لکه : مسعود ،رباني ، سیاف وغیره . نوهمدا وچې ددې پراخي سرې جګړې ډزد ۲۰۰۱ میلادي کال دصلیبی یرغل سبب شو چې دداخلي ګوډاګیانو په لمسون اوپاڅون سره رامینځ ته سو .

## طالبان څوک اوله کومه راځرګند شول ؟

طالب اصل کې یوعربی کلمه ده چي د طلب یا غوښتني په معني ده په دیني مدارسوکې هغه چاته ویل کیږي چي څوک ددیني علوموزده کړه اوغوښتنه کوي نوهغه ته طالب ویل کیږي چي په پښتوکې یې جمع طالبان دي دوي په په دیني مدارسوکې ددیني اسلامي حنفي مذهب دفنونوزده کړه کوي چي له قران کریم ،حدیث ،صرف ،نحو ،منطق ،اصول ، عقائد، حکمت ،ریاضي ، تاریخ ،فلسفه اوداسي نوروفنونوڅخه عبارت دي .

طالبان دتیرروسي یرغل دجهادپه موده کې هم وجود لرلوچي په هرولایت کې یې ځانګړي جهادي جبهات موجودو چي په وخت سره په یوه فعال تنظیم جمعیت طلباء حرکت انقلاب اسلامي افغانستان راځرګند شول چي سرمشري لومړی مرحوم مولوي محمدنبي محمدي کوله اوبیاوروسته یې ځانګړي قیادت غوره کړ.

خوهلته اقلیت و ،البته کله چي دروسي یرغل لښکرې راپیل شوي افغان مجاهدینو دمقاومت اوجهاد لپارلیځي رابډ وهلي اودپاکستان ایران په شمول ځنیي نوروهیوادوته یې هجرت وکړ،خوهغه طبقه خلک چي پاکستان او ایران ته مهاجرشول هغوي دجهادعزم کړي اوهغه وګړي چي نوروبهرني هیوادونوته یې فناء یووړه هغه فراربلل کیږي ځکه جهاد اوهجرت دې ته ویل کیږي چي څوک کوم بل ځای یاهیواد ته هجرت وکړي نوله هغه ځایه بیا جهاد پیل کړي لکه دپاکستان اوایران مېشت مهاجر چي دروسي تیرکونکي اوګوډاګیانو تروروستي برید یې خپل مقدس جهاد ته دوام ورکړي وو ، اوریښتیا هم چي له هغوبهرني مېشتو بعضي اشخاصوڅخه په دې وروستیوکې ډېرخطرناکي او پردې پلوی څېر راوځیږيدي چي دغربي ښکیلاک په راوستلو کې یې ډېرخونړی له ویر اوغلامۍ ډک رول ولوباوه .

نوداچي طالبان له کومه راپیدشول بایدووایو کله چي افغان مجاهد دروسي یرغل سره دماتي اومقاومت چني وهلي په هغه موده کې دهیواد سترو جهادي افکارو لرونکي مجاهدینو دافغان مهاجرینو په کېمپونو کې په یو منظم ډول دیني مدارس او ښوونځي پرانستلي چي دهرافغان مجاهد بچیانوته بې له کوم امتیاز دزده کړي موقع برابرې وي دیني مدارس او ښوونځي به په یوه ځای کې جوړیدله ترڅو داختلاف سبب ونه ګرزي او مجاهدینو دښوونځیو نصاب په ډیر ښه اویوه اسلامي تګلاره سره غورکړي وه چي هیڅ داعتراض ځای په کې نه و، بعضي مسائل یې ددیني مدارسو دنصاب اودښوونځیو دنصاب سره یو ډول و ، حتي په ښوونځیوکې دجهاد ،مجاهد، مهاجر،

خپلواکی ، وطندوستي ، ملي غور، ملي تماميت ،ملي احساس ، جهادي ولولي ، ديني پوهنه ،تعلمي ارتيااوداسي نورمضامين تر دينومدارسو فوق العاده او ويل يې لازمي و ،خوکله چې دکرزي اداره مينځ راغله دانصاب يې ختم کړ د(ج جهاد ) پرځای يې (ج جواری) راوړ، چې دصليبي تعصب يوه بېلګه يې څرګنده کړه ، خوپه طب ،سائنس اوداسي نورو مضامين کې چې دافغانانو په ګټه و هيڅ تغيررانوست نوره خبره نه اوږده وم طالبان دهمدې مجاهدينو نسل دي چې په مهاجرکېمپونو اودهيواد په لراوبرکې زيږيدلي دي ددوي تولنېزه روزنه په جهادي دورکې شوي دادهغوبااحساس غيرتمندو مجاهدينو بچان دي چې روسي کمونستي تاړک يې په ګونډو کړي اونړی يې دتل لپاره دکمونستي کرغيړنوافکارو اويرغل څخه ساتلي ، اوس به نو ددوي بچان همداسي اسلامي نړۍ اوهيواد دصليبي افکارو اويرغل څخه ساتي ځکه چې اصل زو تل دپلار په تګلاره اوعقيده باندي عمل کوي .

طالبان پره دي نه دي دوي له کوم بل وطنه نه دي راغلي ددوي ترشاه کومي روسي او انګريزي لښکر نشته ددوي روزنه په المان ،مسکواو واشنتن کې نه ده شوي دوي لااوس هم هغه ملي کلتوري اوعنعنانوي احساسات اوتګلاره لري دوي زموږ ديني او ملي لښکر دی دوي هيواد دکمونستي پاته شونو له تجزيې وژغورلو اوفعلي مقاومت يې هم دتجزيي اوعقيدې په سر روان دي چې صليبان اوکمونستاني پاتشوني غوړاي چې هيواد په شمالي اوجنوبي افغانستان ياپه کومه بله نقشه ووېشي .

# ملا محمد عمر اخند(امیرالمؤمنین)

ملامحمدعمراخند دملاغلام نبی اخندزوي اوهغه بیادملاغلام رسول اخندلمسي اودملامحمد ایازاخند کړوسي دي چي تقریبا په (، ۱۹۵۹-) میلادي کال کې یې په یره دینداره علمي کورنۍ کې نړۍ ته سترګي رغړولي، دپلاریوازنی زوي وو، چي دده په دوه کلني کې یې پلار مرحوم وفات کړي اودې دوه کلن ماشوم پاته شوي؛نوموړي په قوم هوتک چي دمیرویس خان نیکه ته برته منسوب دي ،ښاغلي تقریبا درې پنځوس کاله وړاندي دقندهارپه نورې نومه سیمه کې زوکړه سوي چي دمشرې تروخته په سنګحصارسیمه کې په یوه ختین کورکې ژوند کاوه اصلا دي دزابل ولایت دشنکۍ ولسوالي دباري ځره دتمزو دنیکانو ځخه چي دده دنیکونو اصلي مینه ووه بیاروزګان ته کډه کړي ولي چي دوي یوه علمي کورنۍ وه تل یې دلوي قندهار په ولایتونوکې دامامت اودعوت چاري له نیکونو راتیري کړي .

ملامحمدعمراخند لاددیني زده کړو دصرف نحوي منطق فقه دویلوپه وروستي پړا بوخت ووچي روسي کمونسي یرغل پیل شو دي خپلواکاګانوته یتیم پاته وو دیني زده کړي ځه ناځه په کورې کې له همدې خاطرکولي چي دکورچاری یې هم په غاړه وي دکورنۍ دوکړو هم زړه نه پرکیده چي چیرته لېري په دیني زده کړي پسي لاړ شي دده دځوانۍ لومړي مرحله چي دجهاد پیل یې دروزګان له راتګ وروسته دقندهار دنامتوچریکانو سره پیل کړي ، دي خورا دلاور اوځالاکه چریکي ځلمي مجاهدوو ددري ځلوزخمي کیدلو وروسته بیا په اخیرځل په راسته سترګه کې هم زخمي شو وروسته له دې چې ملا عمراخند یوه سترګه له لاسه ورکړه او معیوبه شو، داقتدار او سیمیزو جګړو ځخه یې نفرت کاوه نو بیا یې مدرسې ته مخه کړه او په دیني مدرسه کې یې خپله دیني زده کړه پیل کړه د زده کړو په بهیرکې یې د کندهار ښار ته ځیرمه دسنګ حصارپه سیمه کې دخپلواقرباؤ دیوجومات امامت هم ترسره کاو چي همدې وخت کې دزابل شنکۍ ولسوالي له یوه جید عالم ځخه یې دفقهي اونورودینی کتابونو دزده کړي درس ته دوام ورکړ چي په همدې لړ کې یې هغوي ته دښه نیت په غرض ورسره دوستانه اړیکي هم ټېنګي کړي ،خودلته له یوې خوا دده ددنیی علوم شوق اوذوق وو له بلې لوري دهیواد په لراوبرکې دوحشت او ناروا کړو نولړۍ کلیواوباندوته په رسیدوسره جهادی احساسات اوننګوني غیرت راپاځاولو .

دي دخپلي تقوى باوجود یوننگیالي اوغیرتي شخص هم وو دده ضمیر دافغانانو دناموس اوعزت لوټولو کړني نشواى منلاى چي همدې وخت کې یې دیواسلامي پاڅون په مخه یوتحریک پیل کړي چي دهیواد دطالبانو اوصالحومجاهدینوڅخه په مټ بریالي اوبالاخره دیوه اسلامي امارت په قائموسره یې په هیواد کې سرتاسري صلحه اوشرعي نظام پلي کړ.

## دروسانو یرغل او د ده جهادي کړني

ملامحمد عمرمجاهد روسانو پر ضد د جهاد په وختونو کې د حرکت انقلابې اسلامي یو چریکي جنګیالی وه.

ملامحمدعمراخند اودامارت بل مخورشخص ملابرادراخندله روزګان څخه قندهارته هجرت وکړ ،نوموړی څلور ځله په جګړه کې زخمي شوی چې په همدغو پایلو کې یې په یوې پېښه کې د یوې چاودنې له کبله خپله یوه سترګه له لاسه ورکړې.. خو د نړیوال سره صلیب د راپور له مخې د پاکستان پولې ته نژدې د سره صلیب په یوه کمپ کې د ده درملنه شوې وه، او د ملا عمر مجاهد سترګه په جراحي توګه په همدغه کمپ کې لرې کړاى شوې وه چې همدا دمجاهدینو دعاجلو جراحي عملیاتو مرکزوو دروسانو اودپاته کمونستانوواکمنودماتې تروروستي بریدپورې ښه په میړانه یې جهاد وکړ.

## دده شخصي ژوند اوتګلاره

ملامحمدعمر اخند یوغښتلی مبارز او مجاهدپروروه شخص وو دنورو رهبرانو پاچاهانو او امیرانو په څیرنه وو دی دساده ژوند ډیرلیواله دي ،دشهرت اوځانغوښتنې خلاف و،جامه یې دعاموو ګروپه څیرډیره ساده وه ،خواړه یې عام ډول و. ډیرې خبرې کجباسي یې هم نه لرله ، اونه ډیرپه زورخنداکوله دنورخلکوخبروته یې خورا په مینه غوږنوی ، بې ځای شوراوغوغایې نه خوښوله ، دژوندډیره برخه یې په علم عبادت اونصحت تیروله ،قداوقامت یې درمیانه و نه ډیرټیټ اونه ډیرجګ و،خودجهاد اوهیواد سره یې ډیره مینه و ، اونه داسي وچي په خارجي سفرونوبه بوخت وو یابه دعیاشي او فحاشي په مستي کې ډوب وو ، خپله خواړه اوجامه یې هم له نورو ملګرو او اولسی کلتور او سنت څخه بدل نه وه ، ملا محمد عمرمجاهد دسنتوډیرخیال ساتلو ،پګړی ،څادر، په مخ باندې ږیره یې اسلامي ، سنتي اوپښتني سمبول وو ده هیڅ وخت لډونځ بې جماعت نه کولو یعني

دلمانځه ،روژي اونورو فرضي اموردير پابندوو ، ده به تل دخپلوځواکونومشرانو ته دتيرو هغو مجاهدينو چي له جهاد وروسته په فساد اخته شول ، دانجام اوعبرت توصيه کوله اودصحابه کرامو دکردار اورفتار بلنه بې ورته کوله دده ټول فرمانونه دخلافت يوه ريښتني اداره انځوروله ، ده ته قدرت ،اوشتمنۍ کوم اعتبارنه لرولو نه يې تراوس په کوم ملک کې ستري ماڼۍ او ودانۍ شته اونه يې په بهرني بانګو کې مالي شتمنۍ ، بلکي يوچريکي ،زړور ، اوخاکساره رهبر دي ترټول ډيريې له جهادي اشخاصو سره مينه وه هغه که عجمي اوياکه عربي وو ،خودجهاد په اخيروختونوکې يې دسنګحصار په ختمن کور کې ژوند کاوه اوهلته يې دخپلوانوديومسجدداامامت چارې هم ترسره کولي چي په څنګ کې يې ددينې علوموزده کړه هم کوله ، البته دومره بايدووايوچي دنوموړي په هکله په اوسني عصرکې همدومروه معلومات اوپيژندنه کافي ګڼو .

## د طالبانو دپاځون لومړی قيصه

## دامير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد په ژبه

دنړۍ تاغوتي تاقوتونوکمونستي اوصليبي يرغلونو نه يوازې يې په هيواد ،دين اوملت پوځی تيرکړی بلکي دهررنګ نشراتي ،مطبوعاتي اوتبليغاتي يرغلونوترڅنګ يې يوشمېر اشخاص دې ته ګمارلي چي اسلام اومسلمان بدنام کړی ،غلاډاکې اوبې امنيتي رامېنځ ته کړي ترڅو دوې په دې خړه فضااو اوضاع کې خپلي ګټي ترلاسه کړی دپردويو دتبليغاتو يوه انګازه داهم وه چي دطالبان دپاکستاني پوځ اواستخباراتو يوه جوړه شوي پوځی اداره ده ،خو ملت په داسي پوچوتبليغاتونه غوليدل ولي چي دهريوه کور يوطالب ،ملااومجاهد به ضرور ددې غورځنګ غړی وه نوپه همدې اړه خپله دطالبانومشر دخپل غورځنګ اوپاڅون قيصه بيانو ی چي دسمې اوهيواد اکثره مسلمان وګړي پرې شاهد دی .

## ښاغلي اميرالمؤمنين ملامحمدعمرمجاهد

## دطالبانو داسلامي پاڅون قصيه اوپيلامه داسي بيانوي :

ما يوه کوچنۍ مد رسه جوړه کړه چې پکې زما سره پنځلس شل طالبان ؤ ، ما هم په دغه مدرسه کې سبقونه ويل يوه ورځ زه په سبق ويلو بوخت وم چې زما په ذهن کې يو خيال راغی ما خپل کتاب کت کړی له دې وړاندې داسې خيال زما په ذهن کې نه ؤ راغلی زه راپورته شوم او يو ملګری مې د ځان سره کړی، آيا دا آية لا يكلف الله زما سره الله هغه وخت زما لپاره بس نه ؤ ، څرنګه چې ماته دا فکر

راولېږدي زما سره هیڅ نه ؤ، نه کومه سلاح نه کوم فوځ او نه مال او دولت ؤ نو آیا ما به هغه وخت خپل ځان نا ملکف بللی وای خو ما صرف توکل وکړ او د الله رب العزت سره مې په رښتیا وعده «ژمنه» چې زه به هرومرو دا کار کوم، ما کتاب کت کړی ملګري مې د ځان سره کړل سنګسار د یوې سیمې نوم دی هلته زما د سرور په نوم یو سړی چې
د قندهار د سیمې تلکان هستوګن ؤ موټر سائیکل مو په پور واخیست خپل ملګری مې د ځان سره کښېناوی زنګاوات ته ولاړو له زنګاوات څخه مخته تر تلکان پورې مونږ پیاده روان ؤ په لار کې د اغزنو بوټو او اغزیو له امله تګ ډیر ستونزمن ؤ ما په لاره کې وملګري ته وویل چې دا شپه په یاد لره ددې اجر «بدله» به ضرور راکول کیږي ان شاء الله.
سهار مونږ خپل کار پیل کړی، یو مسجد ته ورغلو هلته اووه طالبانو سبقونه ویل مونږ دوئ د دائرې په شکل کښېنولو او له دوئ سره مې خبره پیل کړه چې د الله رب العزت دین په پښه کیږي او فسق او چورچپاول په ډاګه پر سړکونو کیږي سړی له موټره راکښته کړي په مرمیو یې ولي او د ویرې او ډار له کبله څوک هغه ښخوي هم نه، زمونږ دلته په سبقونو ویلو دا مسئلې نه حل کیږي او زنده باد او مرده باد په نعرو وهلو هیڅ نه کیږي، که تاسو په اخلاص سره د الله رب العزت د دین خدمت کول غواړئ نو ستاسو دا سبقونه به پاته سي، زما سره چا تر یوې روپۍ راکولو پورې هم وعده نه ده کړې، که کلیوال مونږ ته ډوډۍ راکوي او که یې نه راکوي دا د دوئ خوښه ده زما سره صرف له توکل پرته هیڅ هم نشته دا کار ترهفتې «اوونۍ» میاشتې یا کال پورې نه، د ژوند تر آخیري شېبې پورې کول دي او ډاډ مې هم ورکړ ګورئ فاسقان فاجران خلک د الله رب العزت په د ښمني کې شپه او ورځ د جنګ په ډګر کې دي او دوئ دهیڅ شي پروانه کوي مونږ دومره کمزوري او ویرېدونکي یو چې دا دعوی هم لرو چې مونږ د الله د دین پیرو کاریو او ددوئ مقابله نه شو کولای.

﴿وَلَا تَهِنُوا فِي ابْتِغَاءِ الْقَوْمِ إِن تَكُونُوا تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ﴾

ژباړه: او تاسو سستي مه کوئ په طلب دهغو خلکو که تاسو ته خوږ رسي نوبیشکه دوئ ته هم خوږ رسیږي لکه چې تاسو ته خوږ رسي.
له اوو طالبانو څخه چاو ماته ډاډ ورکوونکی ځواب رانه کړ او نه سمدستي کارته چمتو شو، الله خبر دی ټولو ویل که د پنجشمبې «جمعرات» په ورځ مونږ خلاص شوو نو کوشش به کوو نو آیا ما به دا اووه طالبان مقیس علیه ګرځولي وای نو ټول به مې پردوئ قیاس کړي وای او مایوسه به بیرته راغلي وای خپل سبقونه به مې پیل کړي وای آیا هغه وخت دا آیت ﴿لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ زما لپاره کفایت نه کاؤ خو ما خپل ځان ددې مکلف جوړ کړی او ما چې د الله رب العزت سره کومه ژمنه

کړې وه د هغې د تر سره کولو لپاره وبل مسجد ته ورغلم په هغه مسجد کې هم پنځه شپږ طالبان ؤ ما
دوئ ته هم هغه بلنه ورکړه کوم چې مې مخکې طالبانو ته ورکړې وه نو هغوئ ټول تیار شول او دوئ د
بشپړې همکارۍ ژمنه وکړه او وهمدې کار ته چمتو شول دا هم د هغه امت خلک وو د کوم امت چې
نور ټول ؤ آیا دا نارینه او نورو ټول ښځینه ؤ یا دا غټان او نور کوچنیان، یا دوئ د کوم بل نسل ؤ او
نور د کوم بل نسل، نه په دوئ کې او په نورو خلکو کې هیڅ توپیر نه ؤ ما پر الله رب العزت باندې د
محض توکل نتیجه «پایله» دارا وایسته چې له سهاره تر مابنامه پورې پنځه پنځوس «۵۵»
طالبان تیار شول نو ما دوئ ته وویل چې تاسو سهار راسئ خو دا ټول پر الله رب العزت توکل
کوونکي په همداغه شپه یوه بجه سنګسارته راورسېدل د سهار په لمانځه کې چې کله مولوي
صاحب سلام وګرزوی نو یو سړي مولوي صاحب ته وویل چې ما یو خوب لیدلی دی ما ولیدل چې
زمونږ دغه سیمې سنګسارته ډیرې فرشتې راغلې دي او ددوئ لاسونه ډیر پاسته او نازک ؤ ما ده ته
وویل : چې د برکت لپاره خپل لاس زما پر سر راتیر کړه «کله چې امیر المؤمنین دا کیسه اورېده نو
دده له سترګو اوښکې روانې شوې» نو ښاغلي مولوي احسان الله شهید رحمة الله علیه د تکبیر نعره
پورته کړه له دې وروسته امیر المؤمنین خپله خبره بیا پیل کړه همدغه شپه او ورځ د تحریک پیل ؤ
کله چې د ورځې لس بجې شوې نو مونږ له حاجي بشر تاجر (چي اوس دصلیبی یرغلګرو په زندان کې
بندوان دی) څخه دوه موټران واخیستو مونږ ټول پکې کښېنستو کشکي نخود «د قندهاریوه سیمه
ده» ته ولاړو سوکه سوکه خلک هلته راغونډ شول او صلاح هم ښه ډیره رایو ځای شوه او کار پیل
شو، الله شاهد دی چې دا د تحریک شروع وه او تر دې ځایه رارسېدل یوازې او یوازې د توکل ثمره
وه زه له ټولو علماء کرامو څخه همدغه غواړم او ماته دې ددې آیت «لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا» مصداق
وښیي زه د علماء کرامو هغه عذر منم کوم چې د الله رب العزت ومخته د قبول وړ وي له دې پرته زه
هیڅ عذر نه منم ما تر دې ځایه خبره راورسوله او په یاد لرئ بیله علماء کرامو دا کار نه سي بشپړېدای
او که علماء کرامو له غفلت څخه کار واخیستی نو دا کار به خامخا خرابیږي ځکه چې د طالب کار په
سنګر کې هستوګنه او د دښمن مقابله کول دي، شریعت او قانون نافذول یوا زې د علماؤ کار دی که
دا کار خراب شو نو د قیامت په ورځ زه ستاسو ګریبانو نه نیسم او ذمه دار به علماء وي، دا وینا امیر
المؤمنین د علماء کرامو وهغې غونډې ته وکړه کوم چي دامیر المؤمنین تاکنه کیده چي د اسلامي
تحریک اصل بنسټ پیله یې پخپله ژبه بیان کړه.

د کوم تحریک رڼا چې ټولې اسلامي او کفري نړۍ ولیده او دا تحریک د ټول کفر لپاره یو
کلک د یوال شو، وژنه، چور چپاول، غلا، لاروهنه، لواطت «هلک بازی» زنا کاري ټول بند شول

وحقدار ته حق رسېدی له ویش او بولدک څخه واخله د آمو تر سینده پورې په ټول هیواد کې اسلامي قانون نافذ شو، او اسلامي امارت په بشپړه ډول واکمن شو د افغانستان په هر ولایت او هره ولسوالی کې د قصاص او حدودو نافذیدل پیل شو او ټولو مسلمانانو ته د الله رب العزت له لوري د یو زړور، باتور، باشهامته، سر لوړي، مخلص مجاهد امیر سوغات ورکول شو چې نوم یې ملامحمد عمر «مجاهد» دی اوس که نر وي که ښځه که ماشوم وي که ځوان د ټولو پر مخونو ډاډ او خوشحالي ځرګندیږي کله چې به طالبانو کومه سیمه فتح کړه نو خلک به د دوئ وهر کلي ته پر سړکونو راووتل او له خوشحالی. به یې سپین بیرغونه رپول پر موټرانو به او به شیندلې، دا تحریک د سمندر د څپو په څیر د افغانستان ګوټ ګوټ ته وسېدی په دې کې او سیدونکیو ایمان والو د جذبو حرارت تر سپینې مانۍ ورسېدی، او د أمریکا محلونه ترې سوځېدل او افغانستان د ټولو نړۍ د مسلمانانو لپاره یوه کلکه قلعه ورګرځېدله، نژدې د ۴۷ هیوادو مسلمانانو هجرت وکړ په اسلامي امارت کې هستوګنه پیل کړه او خپلو کورونو ته یې د خدای په امنۍ وو ایو پر امارت اسلامي باندې خپل ځانونه مالونه او خپل هرڅه قربان کړل د کیوبا په محبس کې یو ملګری راسره مخ شو چې د کویټ او سېدونکی ؤ کوم چې په افغانستان کې نیول شوی ؤ، یوه ورځ یو امریکائي جنرال په یوه ډیر ښکلي موټر کې محبس ته په دوره راغلی مونږ دهغه د موټر په لیدو حیران شوو، دغه کویټي ملګري ماته وویل : چې زموږ د کور مامور په کوم موټر کې د کور سودا راوړي هغه موټر هم یو مخ دارنګه دی لکه چې ددغه جنرال ده له دې څخه دا اندازه کیدلای سي چې د چا د مأمورینو دومره ارزښتنا که موټر وي د هغوئ به پخپله څنګه موټر کار وي.

دې خلکو داسې د آرام او هوسایي ژوند قربان کړ د الله رب العزت ددین لپاره وقف شول او د خپل نیکه ګانو تاریخ یې یو وار بیا راژوندی کړی، د افغانستان په غرونو او دښتونو کې ددوی اعضاء «غړي» خواره شول او د دوئ د وینې په خوشبو د طالبانو قبولیت دومره زیات شو چې دهرې کورنۍ به دا غوښتنه وه چې ددوئ له کوره یو دوه طالبان وي چې ددین زده کړه وکړي. کله چې څلور کاله وروسته د مدرسو جاج واخیستل شونو له یو لک څخه زیاتو طالبانو په مدرسو کې زده کړه کوله.

په زرګونو مدرسې جوړې کړل شوې، په هره ولسوالی کې یوه مدرسه جوړه شوه چې پکې به له څلورو سوو څخه زیاتو طالبانو زده کړه کوله. او په هر کلي کې هم یوه کوچنۍ مدرسه جوړه شوه.

# ملامحمدعمراخنددنړیوالوله نظره

که څه هم چې ملا محمد عمراخنددنوري اسلامي نړۍ په پرته په افغانستان کې د ۲۵ میلیونو وګړو ولسمشر وه اودنړیوالوجهادي تنظمونو لاربنود او امیرالمؤمنین و ، خو د حېرانتیا خبره دا ده چې د یوه هېواد د ولسمشرۍ سره سره دده په هکله ډېر لږ معلومات شته. د هغه له قوله هغه هېڅ وخت هم په خپل هېواد کې په الوتکه کې کوم نمائشي سفر نه دی کړی، اونه یې ګاونډي هیوادونوته سیاسي سفرکړیدي او هېڅکله د افغانستان نه دباندې په سیاسي سفر هم نه دی تللی. خو یو څو ځلې یې د ډیورنډ پولې ته نژدې قبایلي سیمو ته سفر کړی دی چې موخه یې دجهادي لیکوټیګول وو . ملا عمراخند داسې یو سړی دی چې ډېرې لږې مرکې یې کړي، ډېر لږ ځله یې د غېر مسلیمو سره کتلي، او د هغه خورا لږ داسې انځورونه دي چې خلک پرې ګمان کوي چې همدا ملا محمد عمر اخند دی. ډیپلوماتان د ملا محمد عمراخند څرګندونه پدې ډول کوي؛ ملا محمد عمر یو ډېر حیاناکه او پاک زړي سړی دی، د بهرنیانو سره ډېرې خبرې نه کوي ځکه چې بهرني غیرمسلمي ډلې ده ته دیوخپلواکه مسلمان په سترګه ګورئ چې صلیبان ورته انتهاپسندیادهشت ګردوائی ،خودده هدف په ټوله نړۍ کې اسلامي نظام پلي کیدل دي چې نړیوال یې په اوسني عصرکې ناشوني بولي .

د هغه د واکمنۍ پر مهال د هېواد نه دباندې نورې نړۍ سره ټول امرونه او کارونه د هغه وخت د باندنیو چارو وزیرانو، پرمخ بېول اودوي په ټوله نړۍ کې دیو اسلامي بین الملل جوړولو اراده لرله .

## د طالبانو د غور ځنګ جوړول

کله چې روسي ښېکلاک په ۱۹۸۹ زېږیز کال کې د افغانستان له خاورې لاس په سر شول او په کابل کې د کمونیستي دولت د ړنګېدو وروسته، هېواد د بېلابېلو جهادي قوماندانانو په لاس کې پرېوتی، دا د افغانستان د کورنۍ جګړو پېر و چې هر پاټکسالار به د سیمو د ترلاسه کولو او خپل واک پلي کولو په هڅه کې ګڼ شمېر بې ګناه وګړي وژل. پدې وخت کې ملا محمد عمراخند یو د هغو کسانو څخه وه چې ددې ګډوډۍ د حل لپاره یې د طالبانو مشري پخپله غاړه واخیستله او ددغه نوي تحریک پیل یې وکړ. د هغه ټول پلویان د دیني مدرسو طالبان وه ،خوزیات شمېریې افغان مهاجرین وه چې د روسانو د یرغل وروسته پاکستان ته مهاجر شوي وه او هلته په کمپونو کې اوسېدل چې منځکي دجمعیت طلبه حرکت په نوم ددینو مدرسو دطالبانویو تنظم وه چې دمرحوم مولوي محمدنبي

محمدي او مرحوم مولوي نصرالله منصور پورې یې تړاو درلود. په پیل کې سیمه ایزو خلکو د طالبانو پلوي کوله، دا ځکه چې دوی تر ډېره حده په دولت کې د درغلۍ، غلا او لوټماری مخه نیولې وه او د حکومت تګلاره یې د شریعت پر بنا ولاړه وه. دوی ډېر ژر د افغانستان سویلي سیمې د خپل واک تر ولکې لاندې راوستې او ګڼ شمېر جهادي قومندانان هم د دوی سره یوځای شول.

د طالبانو د مشرانو او خپله د ملا محمد عمر اخند د وینا له مخې[1]، د ۱۹۹۴ کال په پیل کې، ملا محمد عمر د ۳۰ کسانو په مرسته چې یوازې ۱۶ یې په ټوپکونو سمبال وه، د سپین بولدک ... د بناغلي حاجی بشر چې یو سیمیز تاجر او پخوانی مجاهدوو د دوي سره د ویوشو ټوپکوا و موټر مرسته وکړه چې د دوي غورځنګ لا پیاوړي شو، هغه دوه انجونې او یو شمېر نور ماشومان چې د سیمه ایزو قومندانانو لخوا تښتول شوي و، تر څو عزت یې لوټ کړي، د ملا محمد عمر اخند د غورځنګ له خوا وژغورل شو چې د دې تحریک لومړ ی پیل هم د همداسي ناروا عملونو په غبرګون سره رامینځ ته شو. په هماغه کال کې د دوی تحریک نور هم په چټکۍ سره روان وه او د کال تر پایه یې ډېر نوم پیدا کړ. ډېر ژر یې د اسلامي مدرسو نه سرتېري راوپاڅول. د ۱۹۹۴ زېږیز کال تر نومبر میاشتې پورې ملا محمد عمر اخند دومره سرتېري درلودل چې اوس یې د ټول کندهار واک په لاس کې نیولی وه، او دا هغه مهال وه چې د طالبانو اسلامي غورځنګ رامینځ ته شو په زابل، هلمند او روزګان کې د جمعیت طلبه طالبانو د هرکلي لپاره له مخکي لا، د پاڅون تابیا تړلي وه چې د قندهار څخه د تحریک په ورتګ سره بې له کوم خنډ نو موړي ولایتونه فتحه شو.

## طالبان او د مشریزې تګلاره

کله چې د افغانستان ډېرې سیمې او ولایتونه د طالبانو تر واک لاندې راغلل نو په افغانستان کې ځینې نوي دولتي اداري جوړې شوې چې پخوا په حکومت کې نوې. طالبانو په افغانستان کې د امر بالمعروف او نهي عن المنکر په نوم یو وزارت هم جوړ کړ چې د دې وزارت دنده دا وه چې د عامو وګړو و رځیني مذهبی چارچلند وڅاري چې آیا دوی شرعي احکام پلي کوي او که نه. په همدې توګه طالبانو د ۱۹۹۷ زېږیز کال د اکتوبر په میاشت کې د افغانستان پخواني حکومتي نوم هم بدل کړ او د افغانستان اسلامي امارات په نوم یې ونوماوه. که څه هم چې کابل د پېړیو راپدېخوا د افغانستان پلازمېنه وه، خو ملا محمد عمر اخند د خپلې واکمنۍ پر مهال د خپل پلارني ټاټوبي نه کابل ته و نه کوچېده او میرویس خان هم خپله ټوله واکمني همدلته په نارنج ماڼي تیره کړې وه. وییل کېږي چې د طالبانو د واکمنۍ پر مهال ایله دوه ځله ملا محمد عمر اخند د کابل څخه لیدنه کړې. هغه کندهار

کې اوسېدنه غوره ګڼله او ذ واک له لاسه ورکولو پورې همالته په کې اوسېده لېکن دتعجب خبره یې داده چې په اوسني عصر کې دامیرانوپه پرتله دومره اطاعت اوفرمانداري بغیر له کوم مالي لالچ اواقتداره چې طالبانودخپل مشرکوله ساری یې نه لیدل کیږي یعني دکاغذ یامخابروي امرپه صادرولوسره به په هم هغه ورځ په ټول مفتوحه سېمه کې هغه امریاحکم عملي کیدی بې له کوم زور اوخنډ څخه چې دا ددوي ریښتني مذهبي تګلاره وه .

د ملا محمد عمر اخند د اسلامي حکومت په کلونو کې طالبانو اسلامي قانون پلي کاوه. د طالبانو د واکمنیو په کلونو کې ښځو دباندې بې پردې اوبی حجابه د کار حق نه درلود. یوائېنی ځای چېرته چې ښځو کار کولای شو هغه د روغتیا اداره وه چېرته چې ښځینه ډاکټرانو او رنځورپالانو د نورو ښځینه ناروغانو درملنه او پالنه کوله. د طالبانو د واکمنی پر مهال ښځینه ښوونځي نه وه او همدا هم یو سبب وو چې دنړیوالو تبلیغاتو اونیوکو ښکارشو ولی طالبان په جګړېزو چاروبوخت و دملک پوره اړتیاوي لانمګړی وي . د ښځو د ستر په هکله داسلامي حجاب نه کار اخیستل کېده او د افغاني دود دستور سره سم څادر د طالبانو د غوښتنو بسنه نه کوله. دوی پر ښځو باندې د بورقو او چادریو اغوستل هرومرو ګڼل. د طالبانو په وخت کې ښځو ته اجازه نه وه چې پرته د کوم نارینه څخه بازارونو اوپارکونوته لاړې شي . څنګه چې په ښځو باندې د طالبانو فرمانونه پلي کېدل همدارنګه سړیو باندې هم ځینې بندیزونه ولګول شول. سړو باندې د ږیرو پرېښودل تحمیلي شوه، همدارنګه د غېر اسلامي جامو او وېښتو جوړولو بندیز ولګېده. سینما ګانې ،تی وي ،وي سي ار، او موزیک سنټرونه بند شو. د طالبانو د واکمنی پر مهال د غلو لاسونه ترې غوڅېدل، د جنسي جرمونو په تور ښکېل کسان په ورکړي جزا رسیدل . په زنا تورن تر هغه مهاله په ډبرو ویشتل کېدل ترڅو ساه ترېنه ختله (چې همدا الهي امروو) .. ملا محمد عمراخند د خپل فرمانونو په دلیل کې یوائې د اسلام د عزت او پیاوړتیا خبره دخپل غیرت پربنااټینګه نیولي وه اوهم دایې الهي اونبوي امربللو. د نړېوالو ټولنو د نیوکو او نارو سره سره طالبانو په بامیانو کې د نړی، تر ټولو لویه بودایي پژی له مېنځه یوړله. دا پژی چې تاریخي قدامت یې په زرګونو کلونو وه او په ټوله نړی، کې بې ساري پاتې وه د طالبانو د حکومت لخوا ړنګه شوه اودایې ویل چې دیو ابراهیمي اومحمدی سنت دي ،غزنوي هم دهندبوتان مات کړل دوي هم هغه تقلیدوکړ اونبي کریم صلی الله علیه وسلم په مکه کې دري شپته بوتان مات کړ ایا هغه دعربي نړی، لپاره تاریخي اثارنه وو اوکه دهندلپاره دهندبوتان نه اثار اوکه دابراهمي علیه السلام مات بوتان نه وو تاریخي اثار ؟ .

طالبانو په خپلو موخو کې ډیر جدي دي ډوي له دې سره چې دامریکاي لښکرو سره وجنګیږي خپل رقیبان یې هم په یو مسلسل ډول ووژل مزاري ،مسعود ، رباني ، البته دومره باید ووایو چې امریکایان دشمالي ځواکونو په بلنه راغلي وو څکه په همدې کتار کې یو په بل پسې ووژل شول.

په ۱۵ د نومبر، ۲۰۰۱ کال کې په امریکا باندې د ۹ د سپتمبر د حملو وروسته او د په طالبانو باندې د امریکا لخوا ځوابي یرغل وروسته، ملا محمد عمر د بي بي سي پښتو راډیو سره په مرکه وکړه چې په دې مرکه کې ملا محمد عمر د طالبانو د وفاداري غوښتنه وکړه او د امریکا د تباهی او له منځه تللو کاریې یو اوږده جګړه وبلله او په دې لوی کار کې یې د خپلو پلویانو ملاتړ وغوښت او دا یې هم وویل چې انشاالله ددوی جهاد به د امریکا او د هغوی د متحدینو پر وړاندې همداسې روان وي. په دې لړ کې د بي بي سي خبریال د ملا محمد عمر اخند نه دا پوښتنه وکړه چې آیا منځلاري طالبان به د افغان حکومت سره د نوي حکومت په جوړولو کې یوځای شي، نو د ملا محمد عمر ادعا دا وه چې،ټول طالبان منځلاري دي. داسې دوه شیان دي: یو افراط دی او بل تفریط نو په دې برخه کې مونږ ټول منځلاري یو - او منځوی لار باندې روان یو (چې داسلام لاره ده «خیرامورااوسطها» ټروست ،منځلاري انتهاپسند ترهګراودې ته ورته کلمې دغربي ښکیلاک سیاسي او له مکره ډک تورن توري دي ).[۱۱]

# ۲۰۰۱ میلادي کال صلیبي یرغل او دمجاهدینو مقاومت

دوه زره یومیلادي کال یوخونړی اومظلوم کال بلل شوی دمسلمانانو ،خصوصا دعربي نړی اوپښتنولپاره نه هیریدونکی خاطراتي یې لرلي دي چې دتاریخ په اږدو کې یې ساری نه لیدل کیږي .یوشمېر اسلامي تاریخ لیکونکي دنړیوالي کفري یا صلیبي جګړي کال بولي دعربواوپښتنو اسلام غوښتنه نړیواله کفرې ټولواله دې ته اړکړي چې دنړی مظلومه مسلمانه طبقه دې نور دپردیو شراوضرر څخه وژغورل شي او مسلمه امت دې دیوخپلواک اسلامی نظام په لرلوسره یومتحد ځواک اوژواک ولري.

دپوتني اسلامپالو اتحادیو دغوښتنوپه غبرګون امریکا،برتانیا ،جرمن ، یعني غربی اوشرقی کفري نړی دیوشمېر کمزورو مسلمان واکمنوپه ګډون سره په نوموړو اسلامي نهضتونو

اوحکومتونو راودانګل چې په عربی نړۍ کې یې دشیعه لړکیوپه مټ اوملاتړ عراق اشغال کړي اوعجمي اسیامیانه مسلمانانو لپاره یې دیوشمېر تاجکي ،ازبکي اوهزارګی لړکیویعني په اصطلاح شمالي ټلوالي په مرسته اوغوښتنه دافغانستان اسلامي امارت یادطالبانو اسلامي تحریک اسلامي حکومت دنوې ټېکنالوجی ټېکنو توغندیو اوچورلکوپه زرو اودګاوندیانوپه رهبری دهغوي حکومت رنګ کړلواوپرځای یې یوه بېواکه اداره رامېنځ ته کړه چې ددوي دمخواواهدافوپه وړاندي خنډ نه وی داجګړه که له یوې لورې مذهبي وه خوبلورې ته یې پراخ اقتصادی اوټولنېزیرغل هم بللای شو.



په ۲۰۰۱ زېږیز کال کې چې کله امریکا او د امریکا متحدینو په افغانستان کې د طالبانو پر ضد جګړه پیل کړې، له هماغه وخت نه تر اوسه پورې د ملا محمد عمراخند درک نه دی مالوم ،خونومورې له لومړی دامارت دزوال له لومړی ورځی خپلوجهادي سرتیروته دیوې فرضي جګړي امروکړاودایې هم زیاته کړ ي چې زموږ اسلامي امارت دنورو حکومتونو په څېرنه دي چې یونظام اوپاچا دي لیرې شي اوپرځای دې کوم بل واکمن راشی بلکې دایومذهبي اوملي حکومت دي.

ملامحمدعمراخند په یو نامالومه ځای کې یې خپله استوګنه غوره کړي چې لاتراوسه پورې نړیوال دده مقاومت اوخدعی ته ګوته په غاښ دي ، څوځله خبرې رسنیوویلي چې هغه د پاکستان او افغانستان تر مېنځ پر پوله په قبایلي پښتني سیمو کې اوسېږی ، خو ددې خبرې پخلی لا تر اوسه پورې نه دی شوی. د امریکا د متحده آیالاتو حکومت د ملا عمراخند د نیولو لپاره او یا هم د داسې مالوماتو لپاره چې امریکایان د ملا محمد عمر په نیولو کې بریالي شي، د لسو میلیونو امریکایي ډالرو انعام ایښی دی مګرطالبان دخپل مشر اطاعت ته امدامه ورکړي جګړه دپلازمېني زړه اودهیواد نورو لویوښارونو ته رسیدلي ،خودتعجب خبره داده چې امریکایانو خپل ټول ستردښمنان شهیدان کړي یا ګیرکړي لکه صدام ،قذافی اوداسامه ادعا هم کوي ،خو ملامحمدعمراخند چې ترټول یې سرسخت دښمن دي نه درک ورته کیږي اونه یې لښکري ماتي شوي بلکی برعکس پیاوړی اوستري شوي دي.[1]

نړیوالو رسنیو د امارتي مطبوعاتو له لورې وویل چې د ۲۰۰٦ زیږیز کال په جون میاشت کې ملا محمد عمر یو بیان خپور کړ چې په هغه کې ده په عراق کې د ابو مصعب الزرقاوي په مړینه خپله خواشیني ثرګنده کړې وه. په هغه بیان کې زرقاوي یو شهید بلل شوی وه او داسې ژمنه یې هم کړې وه چې په افغانستان او په عراق کې به د امریکایانو او د متحدینو پر ضد جهاد هېڅکله د هغه په مړینه کمزوری نه شي ،خود زرقاوی قوماندہ د امارت له لوری ور کول کیدله .[٦]

## اخځونه :


١. ↑ "Mullah behind the Taliban The mysterious". Reuters. ٢٠٠١-٩-٢٠٠٩. http://tvnz.co.nz/view/news_story_skin/٥٧٤٩١. Retrieved ٢٠٠٦-٠٧-٠٢.

٢. ↑ "Al-Qaeda Operatives in Afghanistan to the Peoples of the West Messages by the Emir of the Believers..." September ٢٠٠٥ alongside ..."

٣. ↑ Error on call to template:cite web: Parameters url and title must be specified Healy, Patrick "Kandahar residents feel betrayed". URL accessed on Boston Globe. ٢٠٠٦-٠٧-٠٢.

٤. ↑ "On whether moderate". ٢٠٠١-١١-١٥. BBC News.

٥. ↑ Error on call to template:cite web: Parameters url and title must be specified WANTED Mullah Omar Up to $١٠ Million Reward. *Justice Rewards for*. URL accessed on ٢٠٠٦-٠٧-٠٢.

٦. ↑ "play down Zarqawi death Taleban". ٢٠٠٦-٠٦-٠٩. BBC News. http://news.bbc.co.uk/٢/hi/south_asia/٥٠٦٢٩٦٤.stm. Retrieved ٢٠٠٦-٠٧-٠٢.

٧. ↑ "د ملا محمد عمر د اختر پیغام message". الجزیره. ٢٠٠٦-١٢-٣١. http://english.aljazeera.net/News/Templates/Postings/DetailedPage.aspx?FRAMELESS=false&NRNODEGUID=%٧b٧C٧٠CC١E-B٤٤٥-٤C٦٢-٨١٧٧-ACDD٢A٢EBB٧٣%٧d&NRORIGINALURL=%٢fNR%٢fexeres%٢f٧C٧٠CC١E-B٤٤٥-٤C٦٢-٨١٧٧-ACDD٢A٢EBB٧٣%٢ehtm&NRCACHEHINT=NoModifyGuest. Retrieved ٢٠٠٧-٠١-٠١.


**باندنی تړني**

- د ملا محمد عمر اخندسره د بی بی سی مرکه
- د بی بی سی له قوله د ملا محمد عمر ژوندلیک
- د ملا محمد عمراخند په هکله د بی بی سی بیوګرافیکي مالومات
- د ملا محمد عمر اخندپه هکله د سپرلي جهاد د وسپانې پېژندنځیره
- ګاردین: ملا عمر - د هغه له خولې نه

# داسلام په تاریخ کې

## اسلامي نظام

## اوطالبانو داسلامي امارت پرتله

دافغانستان په تاریخ کې دا ډیره اړینه خبره ده چې دنړیوالي کفري تلوالي دغبرګون باوجود دیوه اسلامي نظام راوستل هم دافغانانو دویاړ اوافتخارستره کارنامه بلل کیدای شي ،طالبانو دخپل پاڅون موخه اوهدف په هیوادکې دیوه اسلامي اوشرعی نظام راوستل و، اوس به راسو چې ایا رېښتیا هم د دوي نظام یوه سوچه اسلامی اوشرعي و؟

په همدې اړه لومړی باید داسلامی نظام شروط ،ارکان اوقوانین وپیژنو اوبیایې پرتله وکړو .

یوشمېر دنظر خاوند ان به دداسی لیکنو ذکرپه تاریخ کې ناسم بولي ،خو دیوه اسلامي تاریخ لپاره ترټولو اهم موضوع همدا ده چې څرنګه دې په اوسني عصرکې چې ټوله نړۍ دکفروالو تر کلتور اودستور لاندې ژوند کوي ددوي زیات عنعنه اورواج پردي شوي نړۍ ماډرنه شوي اسلامي کلتور عېب ،پیغور اوعار ګڼل شوي،نو دڅوارلس سوو کالوتیر اسلامي کلتور عملي کول یوناشوني کار دي اوبیا په داسي ترنګلو ،اتبدادي اوسیاسي حالاتوکې یوخپلواکه اداره اوحکومت کول اویاشرعی نظام راوستل یونامکن کارو، خودوی نه یوائې دنړیوالې صلیبي امپراطور اواستعمار سره لاس اوګوریوان و بلکې په هیواد کې هم یوشمېر خلک غربي پلونظام غوښتنونکي عناصر موجود و چې دغرب خاص غوښتنه یې دطالبانو په وړاندي مقاومت کاوه، خو ددې باوجود طالبان په خپلو موخوکې تقریبا اتیافصده بریالي هم و ، او دطالبانودعوه یوه نړیواله اسلامي اداره راوستل و، سره لدې خبرې چې طالبان عجمي پښتانه دي اوعربي اسلامي نړۍ هم ددوي تقلید اوپیروي ته لیواله اومأمور وه نوموځکه دې موضوع ته په تاریخ کې خاص اوځانګړي مقام ورکړي چې زموږ راتلونکونسلونولپاره دافتخار او وقار کرښې دي له سره مودتاریخ په سرکې دحکومتونووېش اوډولونه هم ذکرکړل ترڅوپه بشپړه ډول داسلامي سیاست اواسلامي تاریخ له بلتون څخه دفاع وشي اوهغه څوک چې له اسلام او اسلامي سیاست سره مېنه لرې نوبایدپه دې پوهه شي چې که مسلمانان دسیاست په میدان کې برلاس وي نویواسلامي نظام او اسلامي حکومت حتمي او اسلامي امت به غالبه وي .

# اسلامي نظام

کله چي د بشریت ستر لارښود حضرت محمد صلي الله علیه وسلم په کال ۶۲۱ میلادي کي په مدینه منوره کي د اسلامي دولت بنسټ کیښود لهمغي مودي څخه مسلمانانو د اسلامي نظام اصول زده کړي چي سوونه کاله یي دوام وموند. کله د خلافت په نوم او کله د امارت په نوم خو مهمه داوه چي څنګه نظام یی راوستی و، رعیت یی څنګه ژوند درلود، حاکم د ژوند په کوم حالت کی و او داسی نور امتیازات چی د ننني نړی په نظامو کې شتون نلري.

په اسلامی نظام کی حاکم د خلکو خدمتګار وی حتی تردی چی د حاکم ژوند له ټولو خلکو څخه په ټیټه درجه کی وی، موږ دداسی نظام ډیری نمونی لرو چی یو یی د عمر ابن عبدالعزیز حاکمیت دی، د عمر ابن عبدالعزیز داسی حکومت و چی انسانان خو لاپریږده چی لیوه هم په رمی حمله نه کوله، دده په حاکمیت کی کی په ټولو محکومو ځایونو کی ترده ډیر نادارہ کس نه موندل کیده حتی تردی اندازی غربت لمنځه تللی و چی له کاشغره تر اندولس پوری یو کس هم د زکات مستحق نه و، د امیر المومنین د ځوی به د اختر په ورځی زاړه او شلیدلی کالی پرتن ول او داسی نوری د حیرانتیا وړ صفات پکښی و.

د اسلامی نظام ښه والی پدی کی دی چی نه یواځی داچی عامه وګړی ته پکی خدمت کیږی او د هغوی په وړاندی مسول دی مګر وګروته هم پکی مسولیتونه سپارل شوی که د ځان په اړه وی او که د نورو په اړه، لکه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په یو حدیث کی فرمایی چی: (الایمان بضع وسبعون شعبة افضلها کلمة لا اله الا الله و ادناها اماتة الاذی عن الطریق و الحیا شعبة من الایمان) ژباړه: ایمان څو اویا څانګی لری چی ترټولو غوره یی د لا اله الا الله کلمه ده او ټیټه یی له لاری څخه د ناوړه څیزونو لیری کول دی او حیا هم د ایمان یوه برخه ده.

په پورتنی حدیث کی موږته لوی درس پروت دی، د لاری سره خو اصلا د ښاروالی کار وی خو اسلام موږته وایی چی لاره خو مه خرابوی که چا څه ورانی کړی وی نو عامه وګړی هم مسول دی چی لاره پاکه کړی.

دا هاغه څیزونه دی چی له اسلامی حکومت سره مرسته کوی، څوا کمنوی یی او ښه یی پرمخ بیایی پداسی حال کی چی په نوره نړی کی کی چی اسلامی قانون نلری لوی مشکل دادی چی عامه وګړی

د جهازونو په واسطه کونترولیږی که هغه پولیس وی او که کامره مگر که چا کوم ناوړه کاز ترسره کړ او تعقیب نشو نو هغه مجرم ندی پداسی حال کی چی موږ د اسلام په راس کی داسی ډیر مثالونه لرو چی مجرم خپله په خپل جرم اعتراف کړی بی لدی چی کومه کامره یا کوم بل جهاز یی کونترول کړی خپله یی پرځان د حد د جاری کیدو غوښتنه کړی، دا دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم سالمه او موثره تربیه وه.

# د اسلامی نظام سترا و اهم ارکان

۱. خلیفه یاامیر
۲. مرستیالان یانائب
۳. والیان
۴. قاضیان
۵. پوځ
٦. اداری تشکیل
۷. شورا

**- خلیفه**

خلیفه، امیر المومنین، حاکم او امیر هغه مترادف نومونه دی چی په اسلامی نظام کی د حکومت مشر ته ورکول کیږی. خلیفه په اسلامی نظام کی د حکومت د راس حیثیت لری، ټوله حکومتی اداره یی د لاس لاندی وی او د امیر اطاعت په ټولو واجب دی. چی عادل حاکم ته د خدای سیوری ویل کیږی.

خلیفه عموما د اهل حل او پوهانو له لوری ټاکل کیږی چی د اسلامی نظام لوی توپیر له ډیموکراسی سره پدی ټکی کی دی چی په ډیمو کراسی کی ټول خلک د رایی حق لری یانی د خلکو له لوری به حاکم ټاکل کیږی او اسلامی نظام کی د پوهانو، مفکرینو او مجتهدینو له لوری ټاکل کیږی.

په اسلامی نظام کی خلیفه د ټاکلو ډیر شرطونه وی چی له هغو څخه پوهه، حکمت او تقوی له لویو څخه شمیرل کیږی.

د خليفه د خلافت يا حاكميت موده ټاكلې نه وي يانې خليفه به تر مرګه د خلافت پر ګدی ناست وی او د خليفه تر وفاته وروسته به يوځل بيا اهل حل سره كينی او د بل ور كس په اړه به غور كوی ترڅو يو مناسب كس كښېنوی چې د متوفی ځای ډك كړی.

## داسلام د لومړی ركن پرتله دطالبانو په نظام كې

دپورتني لومړی ركن داداَ لپاره دهيوادغيوراومجاهداولس ،علماؤ كرامو اودهيواد مخورو شخصيتونو ديوااميراو خليفه دغښتلو سره سم ښاغلي ملامحمدعمرمجاهد داميرالمؤمنين په توګه وګمارلو،نوهغه هم په هم هغه شرعي ډول چي بايد دخليفه ټاكنه اهل حل عقد ،اسلامي مفكرين اودسترو علماؤ د شوري له لوری ترسر شول ،اوهم هغه شرائط چي بايدپه يوه اسلامي خليفه كې ضروري وي هم په پام كې ونيول شول.

۲

## داسلامي حكومت دويم ركن : مرستيالان

د خليفه مرستيالان اكثره وختونه د خليفه په عدم موجوديت كی كی د يوی ټاكلی مودی لپاره د هغه ځای ډكوی چې دوی د خليفه له لوری ټاكل كيږی او دوی بايد د خليفه په څير له هغو شرطونو ووځی كوم چې د خليغه لپاره وضع شوی.

مرستيالان د خليفه په شتون كی هم له هغه سره ډيره مرسته كوی كه هغه د خلكو د ستونزو په حل كولو كی وی او كه په نورو ، خو مرستيالان هم د اسلامی نظام مهم غړی بلل كيږی او په خلافت كی مهم رول لوبوی.

## داسلام ددويم ركن پرتله دطالبانو په نظام كې

دهمدې دويم ركن لپاره داميرالمؤمنين ملامحمدعمرمجاهد مرستيال مرحوم ملامحمدرباني اخند ځای ناستي په ډول حيثيت درلودی چي دكابل په ارګ ماڼی كې يې خپله دنده ترسره كوله اوهركله چي به دامارت دمقام له لوري دكوم مشكل لپاره مشوره غوښتل كيده نوموړي به په كې حاضريدلو اوپه كابل پلازمينه كې يې هم داړوند ادارو ځانګړي شوري دستونزو دحل لپاره دائره وله .

## داسلام درېيم رکن : واليان

واليان د خلافت پر مځکه د خليفه استازی دی او دا ددی لپاره چی د خلکو ستونزی په اسانی سره حل شی او خليفه ورته لاس رسی ولری او ددی په مقابل کی خلکو ته څه گټه ورسوی او د ورانکارانو له ورانی څخه يی وژغوری، والی يانی محلی خليفه، والی هم د خليفه حيثيت لری د خليفه په څير صفات لری او شرطونه بايد ولری خو ددی ترمنځ توپير دادی چی والی د خليفه له لوری کونتروليږی او يوائې د داخلی مسايلو د حلولو لپاره وی او استقلال يی تر داخله محدود وی. او د خليفه ليری کول او گمارل د علماو پوری تړلی وی او له خليفه نه پورته ځواک په خلافت کی نشته.

## داسلام درېيم رکن او دطالبانو دنظام پرتله

ددريم رکن لپاره دامارت له لوري دهيواد په ۳۳ ولاياتو کې په هرولايت ځانګړي والي مقرر وو چي خپلي اداري چاري يې داسلامي قانون ترسوري اودامارت له دستورسره سم ترسره کولي .هرولايت بيا په خپله مربوطه سيمو کې يوشمېر والسوالي درلودي چي هغه بيا ترنوموړي ولايت مربوطي وی همداسی په هرولايت کې نور اداري ،رياستونه ، ماموريتونه اوځانګي موجودي وي عبارت له : اطلاعاتو اوکلتور رياست ،دخارجه چارورياست ، دداخله چارو اودامنيه قومنداني رياست ،داستخباروراتو رياست ،دسرحدنوچاور رياست . دکانواومعادنوزياست ،داطاق تجارت رياست ، کمرک يادصادراتو اوواريداتو رياست درغوني رياست ، دتعليم اوتربيي رياست او دټرانسپورټ رياست اوداسي نور چي هري اداري به دحکومتي چارو لسمبالښت په غاړه لرولو دملت اوحکومت دستونزو دحل يوائنی مرجع وي اوهررياست به دمربوطه وزارت له لوري اداره کيدلي.

[] قاضیان او قضائیه چاري

## داسلامي نظام څلورم رکن : قاضیان او قضائیه چارې

په اسلامی نظام کی د قاضیانو واک تر خلیفه هم په ځنو وختو کی پورته وی ځکه قاضی پوره خپلواکې لری او کولای شی د خلیفه په حق کی هم څه وکوی یانه.

قاضی هم د خلیفه له لوری ټاکل کیږی تر څو د خلکو ستونزې حل کړی.

د قاضی په ټاکلو کی هم ډیر شرطونه شته چی له هغو څخه اجتهاد او په اسلامی فقهی پوره برلاسی. او همدارنګه په قران او حدیثو پوهه او په عامه مسایلو کی د ښه او معقول مظر څښتن وی، د خپل نفس پر هوا او هوس تسلط ولری د بډو او پیسو په وړاندې ځان خرڅ نکړی او له خدایه باید وویریږی.

په ټول نظام کی یو قاضی وی چی قاضی القضاۀ ورته ویل کیږی بیا وروسته په خپل نوبت په نورو لویو او وړو قاضیانو ته سلسله رسی حتی تردی چی هره ځاي ځان ته یو قاضی لری چی هر قاضی محدود واک لری څومره چی لویه ستونزه هم وی هومره لوی قاضی به یی حلوی.

په لنډه توګه د قاضی شتون په اسلامی نظام کی ډیر اړین دی.

## داسلامي نظام د څلورم رکن پر تله دطالبانو په حکومت کې

داسلامی قانون او اسلامي حکومت څلورم ۴ رکن په یوه اسلامي هیواد کې داسلامي حکومت دقضائیه چارو ستره ، واکمنه او څواکمنه اداره یاوزارت لازمي بلل شوي دي.

نو په همدې بناء داسلامي امارت له خوا دهیواد دقضائی چارو لپاره دسترې محکمې لوي ریاست اومرکزي درالافتاء جوړه شوه چې دهیواد نابغه اوجیدعلماء کرام لکه مفتي العصر مولوي عبدالغفور اخندزاده صاحب چې دسنان یاشوی په اخندزاده مشهور وو ، او په وروستیوکې مفتی العصر قاضي القضات مولانا نورمحمد ثاقب صاحب دنومړي اداري قضائیه چاري ترسره کولي دښاغلي ثاقب صاحب سره دستري محکمې دفیصلو دحل ملګر ي شیخ الحدیث مولانا عبدالحکم صاحب اوهم نورداسي جید علماء کرام هم موجود وو چې دقضائی چاري داسلامي حنیفي فقهي په

رڼا کې فيصله کولي او د قضائيه چارو اداره يې دهيواد په هرولايت کې او دلايت په هرولسوالۍ کې ديوه قاضي اويوه مفتي اونورو مشاورينو په شمول له ابتدائيه محکمي ترمرافعي تميز او تر اختصاصي محاکمو پوري فعاله ساتلي وي .

خودې سره په څنګ کې دهيواد ډيرمشهور اوفضلی شخصيت چې په فقهي او احاديثو کې يې سيال نه لده کېدي هغه لکه: شيخ الحديث مفتي اعظم مولانا عبدالعلي ديوبندي رحمه الله چي دهيواد دمفتي اعظم مقام درلود چي داسلامي نظام اړوند ديني اوعلمي ستونزي يې حل کولي او دهيواد دمفتي اعظم په مقام کې يې خپلو دندوته دوام ورکړي ، چې دنړۍ او هيواد په سطحه مذهبي مسائل به يې حل کول او دامارت دمقام دمذهبي چارو دمشاوير حيثيت يې درلود .

پوځ

## داسلامي نظام پنځم رکن : پوځ

لکه څرنګه چې په انسان کی لاس او پښی ډير مهم او ضروري دی همدارنګه پوځ د اسلامی نظام دفاعی ځواک دی.

د اسلامی نظام د دفاع لپاره او د باندنيو اغيارو څخه د اسلامی نظام د ژغورلو لپاره او ددی ټولو سره د اسلامی فتوحاتو لپاره له پوځ څخه کار اخستل کيږی.

داچی په دومره نړۍ کی اسلامی رپی (بيرغ) رپيږی دا د اسلامی پوځ د سربښندنو او د شهيدانو د وينو نتيجه ده، يوائی دوه اسلامی هيوادونه د اسلامی اخلاقو په خوښولو او د مسلمانو سوداګرو څخه ده چی هغه هيوادونه ماليزيا او اندونيزيا دی او پاتی ټوله نړۍ اسلامی پوځ فتحه کړی او اسلام يی پکی خپور کړی.

مسلمان پوځيان بايد د تقوی او اخلاقو نمونی، نور اسلامی شعاير بايد ولری چی دداسی پوځ ښه مثال د صلاح الدين ايوبی پوځ دی دده پوځ به د شپی تهجد کاوه او د ورځی به يی جهاد کاوه او يوائی دوه پوځيان و چی هغوی د شپی تهجد نکاوه چی له پوځه يی وويستل هغه ويل ښايی د دی دوو پوځيانو له امله خدای خپل رحم پر موږ بند کړی.

په تولیزه ډول اسلامی پوځ دوه ډوله دی یو د رضاکارانو پوځ او بل ډول یی هغه پوځ دی چی د تنخوا په بدل کی په پوځ کی کار کوی:

[۱] د رضاکارانو پوځ

دا د اسلامی پوځ هغه برخه ده چی یوائی او یوائی د اسلام د لوړوالی لپاره په اسلامی پوځ کی سربښندنه کوی. دوی په اسلامی پوځ کی معاش نلری کله چی د جهاد وخت راورسی یوائی په جنگ کی برخه اخلی او د خدای د رضا لپاره جنگیږی او بس.

[۲] هغه پوځ چی د تنخوا په بدل کی په پوځ کی وی

دا پوځ ټاکلی معاش لری او دا د هغو پوځیانو ډله ده چی د جهاد پروخت په سنگرو کی جگړی کوی او که جهاد نه وی نو د اسلامی نظام پولی ساتی او په منظم ډول په پوستو کی اوسی اویاپه نورو پوځي چارو بوخت وي ترڅو اسلامی نظام له ناڅاپه یرغلو څخه وژغوری.

## داسلامي نظام پنځم رکن : پوځ

## دطالبانو داسلامي امارت له نظام سره پرتله

داسلامي نظام پنځم رکن پوځي (دفاعي او امنيتي ارګانونه) دي دطالبانو اسلامي حکومت ددې اداري لپاره خورا فعاله ونډه ورکول شوي وه چي يې دفاع وزارت وو چي دهيواد ددفا ع او دجګړيزو چارو لپاره وو او بل دداخلي چارو امنيت وو چي دواړه فعال وو دطالبانو پوځي برم او جګړيز ميدان ته تږوله نږي، کوته په غاښ وه چي دهيواد نه نوي ۹۹٪ فصيده خاوره يې په ډيره کمه موده کې تر خپله بيرغ لاندي راوستله اوپه مفتوحه سيمه يې اسلامي نظام په ډيره چټکي او ګرنديتوب سره پلي کولو .

دطالبانو داسلامي حکومت ددفاع وزير شهيد ملاعبيدالله اخند وو چي دصليبي دښمنانو له لوري دپاکستان دکراچي په زندان کې له دوه کاله زندان اوشکنجو ورروسته شهيد کړل شو ،خومتاسفانه طالب ځواکونو متقابل غبرګون ونښود چي دده مرحوم له شان اوداسلامي امارت له حيثيت سره لازمي و ،خوکيداسي دا دوخت مجبوريتونه وي ،خوبياهم دوی دا دمخفي سياست په توره تياره کې

يوه له غم او ويره ډکه صليبي دسيسه وبلله همداډول يوشمېر نورمخوزې جهادي څېرې چي دداسي حالاتواوظلمونو ښکارشول ،خونوره خبربه راتلونکوتاريخ ليکونکو ته پرېږدو ،البته ښاغلي دخپلو دفاعي چارو په سمون کې ډېر ماهر شخص وو دهېواد په ټولو پرتو پوځي کرارګاوو کې يې يومنظم تشکيلاتي ګروپونه اوډلګي جوړې کړې وي.

دهېواد سرحدات اوپولي يې ساتلي په داخلي محاربوکې يې هم خورا منظم شکل اختيار کړي چي يوه ډله مجاهد دجګړې په لومړيوکرښو کې خپلي دندي ترسره کولي اوبله ډله يې دمنتظره قطعاتو په ډول جوړه کړي چي دتيارسئ په حالت کې اوسيدله اودضرورت په مرقع به دجګړې ډګرته حاضر يدلي.

دکيوبا اسير ښاغلي ملامحمد فاضل اخند يې ستر درستيز وو ملابرادراخند يې مرستيال او داسلامي نړۍ اتلوال شهيد ملادادالله اخند دجګړې دلومړيو کرښو قومندان په توګه وو.

خو ددفاع په وزارت کې دطالبانو ډېر مشهور اشخاص لکه شهيد ملامحمد اخند ، شهيد ملامشراخند ،شهيد ملاعبدالرزاق نافذ ،شهيدمولوي احسان الله ،شهيد ملازړګی ،دشهيد مددخان ورور شهيد عزيزخان ،شهيد مولوی منصور اودمولوي جلالدين حقاني کورنۍ، اوداسي نورمخور سرتير مجاهدين ول چي دروسي جهاد برم او وياړ يې درلود او دامارت په راوستلو کې يې هم خورا دپام وړ کارنامي تر سره کړي چي داسلامي تاريخ له ياده نه وتونکي اشخاص بلل کېږي.

دنظامي ياپوځي مجاهدينو دتقوا اوغيرت خاطراتي دلته نشي ځايېدلا ی ،خوصر ف دشهيد ملادادالله اخند دمعزول کيدو يوه خاطر دخالد بن وليد له خاطراتو سره مقائسه کول غواړم : کله چي دشهيدملاداد الله اخند په اړه دامارت مقام ته دده مرحوم شکايت پېش سو نومړي دامير له امرسره سم حاضر شو له ده اميرالمؤمنين دخلع صلاح کيدو غوښتنه وکړه ده هم په ډېر ه چټکی سره خپلي اصلي او دپوځی قومنداني صلاحيت ورته وسپارلو ، نوپه پای کې دخپلي ماتي اوګودي پښي هغه مصنوعي (موسالې پښه )آله ، له پښې ورته راوايستله او ورته وې ويل چي داهم دبيت المال په روپو اخيستل شوي ده بايد تسلم شي ځکه چي زه بس له نن همداسي يوعام وګړي يم داخو دمجاهدينو حق دي په دې سره اميرالمؤمنين هم حيران شو يعني دده اطاعت اوتقوی او دخلکو تبليغاتو سرنه سره خوړلو چي له څه مودي وروسته بيرته خپله دنده ورته وسپارل شوه.

اداری چارې

## داسلامي نظام شپږم رکن : اداري نظام

اداری لړی د خلیفه، په مرستیالانو، والیانو، قاضیانو او پوځ په منځ اداره هم شته چی د ټول نظام کونترول، تنظیم، برابرول او پرمخ بوول د اداری لړی اصلی وظیفه ده۰

اداره په ټول نظام کی شته که هغه پوځ وی او که استخبارات او که محکمه وی خلاصه ټول نظام د اداری لړی لخوا تنظیمیږی۰

اداری لړی ځانته لوړ او ټیټ پوستونه لری لکه وزارت، ریاست، مدیریت او ماموریت او داسی نور خو عموما اداره په دوو برخو ویشل شوی:

۱ – هغه اداری لړی چی اسلامی خلافت د ننه نظم برابروی۰ چی دا هم په ډیرو برخو ویشل شوی چی دهری وزارت، ریاست او مدیریت ځانته ځانګړی دنده وی لکه پوځی اداره، استخباراتی اداره، پوهنیزه اداره، محکمه، ددینی ارزښتونو اداره او داسی نوری ډیری اداری هم شته چی د اسلامی نظام کورنی چاری پرمخ بیایی۰

۲ – له نورو هیوادو نو سره د اړیکو د پرمخ بیولو لپاره هم په اسلامی نظام کی یوه ځانګړې اداره شته چی چې او سمهال د باندنیو چارو د وزارت په نوم یادیږی۰

د باندنیو چارو وزارت اصلی دنده له نور هیوادونو سره د هراړخیزو اړیکو ټینګول دی هغه که اقتصادی وی او که سیاسی او که هرډول وی، او دا اړیکی د د اسلامی نظام د دیپلوماتانو په واسطه کیږی۰

داسلامي نظام شپږ رکن اداري چاري چي (د اولس او دهیواد د داخلي چارو دسمون اوپراختیا څخه عبارت ) دي ددې لپاره دطالبانو په اسلامي حکومت کې لاندیني وزارتونه موجود و:

## داسلامي نظام شپږم رکن : اداري نظام

## دطالبانو داسلامي امارت سره پرتله

ددفاع وزارت چي دهیواد دفاعي اوپوځي چاري یې ترسره کولي ،د اطلاعاتو اوکلتور وزارت چي دنشراتو ، مطبوعاتو اوکلتوري چارو دسمون لپاره یې خپله دندي په مخ بیولي ،دخارجه چارو وزارت چي دهیواد سیاسي ،ډپلوماسي ،تجارتي او نورې اړوند چارې یې ترسره کولي ، ،دماليي وزارت .اقتصادي چاري چي دهیواد بانکی نظام یې په واک کې وه اودهیواد ټول مالي لبنګتونه همدلته ذخیره او دبانکي نظام سره سم صادریدل اومصرف کیدل. دداخله چارو وزارت چي دولایاتوپه شمول یې دامنیه قومنداني ترولیکي لاندی وی ، دداخله وزارت دا هم خورامهم ارګان وو چي دهیواد په ټولو ولایاتو ولسوالیو او مربوطاتوکې یې ځانګړي امنیه قومنداني لرلي چي دهیواد داخلي چاري اومشکلات او امنیتي ستونزې یې حل کولي ،داستخباراتو وزارت داوزارت هم داسلام په نظام کې ځانګړی مقام لري چي دهیواد اواسلام په ضد ټولي خفیه دسیي کشف اوخپلی خفیه چاري پرمخ بوځی ،دسرحدنوچاور وزارت داوزارت هم دنورو وزارتو په ډول په ټولو موبوطه پولوکې خصوصي دفاعي ځواکونه لري چي ملک له پردیو او تیریو وساتي . دکانواومعادنو وزارت دهیواد دذخائرو معدنو لکه سره سپین زر یاقوت زمروت ،میس ان مالګي تر کانونو، پوري په خپله ولکه کې لري چي دفاع او استعمال یې دې وزارت پوري اړه لري ،داطاق و تجارت وزارت داوزارت دتجارتي او سوداګریزو چارولپاره کارکوي چي دهیواد له تاجرو ،فابریکوچلونکوصادراتو اوواریداتو توکیو کې مرسته کوي او داړتیا په وخت له خارجه وزارت اوګمرکاتو سره التماسی کیږي ، کمرک یادصادراتو اوواریداتو اداره د ایواځی هغه تجارتي توکي چي له نورې نړۍ سره تبادله کیږي دهیوا د په سرحدي پولوکي خاص نمائده ګي اوګمرکات لري چي اړوند چاري ترسره کوي ،خودمالی تروزارت پوري مربوطه دي ،دپلان وزارت، درغوني وزارت داوزارت هم دنوروزارتونو په څیردهیواد په روغونه په غاړه لري چي له هغوي څخه عبارد دهیواد لویې لارې ،پلچکونه ، پاتمانونه او دولتي وداني رغولي دي ، دتعلیم اوتربیي وزارت ټولي تعلمي پروسي په غاړه لري چي دهیواد په هرګوټ کې ددیني اوعصرعلومو مدارس اومکاتب فعال ساتي اوددوي په روزنه اوتربیه کې مرسته کوي چي راتلونکي نسل ته علمي اوپوهنیزه ښونه کوي دطالبانوپه عصرکې دې وزارت خورا دپام وړ علمي خدمات کړي که چرته بخت یاری کړی وای، نوافغانستان به په اسلامي نړۍ کې به ددفاع اسلام ترڅنګ ددیني علوموځانګو هم و،

دامربالمعروف ونهی عنی المنکر وزارت داوزارت دنوروزارتو څخه ځانګړی ده او دلومړی ځل لپاره دطالبانو په اسلامي حکومت فعال شو چی دهیواد په ټولو ولایاتو او ولسوالیوکې خپل ریاستونه اومدیریتونه جوړ کړل چي ددولتي ادارو اشخاصوپه شمول ټول اولس ته دامربالمعروف یعني په ښو او رواکړو امرچي عبارت له عباداتو اومعملاتو څخه دي اونهي عن المنکر چي له ټولو بدو ناروا اوحرامو چارو څخه منع کوي فعال ساتلي وو ددوعوت او ارشاد وزارت داهم دامربالمعروف په ډول یوه اداره وه چي دهیواد بچانوته به یې داسلامي روزني درس ورکولو چي ددعوت په چارو کې د اوسني ډیموکراتیک یاډیموکراس نړیپه ښځون کې چي یوائي فحشاء اومنکراتو ته ازادي ده په همدې عصر دطالبانو اسلامي حکومت یوباعزم شخص استاد یاسر دیادولو وړ دي دده جالب اوقوال الفاظ دانسان په زړه کې دیوریشتني داعي الی الله ځای نیوی اودهڅولو اوریښتني هدف لوري ته یې سړی ډیر په بیړه بیولوچي دده له شهادت وروسته هم داولس په زړنو اوعقائدو کې دبدلون اودحق لوري ته میلان دوام لري ،خونوموړي زموږ دوست اوګاونډ هیواد ؟؟؟؟؟ پاکستان په زندان کې شهیدکړ الله دي روح ښاد ولري . دحج او اوقافو وزارت دوزارت دحجیانو دلیږ او اړوند چارو ترڅنګ دمسجدو او مامانو په ترتیبولو کې مرسته کوي اوداسي ورته اړوند چاري هم ترسره کوي ،داډول اداره امور . اوداسي نور وزارتونه هم دي چي په هر اوونۍ کې به دوزیرانو مجلس یا شوری دائره کیدله چي دهیواد او داسلام امارت اړوند ستونزو دحل په مخه به یې لازم اقدامات او ورپورې تړلي چارې ترسره کولي چي دیواسلام حکومت مثال یې نړۍ ته پیش کولو .

[۷] شوری یا جرګه

## داسلام نظام اووم رکن شورا یا په اوسني پښتو اصطلاح جرګه :

په یوه ولسواک نظام د ډیرو قانونو نه د اسلامی قانون څخه اخستل شوی او بهیې ته یې لږ بدلون ور کړی دی چی یو له هغو څخه یو هم جرګه (شوری) ده چی د ولسي جرګه (پارلیمان) په بڼه رابنکاره شوی او د ولسي جرګې او جرګې (شوری) ترمنځ توپیر دادی چی په شوری کی اهل حل کښیني او په ولسي جرګه کی بیاهم هماغه د رایو مسله ده پوهه او هوښیاری شرط نده حتیٰ هغه څوک چی په لیک او لوست هم نه پوهیږی کولای شی په ولسي جرګه کی کښیني او رایه ورکړی، دلته یوه پوښتنه

رامنځ ته کیږي چې څوک چې پوهه ونلري د یو ملت دلویو قضایاو په اړه به څنګه دریځ نیسي او رایه به ورکوي.
خو اسلامي نظام جرګې ته ډیر ارزښت ورکوي لکه چې الله وایي: (وشاورهم في الامر).
اسلامي نظام د شورې د غړو په ټاکلو کې له ډیر دقت څخه کار اخلي ځکه همدا شورې ده چې خلیفه ټاکي یانې شورې اسلامي نظام بنسټ ګڼل کیږي.

## داسلامي نظام اووم رکن شورې یا جرګه

## دطالبانو په حکومت کې

نوددې پیچیده او ماډرن ماحول سره ، سره دطالبانو اسلامي حکومت داسلام ټول امور چې دوخت ضرورت لیدل کیدل عملي کړي ولوکه په اوسني عصر کې یو ډیر مشکل کار وو ، حتي دمصر او دیوبند علماء کرامو هم ډیر ټینګار کړي چې دسوچه اسلامي نظام راتلل په ننني زمانه کې داله امکانه لرې خبره ده لیکن بیاهم دطالبانو مخورو شخصیتونو هر یوه په خپل ځای او په خپل اداره کې ډیر مشقت کړي او داسلامي نظام په راوستو یې نړۍ ځان ته حیرانه کړي . اوئړیوالو ته یې دیو اسلامي نظام بېلګه وښوده ، خو داسلامي قانون وروستي ماده یا رکن چې شوري ده دلومړۍ سره چې کله امیر ټاکل کیدو هم دشورې په موټ وشو او هم د وزیرانو ترمینځ په هر اوونۍ کې یوه ورځ شورې لازمي وه او هم دولایت په انګړ کې دوالي او اړوند رئسانو او اداري چارو چلونکي ترمینځ شوري لازمي چې ان ترولسوالیو پورې په هره ولسوالي کې شوري یو رکن وو . په نظامي ارګانونو کې اود اشخاصو ترمینځ دکوم جګړیز پلان لپاره شوري یو حتمي شرط وو چې داسلام لښکرو او قومندویانو به ترسره کاوه په همغه ډول عمل ترسره کیدلو .

داوو داسلامي نظام پرتله دطالبانو داسلامي حکومت سره چې په ټوله اسلامي نړۍ کې یې یو مثال وړاند کړي او دخپلې ویني تر وروستي څاڅکي پورې یې په دین ، ملت او هیواد باندې خپله وفاداري او ایمانداري وښودله داچې ننني غربي میډیا دهغوی دخولو اخیستل شوي لوډسپکران هرڅه وائي دایو بې بناد پوچ دصلیبي کلیسیانو تبلیغاتي انګیرني او مذهبي جګړه ده .

# دطالبانو دحکومت سیاسي لورلید

## دطالبانواسلامي امارت

تاسو پوهیږي دنړۍ پرمخ چي څومره حکومتونه په مختلفوجغرافیایې موقعتونوکي موجوددي هریویې ځانته دبېلا بېلومعنوي اومادي ارزښتونوپربنسټ دخپل سیاسي نظام مانۍ ودانوي اورنګ وطرزیې تعینوي .نوبنادطالبانوحکومت داسلامي سیاسي نظام داصولوپربنیادچلیدی چي مهم هغه یې اجرائیه ځواک ، داهل حل وعقدشوری (مقننه ) اوقضائیه قوه،چي مثالي سرتاسري امنیت اوټولنیزعدالت ته یې دنړۍ شتمن اودپرمختللي ټکنالوژۍ لرونکي هیوادونه هم ګوته په غاښ وو . داسمه ده چي په زماني لحاظ اسلامي سیاست څوارلس سوه کاله سابقه لري ،خویادوساتئ ! چي اسلامي سیاسي نظام اوس هم په نړۍ کي دټېرو او مروجونظامونوڅخه زیات دعصرهر راز اړتیاوو ته ځواب ویونکی اودنوي ساینس اوټکنالوژۍ په پرمختګ کي یې خورامؤثررول لوبولی دی .

داسلامي نظام لپاره مأخذات دلته وګورئ (١)

---

- (١) ١ د اسلام حکومتی نظام ٢ الاسلام بین الحکام والعلما
- ٣ اسلام د ضعیفو پوهانو او ناپوهو ځوانانو ترمنځ د شهید عبدالقادرعوده لیکنه
- ٤ الشریعۀ الحیاۀ العجائب من اخلاق الاسلامی
- ٥ اسلامي نظام دزاهد جلال زی لیکنه .
- ٦الاحکام لسطانیه
- ٧ داسلام تاریخ

## طالبان په حکومت کې، عصري علوم او ټکنالوژي :

یو شمېر افکار د تعصب او یا ناخبرۍ له امله طالبان د نوي ساینس او د ټکنالوژۍ دښمنان بولي .خود طالبانو د واکمنۍ په وخت کي دهیواد په ټولو لویو ښارونو کي پوهنتونونه فعال وو چي دتعلیم وتربیې ،ادبیاتو ،ژورنالیزم ،انجنیرۍ اود طب او ساینس پوهنځیو په زرګونو لیلیه محصلینو ته د زده کړي اسانتیاوي برابري وې .

اسلامي امارت دصنعت دغوړېدو او دصادراتو او وارداتو دزیاتېدو اودهیوادوالو داسانتیا لپاره هیواد ته نوې ټکنالوژي یاني ده ډیجیټل ټلیفون دستګاوي راوړلې اودغه رازیې دافغان بسیم مبایل اوثریا ټلیفونونو قراردادونه وکړل چي هغه مهال په سیمه ییزه کچه دانوي انکشافات وو چي په همسایه ملکونو کې یې هم دځوانۍ نوی دور وو .

## ب طالبان اوښځینه تعلیم :

دطالبانو دراتګ څخه مخکي ښځي څه چي سړیو آن پخپلو کورونو او کارځایونو کي دمصؤنیت احساس نه کاوه .ولي ښځو ته خوبیخي دتعلیم زمینه نه وه مساعده اونه هم دښځو دزدکړو لپاره تعلیمي مراکزو وجود درلود پرته له څو ګوتو په شمار ښوونځیو څخه چي ,هغه هم بند نه ،بلکي دثانوي امرپوري تعطیل سول اونه په امارت کي دښځو دزدکړو سره کوم هغه ډول جدي مخالفت موجود ؤ لکه څرنګه چي غربي رسنیو دخپلو سیاسي اهدافو لپاره تبلیغاوه, بلکي په ورستیو کي دامارت لخوا داسلامي تعلیماتو له مخي دعصرارتیاوو ته په پام سره پرېونوي ښوونیز میکانیزم کارروان ؤ ترڅو نجوني او هلکان داختلاط څخه وژغورل سي اوپه جلا جلا ښوونځیو کي زدکړو ته دوام ورکړي اودغه راز دحمل ونقل وسایط یې هم بېل بېل په پام کي نیول سوي وو. ترڅو په پوره توګه اسلامي حجاب مراعت اوتطبیق کړل سي ،چي دهیواد په یو شمېر ولایاتو کي واردمخه لا دې پروسې البته دطب په برخه کي جریان درلود. زماپه اند یوازینی ستونزه چي دښځو دتعلیم مخه یې ډب کړې وه اقتصادي مشکلات او دهیواد شمالی کې نظامی ووبس ،خو بیا هم ددې ستونزو دحل وروستی شیبې وې .

## ج طالبان ،یونیکال اوبرایډاس (خارجي اداري)

تاسي پوهیږئ !چي دکسپین سمندرګی په نړیواله کچه دطبعي زیرمو (ګازاونفتو)څخه هغه مالامال سیمه ده چي پرسریې وخت په وخت دنړیوالوزبرځواکونو،سیمه ییزوهیوادونو اوخصوصي کمپنیو ترمنځ رقابتونه اوکشالې رامنځته سوي دي ،چي ددې جریان په دوران کي دامریکایونیکال اودارجنټاین بریډاس هغه دوې سیالي کمپنۍ وې چي غوښتل یې دافغانستان له لاري دمنځنۍ اسیادترکمنستان هیواد څخه وپاکستان اوبیا هندوستان ته دګازونللیکه وغوځوي اودواړو کمپنیودامارت سره ښې اړیکي درلودې حتی په افغانستان کي یې خپل دفترونه پرانستل اوهریوې یې داکوښښ کاوه چي دیادي پروژې دعملي کولوچانس ترلاسه کړي .دطالبانو هیئتونوهم امریکااوارجنټاین ته سفرونه وکړل ترڅوددواړوکمپنیوشرایطواوامتیازاتوته په پام سره دافغانستان دملي ګټوپربنسټ دیوې سره یې دیادي سوي پروژې دعملي کولوپروتوکول لاسلیک کړي .منتهادافغانستان اسلامي امارت دخپل ملي رسالت له مخي دیونیکال په نسبت دبریډاس شرایط دهیوادملي منافعوپه ګټه وبلل اوترمنځ یې(دامارت اوبریډاس) یولړابتدایې توافقات هم رامنځته سول .خومتأسفانه چي په امریکاکي دسپتمبردیوولسمي نېټې دپیښي په بهانه پرافغانستان د صلیبي امپریالیزم ناروایرغل نه یوازي ددې اونورو انکشافي پروژومخه ډب کړه ،بلکي بې شمېره معنوي اومادي شتمنۍ یې هم راڅخه تالاترغه کړلې .

## دطالبان په حکومت کې اودښځوحقوق :

مونږافغانان الحمدالله ۹۹٪۹۹سلنه مسلمانان یواوباربارشکرګذاریوچي ،الله سبحانه وتعالی دبې شمېره پیرزوینوڅخه علاوه داسي سترکامل اوشامل نعمت (اسلام)راباند ي لورولی دی ،چي هم دین دی اوهم تمدن .که له یوې خوایې پخپله پراخه اوپسته غېږه کي اقتصاد،تعلیم ،سیاست ،ساینس اوټولنیزوچاروته ځای ورکړی دی له بلي خوایې بیاپه اجتماعي حقوقي مسائلوکي دمشراوکشر،نراوښځي مقام اووظایف هم ټاکلي اوښه تراتشریح کړي دي .

نوبنادا اسلام مقدس دين چي ښځوته په كيفي اوكمي لحاظ كوم حقوق وركړي دي دافغانستان اسلامي امارت يې نه يوازي داچي تايدوي ،بلكي دلاښه تطبيق په مؤخه يې دېري هلي ځلي اورازراز كوښښونه هم كړي دي ،چي دمثال په ډول دعاليقدر اميرالمؤمنين هغه فرامين يادولای سوكوم چي په ځانگړې توگه دښځودمشروع حقوقوداعادې اوپلي كېدوامركوي اوپه ټينگارسره وايې چي "ښځي به په دښمنيوكي نه وركول كيږي اودميراث حق به پوره پوره ورته رسيږي "زماپه اندد ښځودحقوقوپه برخه كي چي امارت كوم دپام وړرول اداكړی دی ښايې ډېرونظامونو دخپل حاكميت په اوږدودوروكي هم نوي ترسره كړی اودښځودتعليم خبره مومخكي ذكركړه چي يوه فعاله پروسه په كاراچول سوي وه چي په راتلونكي كې به عملي كيدله ،خومتاسفانه چي حالات بل ورواوښتل چي دعمل ټولی جامي ديرغل خورک شوی .اونورخوجوته ده چي داډول تورونه نه يوازي پرطالبانو،بلكي پرټولو مسلمانانو دغربي دولتونواوټولنولخوا لگول كيږي كوم چي دمعنويت دښكلي جهان درنگنيوڅخه ليري دماديت دتوروتياروپه ځنگلونو كي حيواني ژوندكوي بشري كرامت تر پښولاندي كوي اوښځوته يوازي ديوې مادي متاع اودجنسي غرايزوداشباع دوسيلي په سترگه گوري .

## دطالبان د اسلامي امارت پاليسي اوپاكستان : يادپښتنودويم كور

ځيني خلک اوډلي تورلگوي چي دطالبانوغورځنگ دپاكستان له خوارامنځته سو ،خوكه لمړيه دووگوتوپټ نه كړونوبېله شكه چي دطالبانواسلامي- ملي پاڅون په حقيقت كي دوخت دحاكم انارشيزم په وړاندي ولسي غبرگون ؤ ،نه دپردولخوايوايجاد سوی تنظيم .كه طالبان رشتياهم دآی ايس آی لخوارا پورته سوي اوتقويه سوي وای ،نوولي يې دپاكستان دټينگاراواصرارسره – سره دډيورن كرښه په رسميت ونه پيژندله ! ؟ ځواب واضح دی چي ،داافغان ملت دملي گټو ،ملي وحدت اوارضي تماميت خلاف عمل ؤاودامارت لخوايې هم ځكه كاملا ديوخپلواک ملي دريځ پربنسټ ترديد غوره سو . تاسي وگورئ ! اسلامي امارت دحاكميت په ټوله موده كي كومه كړنه دپاكستان په گټه اودافغانستان دملي منافعوپه زيان ترسره كړه!؟ اوكه مومنظوردامارت اوپاكستان ترمنځ ډيپلوماتيكي اړيكي اونسبتا ښه

روابط وي نوییاخوواضح ده چي امارت نه تنها دپاکستان سره ،بلکي دټولي نړۍ سره ډیپلوماتیکواړیکواودوستانه روابطوته ژمن اولیوال ؤ.خومتاسفانه یوشمیر ګاونډیو هیوادونواوامپریالستي قدرتونوپه افغانستان کي یومرکزي ،مترقي ،خپلواک اوسوچه اسلامي نظام نسوای زغملای اوډول ډول ستونزي یې ورته ایجادولې ترڅوافغان غیورملت تل ددوی محتاج اوغلام واوسي اوبل خبره دپاکستان سره ددوستانه اړیکي باعث دافغان ملت همږغي وه تقریبا نیم پاکستان افغان پښتانه ،مهاجر اویاهم سني حنفی مذهب دي دافغان اوپاکستان ملت کلتوري ،مذهبی اوژبنی روابط و څخه هم ددې توقع کیږي چي باید په خپلوکې همږغ ووسي یعني دطالبانو همږي دپاکستاني ملت اوعلماؤ سره وو نه له سیاسي کړیوسره ولي چي دپاکستان په ټول سرحد کې افغان مهاجر میشت دي اوداهغه مهاجردي چي دروسي تاړاک مخه یې دنړۍ له زیښناکولو څخه ونیوله اوطالبان هم دهغه افغان مهاجر اوافغانانو زامن دي.

### طالبان اسلامي امارت اونړیواله ټلواله :

دملګروملتونوسازمان سره ددې چي دشمالي ټلوالي څوفراري غړي یې دتاجکستان په کولاب کي دافغانستان دملي حکومت په توګه په رسمیت پیژندل ورسره یې دطالبانوتر واک لاندي دافغانستان په۹۵سلنه کي پرمیشت کړیدلي غریب ولس اقتصادي اوسیاسي یوطرفه بندیزونه هم ولګول چي، افغانان یې دخوراکي توکواونوروداړتیاوړموادود بیساري کمښت سره مخامخ کړل چي په پایله کي یې په لسهاووزره ښځي اوماشومان دابتدایې صحي موادودنه شتون له امله دژونده بې برخي سول . لوېدځ مخصوصاًامریکاپه افغانستان کي دیوخپلواک اسلامي امارت قیام ونسوای زغملای اوپه یوه اوبله بهانه به یې وخت په وخت اقتصادي اوسیاسي پرابلمونه ورته ایجادول .منتهاد۲۰۰۱ز داکتوبرپر۷مه ،مطابق ۱۳۸۰ل ،دمیزان پر۱۵مه نېټه یې په امریکاکي دسپتمبردیوولسمي دپیښي په پلمه دیوې صلیبي تروریستي ټلوالي په مشرتوب دافغانستان پرپاک اوخپلواک حریم ناروابوڅي تېری وکړ چي تردوې میاشتي پرله پسې مقاومت وروسته د۱۳۸۰ل،دقوس پر۱٦مه طالبان دخپل وروستي مورچل دلوی کندهارښارونواوکلیوالي اطرافوڅخه پرشاسول .دامریکایانو

دیرغل په پایله کي یې په لسهاوورزه افغانان شهیدان اوټپیان سول ،کلي اوکورونه بمبارسول . هغه توپکسالاران یې چي طالبانو شړلي وو یوځل بیاپر افغان ملت وتپل ،دمخدره موادوکراوقاچاق یووار بیارواج سواوهیوادوال ددا سي ناخوالوسره لاس اوګریوان سول چي پخوایې نوم هم نه اوریدلی لکه :دایډزوژنکې ناروغي اودمنسوخ عیسویت تبلیغ او...... اودشرم وړیې لاداچي دملیاردونوډالروبسپنوسره سره آن دکابل ښاریان هم دبرېښنااوصحي اوبودنعمت څخه بې برخي دي په ولایتونوکي خوخلک دیوې ګولۍ ډوډوی، پیداکولوپه خاطرخپل اولادونه پلوري اوپه دولت پوري دمربوطووسلوالوله لوري په روښاورځ دخلکوکورونه اودوکانونه لوټیږي ،ماشومان یې تښتول کیږي اودملګرو ملتونو دپرېکړي په اساس دراغلو میلمنو !! لخواییاهره ورځ دهیوادوالو دکورونو دپلټنو ، وژنو،نیونواوپه سپیویې ددارلو رپوټونه خپریږي .

دتیرو څه باندي لسو کلونوپه اږدوکي صلیبي اشغالګرواوتالی څټوټوپکمارویې دوحشي ځناورو په څېر چي څه ډول مرګونه اوجرمونه غوښتل هغه یې ترسره او افغان مظلوم ولس ته یې یوه دنیا اقتصادي ،فرهنګي ،سیاسي ،امنیتي اوټولنیزي ستونزي وزېږولې اولاهم متأسفانه دوام لري .

## دطالبانو دګړندي فتوحاتو لنډ پيښليک

په(۳ /۱۱/ ۱۹۹۴)م کال کې دطالبانونوم دنړۍ پرميډيا اخباراتواوچينلونو را ښکاره شوداوخت چي طالبانو يوځه قوت پيداکړي ووخودبدبې اوجزبې يې خلک ډيرمتاثر کړي و.پرهمدې مهال دطالبانو اوټوپکسالارانو ترمينځ جګړه دبولد ک پرلويه لاره روانه وه چې په تصادفي ډول دپاکستان ديومرستندوى قافلې تيريدل پرمهال پاټک سالارانوراګيرکړه ،خوله بل لوري د طالبان اسلامي غورځنګ هم په ډيره چټکۍ سره ځپله دبريا مخه وهله چي همدلته دپاکستان تجارتي کاروان دټوپکوالو اوطالبانودجګړې ترمينځ را ايسارسو دطالبانومخالف ټوپکمارچي دګيلانى ډلې څخه منصور نومې قومندان وه او ددې ډلي مشرى په غاړه لرله ،خوطالبان برلاسى سو اودګيلانى دډلې(جبهې)مشرئي سره له څوساتونکو ملګرواعدام کړل سو(اوبيايې دلويې لار په سر دټانګ په ميل پورې دعبرت په ډول دڅوورځولپاره را وځاړاوو)چي دطالبانودې کړنې په هيواد اوخصوصاپه مخالفوجګړه مارانو سخت تاثروغورځاوه چي ويراوډاروا خستل ترڅو ددوى دپرمختګ لړۍ يې نوره هم چټکه کړه.

شهيد مولوى امين الله مرحوم په خپلو خاطراتو کې داواقعه داسي بيانو :

---

يوه تاريخي خاطره

### دطالبانو پاڅون اودسپين بولدک فتحه

شهيد مولوي امين الله امين چي دتحريک تقريبا په سلو کې ۸۰ جګړوکي برخه وال وو دامارت په لښکروکې ځانګړى حيثيت لري ، خورا دلاور عابد اوټينګ عزمه مجاهد وو دجهادي سنګرترڅنګ دقلم اوليکوالي هم مينه پال وودهغه له يادونوڅخه چي ليکي : تر ټولو مخکې طالبان له قندهار ﴿ ډنډا ولسوالى ﴾ څخه د سپين بولدک پر لوري ولاړو په لاره کې چيرې هم دڅه خنډ سره مخ نه شول، په لاره کې ځاى پر ځاى طالبان پرېښودل، پاته طالبان سپين بولدک ته ورسېدل چې ورسره ملا نور الدين ترابي ؤ، او د امير المؤمنين په لاره کې د طالبانو سره ؤ، د پاکستاني ويش سره نژدې په يو لوى مسجد کې يې طالبان راغونډ کړل، د چمن او کوټې افغانى طالبانو ته چې کله معلومه شوه چې طالبان تر ويشه رارسېدلي دي نو هغوئ هم په راغونډېدلو پيل وکړ، زه پخپله هغه وخت په چمن کې وم او په يوه مدرسه ﴿جمعية المعارف ﴾کې مې د استاد په توګه زده کړه ورکوله، صدر المدرس مولوي عبدالحميد چې وروسته په شبرغان کې شهيد شو او حافظ عبدالظاهر صاحب چې د مدرسې مشر ؤ، ددغو ښاغلو په څارنه کې

یوه شوری راوغوښتل شوه او په دې کې پرېکړه وشوه چې ټول استاذان او طالبان به د طالبانو د همکارۍ لپاره ځي حافظ عبدالظاهر صاحب دوه موټر کرایه کړل او مونږ ټول استاذان او طالبان هغه جامع مسجد ته ورغلو چې پکې طالبان راغونډېدل هلته مې د ترابي سره لیدنه کتنه وشوه د چمن دوه ستر علماء کرام له مخکې څخه هلته موجود ؤ، سلاح او نور ضروري شیان راغونډېدل، او ملګرو له یو بل څخه زیاته همکاري کوله، تر ټولو زیاته سلاح د ویش واکدارانو شهید ملا دوست محمد اخند او شهید ملا خالق داد اخند ورکړه ملا عباس اخند او طالبانو هم خپله سلاح راوړه، اوس الحمد الله په ټولو طالبانو سلاح ورسېده، تر اوسه لا په سپین بولدک کې د زنځیروالوو لکه وه تر ټولو مخکې طالبانو دوئ ته د علماء کرامو یو لوی وفد «استازی» و رولیږلو او دوئ ته یې خبر ورکړ چې دا زنځیر ختم کړی او دا سیمه پرېږدی، د زنځیر والو سره څه علماء سوء هم ؤ چې دوئ ته یې د زنځیر د جواز فتوی ورکوله. دغو بدبختو څرګند انکار وکړ او ویې ویل: چې دا زمونږ حق دی له دې وروسته طالبانو د قومي مشرانو او درنو خلکو وفد ورولیږی تر څو دوئ پوه کړئ دوئ ودغه وفد ته هم صفا ځواب ورکړ.

تر دریو ورځو پورې ددوئ د پوهولو هڅې کېدې خو دوئ یو مخ انکار کوی، او دوی هم د طالبانو په خلاف اتحاد جوړول پیدا کړ، تر درېیمې ورځې پورې چې کله دغو خلکو د طالبانو خبره ونه منله نو طالبان په یوه غټ موټر کې سواره شول چې نژدې څلویښت کسان ؤ او د ټولو سره سلاح وه پر موټر باندې یو غټ ټاټ واچول شو تر څو وسله وال خلک له دباندې څخه ښکاري، لویدیز له لوري موټر د زنځیر پر طرف ور روان شو له بل لوري څخه هم طالبان وهمدې طرفته راروان شول کله چې موټر زنځیر ته ورسېدی نو پر زنځیر ولاړ خلکو دا خیال ؤ چې دا خو کوم عام موټر دی، د زنځیر دا قانون ؤ چې موټروان به پخپله لاندې راشوه کیږي ودوئ ته به پیسې ورکوي، ناڅاپه له موټره طالبان راوغورځېدل پر زنځیر والو باندې یې ټوپکان ونیول، ځینو زور کوی او په مینځ کې دزې «ډزې» تکان» هم وسول، زه پخپله هغه وخت له سپین بولدک څخه د یو کیلو میتر پر واټن باندې وم، شل پنځه ویشت د قیقې وروسته نارې شوې چې ټکان مه کوئ، ټکان مه کوئ، کار خلاص شو، په شل پنځه ویشت دقیقو کې پوره ولسوالي فتح شوه او د طالبانو په لاس ډېره سلاح او غنیمت ورغی، څه مقابله کوونکي ووژل شول او څه ونیول شول په بندیانو کې یو قاضي هم ؤ، طالبانو هغه بازارته راوستی، او په ډاګه دده په خوله، پوزه او غوږونو کې د پیسو لوټونه ورکړه او په بازار کې یې وګرزوی، یو قومندان خپل موټر هم پرېښودلی ؤ قندهار ته وتښتېدی، طالبانو دده موټر هم په قبضه کې واخیستی او سهاریې د قندهار پر لور مخ وکړ، د قندهار له لوري د منصور په نوم یو قومندان او

امیر لالئ قومندان او دهوائي ډګر له لوري قومندان فضل د ټانکونو، موټرو، او درنې سلاح سره د سپین بولدک پر لوري راروان شو سپین بولدک والو هم د طالبانو په ضد. د جګړې تیارئ پیل کړی کله چې له ټولو لوریو د طالبانو د ختمولو لپاره لښکر را روان شو نو خلکو طالبانو ته ویل چې ستاسو ماغزه خراب دي ددغو خلکو سره دومره سلاح او خلک هم ډیر دي او ستاسو سره هیڅ نسته، طالبانو به دغه خلکو ته ځواب ورکوی.

﴿كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ﴾-

ژباړه: ډیر واره له ډلو لږو نه دی چې غلبه یې کړې ده په ډلو ډیرو باندې په حکم د الله رب العزت سره ـ ﴿سورة بقرة: آیت ۲۴۹ پ ۲﴾

دا رنګه طالبان د دغه آیت مصداق وګرځیدل په لاره کې لوی قومندانان د جګړې لپاره راووتل ددوئ سره په ګڼ شمیر کسانو سره ټانګونه او درنه سلاح هم وه، له ماسپښین وروسته طالبانو برید ورباندې وکړ د قندهار تر هوائي ډګره د طالبانو ومخته تر لس د قیقو زیات کوم قومندان نه سوای ټینګیدلای، بلکه خپل هر څه یې پرېښود درېګ پرلوري یې دتیښتې لار ونیوله، طالبان ورپسې ولاړو او ویې نیول د لمر لوېدو پر مهال طالبان وهوائي ډګرته ورننوتل او هوائي ډګر یې په ولکه کې واخیستی، سهار یې نیول سوئ قومندانان منصور او بارو د ټانګ په مل باندې اعدام کړه، په همدغه ورځ طالبان د قندهار وښارته هم ورننوتل تر ټولو وړاندې قلعه جدید، قومندو، او قول اوردو ونیول د ښار په پای کې د باغ پل په نوم سیمه وه چیرې چې د حزب اسلامي قومندانان سر کاتب څه لږ زور وکړ په همدغه ورځ دا سیمه هم فتح شوه په دوه درې ورځو کې دا ټوله سیمه قبضه شوه او څو غټې قومندانان د طالبانو سره یو ځای شول او د سلاح ډک ډک موټرونه و طالبانو ته وسپارل د قندهار فتح چې کله بشپړه شوه نو طالبانو یو طرفته د کابل پر سړک او بلې خواته د هرات پر سړک باندې تشکیلونه پیل کړه. د شهید امین الله د خاطرې پای



په(۵ /۱۱/۱۹۹۴ )کښی دقندهارولایت دطالبانوپه لاس سقوط وکړاوملانقیب نومي جهادي قومندان په مرسته یې دولایت یوشمیرناحیې اوفوځی ځایونه بی له کوم مقاومته ونیول ځکه چي ملانقیب درباني دتنظیم برجسته قومندان وو چي دحزب اسلامي ځواکونه یې ناکامه کول غوښتل،خوپه نوروسیموکې څه ناڅه جګړه ورسره وسوه چي په نتیجه کې دښار اطراف ترخپلې

ولکې لاندې راوستل ، همدالامله وچي دجګړې ځاني تلفات کم ویوائی ترڅلوېښتو نفروپورې تول مړي اوزخميان يې درلودل چي هغه هم دټوپکسالارانو دړندو واورونو ښکارسوی هیواد وال وو.



اوپه(۱۹۹۴)م کال نومبراودیسمبر کی طالبانو دقندهارڅخه علاوه پرنوروولایاتوهم برلاسی او واکمني پیداکړه بی له کم مقاومته نوددوی همدلته دواک ژواک کړی نوره هم پراخ سوه چي دجنوب غرب حوزه هلمند ،زابل اوروزګان ئی په خپله ولکه کې واخیستل .

طالبانو له قندهارپرته دنورپرمختګ اراده نلرله اودايې هم يوالهی نصرت اوتصادفی پېښه بلله چي دقندهار دمظلوم اولس دغوښتنی په نتيجه کې رامينځته سو.

لکه چي مولوی احمدالله نانی اوملامحمدحسن رحمانی ومجلة(خبرنامه)ته په هغه ګڼه کښی وويل چی په اګست(۱۹۹۵م)کښی خپره سوه.



په کال ( ۲۶/۱/۱۹۹۵)کې دزابل له ولایت څخه وروسته چي دحميدالله توخي دطالبانو مخالف ډله حزب پورې يې تړاو درلودي دخپلو ګوډو اوماتو لښکروسره یوځای له زابله پښې سپکې کړي او طالبانو دملاعبدالسلام راکیتی،دمرحوم حاجي سلام خان جهادي جبهي او شهيدملامددخان دجهادي جبهي په همکاري ددې ولايت نظامی اواداري واک په لاس کې واخېست اوبیادشهيدعزيزخان اوملاراکیتی په مرسته يې دغزنی ولايت هم د والي قاري بابا څخه ونيوي او دحکمتيارلښکرې هم ور و ،ورو يوپه بل پسې تولېدلې ،خوډېر په يو مايوسه او بې مقاومته انداز سره يې سنګرونه پرېښودل وروسته له دې چی دحزب اسلامی قواوی دهيواد له جنوبي حوزې څخه لاس پرسر سوې دهيواد ختيځ اوپلازميني ته وخوځيدي چي ميدان ښار،چهاراسياب اوسروبی يې کلک اوستراتيژيک سنګرونه وو نو دطالبانو لښکري نورې هم دپياوړتيا درشل ته په داخيليدو وي



اوپه( ۱۰ /۲ /۱۹۹۵)کال کې کی طالبانودغزني له بريا وروسته پرميدان شهرحمله وکړه چي دحکمتيار يوه ټينګه مورچه وه ،خودطالبانو بريا او دحزب اسلامي شکست دوام درلود ترڅوپه دې ولايت کی هم ټينګ نه سوا وطالبانودلته هم برلاسی سول.



اوپه کال (۱۹۹۵/۱۰/۲) کې يعنی دميدان ښار له سقوط څخه وروسته طالبانوپه ظرف دڅلورو ورځوکی وروسته له دې چی حزبيان له چارآسياب څخه وه خوځيدل وسروبی ته-دحزب اسلامی ټولی هغه سيمی ترخپل واک لاندی راوستی چی پرکابل شاوخوا اگرزيدلی وي



اوپه(۱۹/۲/۱۹۹۵)کال کې طالبانوداسلامي غورځنگ دبرياؤ لړی دجنوب ختيځ ولاياتوته واوښتله چي هيواد ټول دطالبانو په اسلامي نظام او امن ته ليواله وو.او په همدې تاريخ پکتيا اوپکتيکا ولايت هم له کوم مقاومت پرته يوپه بل پسې تسليم سوا و اولس,يې ښه تود هرکلی وکړچي له يولوري دوي مذهبي لارويان وو اوله بلی لوري دهيواد ناامنيوخلک ډيرپه تنگ کړي ځپلي وو.
ترهمدې بريد چي طالبانودهيواد جنوبی ولايتونه ونيول اوخپل اسلامي, نظام يې پکې پلې کړ نوره موخه يې کابل ته سوه اوکابل کې دمسعود،رباني ،سياف ،خليلي ،مزاري ،اودوستم قواوو په خپلومنځنې جگړوکې رانښکيلې اورباني ته دانښه موقع وه چي دواړولوروته پښتانه مري اوحکمتيار خولاپخوا څخه دده رقيب اوسيال وچي (ارگ يامرگ) يې د خپلې جگړي يوائنی هدف او شعاروو.
طالبانوچي دعربي نړی ، هندکې ديوبندی اوپاکستاني مذهبی ډلواودنړی له نورو علماکرامو څخه پوره همږغي ،خواخوږي اودنظرتبادله لرله ،نوپه همدې بهيرکې ددې لپاره چي دطالبانو اسلامي غور ځنگ ته بې له کوم ځانې اومالي زيانه څخه پرته پلازمېنه په لاس ورسي دجمعيت علماء اسلام مشرقائد مولانافضل الرحمن صاحب چي درباني زوږ انډيوال وو په (۲۱/۲/۱۹۹۵) کې له برهاندين ربانی څخه غوښتنه وکړه چی دکابل حکومت ټول اداري نظام او فوځې مهمات چی دده په واک اواختيارکې دې بايد بې له کوم غنډ اوځنډه څخه طالبانوته تسليم او وسپاری ولي چی مجاهدين خو ددې اسلامي نظام دراوستوپه نيت خپل جهاد اومقاومت ته دوام ورکړي وو ،خونن هغه ارمان ددې هيواد بچانو دترسره کولو په موخه دبريا وروستي حل را رسولي دي ليکن بيا هم رباني دخوتشوبهانو په کولوسره نټه وکړه او دجگړي دختمولو توان يې نه درلود داسي بريښيده چي دا جگړه دکوم نامعلوم هدف او اشخاصو پوري اړه لرله ځکه يې رباني دسولي له بهير څخه ليري گامونه اخيستل .



په(۱۹۹۵/۳/۶م)کې کابل دجهادي ډلوټپلودمينځنې شخړوډګر و ايران هم دنورو سيالو ګاونډيانو په څيربې غرضه اوبې تفاوته پاته نه سو دحزب وحدت خليلي اومزاري ټلوالي يې دې ته هڅولې چې دهيواد مرکزکې اداري پوستونه اوستراتيژيکې سيمې په لاس کې راولي څومذهبي ګټې او ايران غوښتونکي اهداف پلي کړي بل لورې ته دپنجشيرې ټلوالي مشرمسعوداو دهغه ملګرودپلازمېنې دترلاسه کولو په نيت چې دمسکويان وروستي هدف ونوروسيالوجهادي ډلوته يې اجازه نه ورکوله اودايې ورته په ډاګه کړه چې نوردواک اوګدۍ خوبه بايدونه ويني ،خودمسعود دهمدې دريځ سره جوخت پاته مخالفولوروااسلحوته لاس پورې کړاو يوبل ته يې سنګرونه ونيول چې لومړي دحزب وحدت شيعة ډلې اودمسعوددقواوو سخته خونړي جګړه راپيل سوه ، دښاغلي حکمتيا راو دوستم قواوو دکابل دروازي او اطرافو ته سنګرونه ونيول.

اوپه(۱۹۹۵/۳/۸م)کې چې دمنځني خونړي جګړوبهيرهمداسي پاتي ووچې دطالبانواسلامي لښکرو دکابل په څنډو دسپينوجنډو سوري وغوړول .په همدې مهال يې ټولو ښکيلو جګړمارو ډلو ته په هيواد کې دامن ،سلحي ،او يوموټي اسلامي حکومت اعلان خپورکړ،خوهغوي دطالبانو داسلامي تحريک دا اعلاميه ونه منله چې دبې وسلي کيدلولاره ورته ګرانه تمامه سوه اونوريې هم غبرګون دتوپک ميل وښود اوپرطالبانويې نورالزامات ولګول ،خوطالبان هم کله چې ددوي عکسل عمل منفي وليد ،نوخپل پرمختګ ته يې ادامه ورکړه اودايې يوښه چانس وبالوچي له يوه لوري دمسعود ،رباني اوسياف ډلې وي اوله بل لوري حکمتيار،دوستم اوشيعه (مزاري اوخليلي)ډلي ،خودلته دشيعه مزاري ډلي اومسعود ترمنيځ سخته جګړه روانه وه نوطالبانو همدا يوه ښه موقع وبلله چې پرشيعه ډلويې دبريد لپاره لښکري تياراوپه لږوخت کې يې دشيعه جګړماروسنګرونه خالي اوعبدالعلی مزاري يې روغ رمټ ونيوي چې وروسته دتېښتي دهيڅي لامله ووژل سو.



په(۱۹۹۵/۳/۱۱)کال کې طالبانودلومړي ځل لپاره د وروستي مخالفي جګړماري ډلي سره دسيالي مهم سنګرونه اوسترا تيژيک فوځی موقعتونوباندي برلاسي سول او داهم دکابل دنيولولومړي لاره وه.



په(۱۱/۳/۱۹۹۵)کال کې دمسعودقواوله همدې خالیگاه څخه په استفادې سره ټولې هغه سیمې چي دمزاري شیعه ډلو (حزب وحدت) څخه خالي سوې همدوي ونیوي هغه چي دکابل غربي لورته واقع وي.



په(۱۳/۳/۱۹۹۵م)ددې بدلون سره دحزب وحدت شیعه ډلي مشرعبدالعلی مزاری طالبان ژوندي ونیوي دده برمته کول کومه عادي خبره نه وه دایران جمهوریت لپاره یوسخت گوزار وو چي له یوي لوري یې دنوموړي په توسط سره دمذهبي نفوس اوسیاسي گټې لاس ته راوړل هدف وو له بله لوري په هیواد دنارامیویوه ښه اله وه ،دسمې جهادي مشران وائی کله چي نوموړي طالب مشرانو خپل مرکزي ولایت قندهارته دنقلولو په یوه څرخې چورلکه کې انتقالولو ، هغه ووچي دلاري په اوږدو کې دمیدان ښارپه سیمه کې دځان خلاصولو په موخه په چورلکه کې له سپروساتونکوطالبانو سره په جگړه سو چي په نتیجه کې یې چورلکه کښېنتلوته اړایسته ،خوپه همدې مهال کې یې یوشمېرساتونکي طالبان هم شهیدان کړي وو ،خوکله چي له چورلکې څخه دتېښتي تکل وښود په یوه ناڅاپي ډول دطالبانو یوبایپورموټرچي دکومې بلې موخي لپاره چرته روان وو دچورلکې په لیدوسره ورته اسار سو که گوري چي کوم څوک له چورلکې څخه د تښتېدو په حال کې ده ،نوله دې سره سم یې دهغه په نیولو لاس پوري کړ ،خوهغه دمقاومت دریځ څرگند کړ چي په نتیجه کې ووژل سو.



په (۹/۵/۱۹۹۵)کال کی چي دمسعود اورباني له لوري کومې دروغي جوړي خبرې اتري ترسره کړي ،خوهغومذاکراتو کومه مسبته نتیجه ورنه کړه چي بلاخره دطالبانو وروستی غوښتنه همداوه چي باید دکابل واگې همدوته وسپاري ترڅوپه هیواد کې دیوه موټي اسلامي نظام په برپایه کیدوسره دوی ته هم دولتي څوکې ورکړي ،خوهغوي چي دروسانوترمستقمې مرستي اودهغوي ترتاثرلاندي وو دطالبانوددې غوښتنې غبرگون یې منفي وښود ،خوبیاهم مسعود خپله میدان ښارته دروغې ترعنوان لاندې سفروکړچي ترڅوددوی دریځ اوفوځې گشت او گوزروويني ،خوطالب مشرانوچي ملاسلام راکېټی هم ددې منځگړیتوب کوربه وو له ده څخه وغوښتل چي له مشرملامحمدعمراخند سره خپله له نزدې څخه ووینې ترڅوسوئ تفاهم دابهیریوې مسبتي نتیجې ته ورسیږي ، خومسعودظاهرآدمذاکراتو دالومړي سفرکافي وبللواوتردې مخکې یې هم دڅه

فوځې مرستوخواخوږي ښودلي وه چي طالبانوته نسبتًاترنورو جګړومارو ډلومحبوب ښکاريدي ،خوکله چي مسعوددبيرته کابل ته ورسيدهمداروغ رسيدل يې دځان لپاره غنيمت وګڼل اوپه سبايې خپلوټولو جګړماروډلوته دتيارسي حکم صادرکړ چي بايدپرې نږدي دکابل په دروازو باندي دطالبانو لښکرې راداخل سي اوله خپلوسنګروڅخه پوره مقاومت وکړي، ،خوبل لورې ته يې بيا دجمعيت ټولو قومندانانوته حکم صادرکړي چي دطالبانو له پرمختګ څخه کلک سنګرونه وساتي .

په همدې لړکې يې دجنوب لويديځ حوزي مشرتورن اسماعيل ته هم امروکړچي دلويديځ له لورې دطالبانومقاومت وځپي ، ترڅوپه دوسنګر نو ووېشل سي .

دهمدې کال په اوږدو کې دجګړې اورو ډيرتودسو چي بلاخره دتورن لښکروفراه نيمروز اوهلمند ولايتونه ونيول چي دطالبانو مرکزي ولايت قندهار هم په خطرکې سوخو نويديځ ته درسيدوپه مټ دطالبانويوشمېرتکړه اوجګپوړي مشران هم څه زخميان اوشهيدان سول چي دهغه له قطار څخه مرحوم ملامحمداخند هم وو ، ولوکه مخالف لوري ته سخت زيان هم اوښتي وو ،خولدې ګړندي اوپردې بدلون سره دپښتنواومذهبي ځلميوجزبي اوغوسي راوپاريدلي چي همدايوحيرانونکی پاڅون وو مونږ ددغوسحنوشاهدان وو چي خلکوبه خپل دوکانونه ،ريړۍ اوځمکې همداسی خوسي پريښودلي اودطالبانو داسلامي تحريک په لښکروبه ورګډېدل ،خودپښتونخوامېشت ځلمو اوقندهاري اولس اوښاريانو پاڅون ډيرجزباتي اونه ماتيدونکو ووچي نتېجه کې يې دتورن تورى لښکري ترهرات ورسولي .

## بالاخره امير المؤمنين هم دجګړې ډګرته راووتلو

﴿ثُمَّ أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّن بَعْدِ الْغَمِّ أَمَنَةً﴾ ﴿پاره ۴﴾

ژباړه : بيا هغه له غم وروسته امن نازل کړ.

شهيد عبدالمنان په خپل يادونو کې ليکلي چي :

(دا د الله رب العزت مرسته او نصرت ؤ چې هغه د امير المؤمنين او دهغه د ملګرو پښې ټينګې کړي، امير المؤمنين پخپله د جګړې ډګر ته راغلی او پخپله يې د طالبانو قومنده پر غاړه واخيسته، په دې سره طالبان دابمن شول، اوس پر دښمن باندې د لويې حملې تياری پيل شو په دې راتلونکې ورځ طالبانو پر دښمن بريد وکړ هغه يې پر ماته مجبور کړل، د شهيد ملامحمد اخند وينو رنګ راوړی دښمن يوه تاريخي ماته وخوړه طالبان پر مخ روان ؤ، او دښمن په شا تېښتېدی، طالبانو يواځې په شپږو ورځو کې ډيرې ولسوالی فتح کړې د دښمن چې څومره فوځ وو جګړې ته راغلی ؤ، له هغه څخه نيم هم ژوندی نه شو پاته کله چې دښمن ماته

وخوره وتښتېدى نو طالبان تر شا ورپسې ؤ دښمن سړک پرېښود پر دښت ورمخ شو، له هلمند څخه د هرات لاره نژدې پنځه سوه کيلو ميتره وه څکه دا سفر پياده پرې کول شونى نه ؤ، د دښمن څواکونو ځان ژغورلو لپاره په دښتونو کې تښتېدل طالبان په موټرونو کې ورپسې شول او دوئ يې وژل د هرات په سړک دومره مړي پراته ؤ، چې د بدبويي له کبله د موټرو هنداري «شيشې» هم سرې نه شواى خلاصولاى، د وژنې سره سره د دښمن ګڼ شمير وګړى بنديان هم شول.( دشهيد عبدالمنان له يادښتونو څخه )



مګرپه(۳/۹/۱۹۹۵)کښى دهرات دوالى اواحمدشاه مسعودپه مينځ کى هم اختلاف راغلى چي نورنو دتورن قوت هم کمزوري وو اودطالب غورځنګ دمقامت هوډ يې نه درلودى چي کابل چارواکو هم نوموړي تورن يې په يوشمېر بې امريو تورکړ او دعزل(ليرى کيدلو)امريې صادرکړ،خورباني اومسعوددواړه په يوه خوله نه وو طالبانو چي اوس دجنګې تاپتيک يوه ښه تجربيه لرله لدې څخه يې استفاده وکړه اودپرلپسي جګړې په نتېجه کې يې له تورن پاتو جګړمارو څخه دهرات ولايت ونيوي اوښاغلي تورن له شکست وروسته ايران ته پښې سپکې کړې.



په(۱۰ / ۱۰/۱۹۹۵ م)کې دطالبانو اسلامي غورځنګ يومنظم شکل اختيارکړ اودهيوادلويه برخه يې په واک کې راوستله اوس نوديومنظمې ادارې لپاره دکابل (پلازمېنې) ترلاسه کولو اړتياليدکيده ترڅو نړوالو ته ديوه حکومت اورسمېت په ډول ومنل سي طالبانوهم خپلې لښکري چي تولې له تنکي ځلميوڅخه جوړي اوهم داسلامي غرور له زوره ډکې وي ملت يې هم دښه امن اواسلام غوښتنې لامله ډيرليوال وو چي خلکوبه دامن پريښتى بللې اودهرې سمې په نيولوسره به يې ډيرتود هرکلي کيدلوچي اولس بې مخې ته ګلان شندل بس همدا ددوي اسلامي او طالبي غروراو وياړوو چي ښوک ورته دتېنګېدو نه وو دهمدې څخه په استفادي سره طالبانو دکابل دنيولو کلک هوډ وکړ ،ولي چي نوريې ګردچاپېرسيمې اوولايتونه فتحه کړي وو طالبانوچي ديوستر بريد تابيانيولي وه ،خپل مشرملامحمدعمراخند دښه نيت ،پاکې عقيد اوپه صفونوکې دصالحو اونيکوخويونوپه غوښتنه سره يوفرمان صادرکړ دچاراسياب خيراباد لوړې ښوکې يې دکابل د محاصرې لپاره تريو وخته پوري راتېنګې کړي چي ددې اهموسيموفتحي يې دويم ځل ووچي نورکابل ښار محاصره وو.



په(٣ / ۴ / ١٩٩۶)کال کې چې طالبانو نړیوال اسلامي حیثیت خپل کړدټولې اسلامي نړۍ جهادي نهضتونو (ډلې)،علماؤ اسلامي اومذهبي ګوندونوله طالبانوسره دښواړیکواوراسه درسه لړۍ جاري وساتله خولدې سره دالقاعدې نیټ ورک (ترړلي شبکې )هم یوښه رول ولوباوو چې په ټوله نړۍ کې یې دیوسوچه اسلامي نظام په ساتلواوراوستلوکې سره سلا اوموټي سوچې داسلامي نړۍ ټول مقبوضه هیوادونو مشرانوخپلې ټول ارمانونه اوهیلې تردوي پورې وتړلي چې په دې کې دچیچنیا،ازربائجان ،ازبکستان ،تاجکستان ،قرغستان ،کشمیر، چینې ټاپو ،لیبیا ،فلسطین اونوره عربي نړۍ ...جهادي اوخپلواکۍ غوښتونکي مسلمانان شامل وو،نوکله چې دمسلمانانو دیوستر اتحاد بې مثال وحدت رامینځ ته سو د همدې سره دمسلمانانو یوامیراوخلفه ته اړتیالیدل کیدله ،خوپرهمدې بنادااسلامي نړۍ علماؤکرامو ، جهادي رهبرانو، اولسي مشرانواودهیواد د دودیر یشوولایتونوجیدعلماؤکراموجهادي اوقومې مخورو په اتفاق سره یوستره غونډه راووبلله سوه چې یوازې پکې پنځلس سوه (١۵٠٠)راغونډوسوعلماؤپه تائیداوجدې غوښتنې سره چې نه یوائې په هیواد کې دمسلمانانویوه امیراوخلفه ته ضرورت لیدل کېدی بلکې دټولې اسلامي نړۍ لپاره دیوپراخ اسلامي تحریک اودتیروخلفاؤ په څیریوامارت خلافت ته ضرروت اواړتیاوه ،ځکه چې دټولې کفری نړۍ هیوادونه ولوکه په ادیانوکې سره مخالف وو ،خودمسلمانانو په وړاندې یې دیوملت څرګندونه او احساس یې کاواودایې په ډاګه وله چې په افغانستان کې کوم اسلامي نظام جوړسوي دادټولوکفري هیوادو لپاره دخطرزنګ دي دمسلمانانو دامیرټاکلو په مهال په امریکاکې د ټامیزورځپانې په یواوږد کالم سره چې دنړیوالې صلیبي ټولنې دمشرله لوري ورکول سوي په کې لیکلي ووچې دطالبانو اوالقاعده ډلوچې کوم حرکت پیل کړي دابه دنورو ادیانو اوملتونوپه وړاندې ډیرمنفي پایلي اوموخي ولري ،ولي چې نوموړو اسلامي سخت دریځو دډیرو زړو رقابتونونظام چې دامارت اوخلافت په نوم یوپراخ نړیوال غورځنګ راپیل کړي ،اوکه دې ته ورته تیرخلافتونه اوامارتونه ته وګورو نوویلای سوچې دعیسویت ،یهودیت ،بودائزم او الحادپه وړاندې به دایودناسورزخم وي اوداچې دعمراوامیرالمؤمنین کنګوسي په نړیوال میډیاخپرېږي دابیایوبل نوی ویرونکي خوب دي که تاسو غربي امپراطورانوپه اصطلاح دسخت دریځو اسلامپالوتاریخ ته ځیرسي ،نودعمربن خطاب اوعمربن عبدالعزیزپه نوم چې ددوي په تاریخ کې عمرین بلل کیږي ددوي دزورواکۍ او واکمنۍ په مهال خودنورو ادیانواوبې اسلامه ملتونو دمغلوبیت اوناخوالې دور وو اودا اوس دریم عمر چې هم هغه نظام اوهغه دریځ لري نوددې نوې

عمر دريځ به دتيرو سخت دريځو په ډول سخت وي بايد ددې نړيوال تروريزم جرړي په هم هغه ځای کې ووځې او دمخنوي لپاره يې په نړيواله سطحه اقدام وسي تر څو دنورو اديانو ازادي په خطر کې واقع نه سي.
نو دکفري نړۍ همدې احساس مسلمانانو هم په غور ځنګ راوستل چې له ډيرو ليرو هيوادو څخه داسلامي نظام دسيلانيانو او خواخوږو دراتلو راتګ کيدو لړۍ ورځ په ورځ پراخېدله چي په همدې بهير کې په هيواد کې دعلماؤ غونډې ښاغلي ملامحمدعمرمجاهد ته دده دتقویٰ ديانت، غيرو او مجاهد پرورو احساساتو لامله ورته داميرالمؤمنين لقب ورکړ، خو په همدې لړکې نوموړي اميرالمؤمنين حاضرې غونډې ته ددې درانه نامه څخه انکارو ښودچي دخپلی تقوا څرګندونه يې کوله، خو دغونډې ګډونکونکو ممتازو شيخانو صاحبانو بلاخره په دې سره مجبور کړ چي دامارت مشرتوب ته غاړه کښېږدي بياهم نوموړي دخپلي غاړې دخلاصون په موخه په راغونډ سوعلماؤ کراموا و دامارت په مسؤلينو(چارواکو) باندي داړېه ور واړوله چي زه ستاسو هرغوښتنه په سرسترګومنم!، خو هغه غوښتنه به تاسو په خپل ايماني وجدان سره دشريعت محمدي په رڼاکې وړاندي کوي اوزه به يې دامراو حکم په شکل صادر وم او که چادغدارۍ اوچاپلوسۍ له مخې تيراستنه ترسره کړه نو داړېه به په ورځ دقيامت ستاسو په غاړه وي ولي زمالپاره به دټول هيواد اونړيوالو مجاهدينو اداره اونظام په يوسره ناشوني وي زه ترخپله توان اوپوهې پورې دخلفاؤ راشيدينو په څير نظام پلې کول لازمي غواړم، خو ستاسو وفاداري او ايمانداري لازمي ضرورت ګڼم ځکه چي دا افغانانو لپاره هم وقار او وياړ بولم چي دمسلمانانو دخپلواکي اوازادۍ لپاره دچوپړ جوګه ګرزي... خو للّٰه لحمد چي دهيواد دميلونو شهيدانو، يتمانواو کونډو رنډو او زخميانو ارمانونه په پوره کيدو ښکارې دهيواد په سلنه کې ۷۵٪ برخه داسلامي شريعت او امن ترسوري لاندي ژوند تيروي پاته برخه هم انشاءالله دکمونزم دپاته شونو څخه پاکېدونکې ده... کفار داسلام دانظام نه سي زغملای هغوي چي نن مسلمانان په يوه اوبله بانه تهديده وي اودنړۍ په هرګوډ کې مظلوم اومغلوب دي همدادصليبي اويهودي استعمار پټې طوتئ دي چي ديوناڅرګندې کنډې په لوري يې تېل وهې يوخت به ډراماتيزه ډيموکراسي ديوکرغېړن استثمار په غاړه ودروي، خو که تاسو دغفلت لاره خپله کړه... دا وو دعمرثالث دامارت لپاره داميرالمؤمنين دټاکني دمسؤليت وينا او دده رحمه الله هغه مو [redacted]

اوپه اگست(۱۹۹۶)کې دحکمتیار ډلې تېلې دپکتیا اوپکتیکا په شمول نورې تولې سمې په پرلپسې ډول له لاسه ورکولې چي نوریې په هیوادکې داوسیدنې اوسنگرموقع نه لیدل کېدله اوطالبانوهم خپل پرمختگ گړندی اومیړنی ساتلې ووچي دحکمتیارپه ډلویې دهیواد مځکه گچلې وه دحزب ډله چي نورله مقاومته عاجزه اودهیواد په جنوب لویدیځ اوختیځ کې یې د دریدلو ځای نه لرلونو مجبوره سوه چي تېتبک بدل کړي ؛چي همدې ته نړیوال دسیاست دوه مختوب وائی :
همداوو چي دخپلو مخالفو لورو سره د بقااوپناپه موخه دیووالي مذاکرات شروع کړل چي په نېتجه کې حکمتیار دخپلې سیالې جگړه مارې ډلې سره دپخلاینې هڅتونه ولیږل او په ډیره چټکې سره یې دخپلواهدافودخوندې ساتلو په غرض خپل ټول مینځنې رقابتونه لرې کړل اوپه روغه جوړه سره بریالی سول (چي همدا دطالبانو اسلامي غورځنگ لخوا دهیواد دجگړه مارو ډلو یوعبرتناک انجام، دملت غولنه، اودروغژن اهداف وبلل ) .

همدا ووچي په(۲۴/۵ / ۱۹۹۶)کی دحکمتیارپاتې لښکردده په شمود کابل ښارته داخلې سوې ،کله چي ددوی مذاکراتو کې کومې مادې لیکلی وي یوه همداوو چي ښاغلي حکمتیاربه دصدارت عظمی(رئیس الوازراء) دمسؤل په توگ دربانې حکومت کې کارکوي چي دوزیراعظم څوکی بلل کیږي اوبل ماده داوه چي دحکمتیارلښکرې به ددوی له فوځونو سره یوځای دطالبانو اسلامي غورځنگ په وړاندي په لومړیو لیکو کې جگیږي.



په(۲۴/۸ / ۱۹۹۶) طالبانو دپکتیادفوځي مهماتویوه لویه ذخیرو هم ونیوله چي دهیواد دفوځي مهماتوله سترزېرمتون څخه گڼل کیده چي دلته نو نوردحکمتیارصیب وروستي دمهماتو ځاله وو طالبانوترهرڅه لومړی دفوځې مهماتوپه راټولو ډیرکوښښ کولولدې وروسته طالبانو مخه دنورو پاته تنظیمو په لوربېوه چاچي ددوي دنظام مخالفت کاوو له هغوي څخه دننگرهارشوري' او دجلال اباد واکمنه ډله وه.



اوپه(۲۴/۹ / ۱۹۹۶)کال کې دبریاوو په لړکې طالبانو بل لورې ته دلوگرولایت دازرې ولسوالی گیرکړه چي داهم دکابل دفاعي خط وواوخورا مهم نظامي اوجنگي موقعت گڼل کیدی .



داسلامي تحریک ځواکونو دختیځ لوري ته هم پراخ فتوحات پیل کړي چي په (۸/۹/ ۱۹۹۶) کې یې دحصارک ولسوالۍ ګیرکړه چي دجلال آبادښاردروازه بلل کیږي اودننګرهارشورى بې له کومه مقاومته ماته سوه چي په لس ګونوټانګان اوتوپونه اونورفوځي وسائل داطالبانو اسلامي تحریک ته په لاس ورغلل.

په۹/۱۰/۱۹۹۶)کې دطالبانودپرمختګ په لړکې چي له یوې خواددوي نه ماتیدونک پرمختګ اوبل لورې ته په ټولپکسالارانوکې ددوی مذهبي سیاست چي خلک یې دجګړمارو له ملاتړڅخه په نفرت اوویره کې را وستي وو نودا اثر وچي ځوک ورته دټینګې نه و ، همدامهال چي نوردننګرهارولایت دسکوت په حالت کې وونوښاغلی حاجی عبدالقدیر دننګرهاروالي سره دملګرى محمدزمانه چي دنوموړي ولایت هوائى ډګرمسئول و یوځای یې دټینګې په نیت پښې سپکې کړې او دپاکستان ولورته واوښت چي ځان لپاره یې داغوره کړه چي بس یوائځې ژوند غنیمت دي خوله حزب اسلامي وروسته دا دننګرها ولایت دمحاذملي تنظیم پورې مربوطې قواوي وي چي ختمې سوي.



اوپه(۱۱/۹/۱۹۹۶م) کې چي کله حاجي عبدالقدیراو محمدزمان له ننګرهارو روسته له څه هردوړڅخه پښې سپکې کړې لدې سره سم داسلامي تحریک ځواکونو دښاغلي ملابورجان اخند په نظامي مشري دننګرهاردعلم ،عرفان اوادب ښارته دامن سپینې لښکرى دسپینو جنډوسره داخل کړي اودنوموړي ولایت خلکو یې خورا تود هرکلي وکړ. ننګرهارچي په هیوادکې دنوروولایتوڅخه دعرفان اوادب په ډګرکې ځانګړى مقام لري چي دسترو علمي ،سیاسي ،جهادي اوادبي څیروڅخه هروخت برخمندوي او په همدې لړکې یې داوسني شاعرانو اولیکوالانو په بې ساري ډول دننګ ،خپلواکي اوجهاد شاعرانه سنګر تود ساتل دهیریدو وړ نه دي چي ددوی له راخوځیدو اوپارونو سره دلویې پکتیا ،کنړ ،قندهار ،زابل اوهلمند یوشمېراسلامپاله شاعران اولیکوالان یې هم په ننګ اوغورځنګ راوستل سول لکه دملالي یوې ټپې چي څومره ننګونه وکړه(۱) . 

[1] (دننګرهارشاعرانه جهادته موخکه څه پاملرنه وکړه چي په اوسني صلیبي استعماراو استثمارکې یې بې ساري ژبنی جهاد ترسرکړ ،چي دانګریزانو دیرغل په وړاندې یې په اولس کې دخپلواکی اوازادی یوسترا حساس راوپاراوو ددوی کلني مشاعري دې تل ژوندي وي.)

## ننګرهار او نورو ختیځو ولایاتو په لور

اوپه( ۱۳ /۹ /۱۹۹۶)کې دطالبانو اسلامي لښکرو خپل پرمختګ ته دوام ورکړ چې غوښتل یې دپلازمېنې کابل شا او خوا اطراف په خپله ولکه کې راولي تر څو کابل دلویو لارو لخوا محاصره او بیا فتحه کړي نوداوو چې ددوی اسلامي لښکرو دلغمان ولایت په لوري مخه کړه او دڅه مقاومته وروسته یې دلغمان ولایت هم فتحه کړی .

اوپه( ۹/ ۱۴ /۱۹۹۶)کې یې دپرمختګ لړۍ دکونړولایت ته ورسیده چې دې برياوو دطالبانو مخالفین نورهم په ویراوډارکې واچول چې له روسانو او ایرانیانو څخه یې دښکاره همکارۍ غوښتنه وکړه چې دطالبانو اسلامي تحریک یې دپاکستان له لوري وبللو ،خوطالبانو ددوی تبلیغاتوته کومه توجه ونکړه چې دکونړولایت یې په پوره ډول فتحه کړي او نوریې دکابل په لورخپلو نظامي لښکروته دتیارسي امروکړ.



اوپه( ۹/ ۲۵ /۱۹۹۶)م کال کې چې کله دپکتیا،پکتیکا،ننګرهاراوکنړولایتونه فتحه سودحزبی اسلامي وروستي مرکز اودنوموړي تنظیم پاته ځواکونه دسروبی ته رانقل سوچې دکابل مربوطه ولسوالي وه په همدې ولسوالي کې دحزب سترجنګي قومندانان لکه :زرداد ،قلم اوچمن محکم جنګي مرکزونه وو چې له دې ځایه دکابل له واکمنو سره دمرکزیه ډول جګیدل ،خوهمدلته یې دټوپکسالارانو ډیرلوي لوي ځنځیرونه چې دمحصول په نامه یې جوړکړي وو له عاموخلکو څخه په زور اوجبرنقدي او وسائل اخیستل تردې پاتکونوپه امن اوعزت تیریدل یوه ناشوني خبره وه چې نړیوال مطبوعاتي رسنیو ددې پاتکونو خورا سترستر واقعتونه په سرلیکونو کې خپرول چې یوله هغه څخه دښاغلي زارداد دپاتک سپي وو داسپي حیوان نه بلکي انسانان وو چې چابه پیسي یامال نه ورکاو ،نوانساني سپوبه هغه سړي داړلو اوخوړلوپه همدې تور دسپومشرښاغلي زارداد له هیواده څخه وتښتیدي او اوس په غربي هیواد(   ) کې اسیردي چې له انګریزانو څخه هم دخپل جرم سزا ویني اوداسي ګمان هم کیږي چې دنوي کورني جګړي لپاره به یې ساتلي وي ،خوکله چې دطالبانولښکري دسروبی په لورحرکت وکړ له لږمزاهمت وروسته دسروبی ولسوالي دطالبان په لاس ورغله اودکابل اوحزب ډلي په تیښته/بریالي سوي،خوتولی سقېله او خفییفه سلاوي پاته سوي چې هغه دطالبانولاس ته ورغلي .

## دملا بورجان اخند شهادت او دکابل فتحه

اوپه( ۱۹۹۶/۲۶/۹)دطالبانو قواوی دپول چرخي منطقې ته وړاندی سوې او دطالبانو دعسکرو یو لوی مشهور مشر ملا بورجان په شهادت ورسېدی دي دکابل دفتحي سنر اتل او شهید بلل کیږي چي همدي سره نور ددښمن دمقاومت کړي یوه په بله پسي ماته شوه او داسلامي لښکرو دننوتلو بهیر دکابل ښار ته پیل کړ.



## دسهار څرک اودازادۍ پړک په کابل کې

اوپه( ۱۹۹۶/۲۷/۹)کې وروسته له څه بدلون او تلفاتو دطالبانو لښکري دکابل ښار(پلازمېنې ته داخلې سوې چي دتکبیر ازانګو یې دکابل غرونو او ښاري فضاته نوی رنګ لورولو او له بلې لورې کابلي اولس ځلمی، جنګی،بدااوماشومانو چي دځوکلنو جنګځپلو ،ظلمونو او خودسرو اکمنیو ډیر زوروليې اودردولي و دطالبانو سپینې لښکري یې د سروګلونو په وړاندې کولو سره هرکلي کولې چي دبامونو او پارتمانونو له څوکو څخه به یې دګلونو په ګیډیو دښار په لوري بدرګه کول او دکابل تولە فضادښه راغلاست زمزمو او دتکبیر چیغو اخیستي وه ،نوره دویراو ظلم کډه دشمال غرونو ته په یوه مایوسه او پښېمانه اندازکې تولیدله اودښار چاپیریال دامن په لښکروسره دیوې سولیزې راتلونکي زیري خپرول شپه په فتوحاتو سرته ورسیده دښارتولي لاري اودولتي ودانی په یوه حیرانونکي وقاراو بریاسره سپینو لښکرو په واکې اخستي وي ،خودسپید وداغ په پړکیدو سره دمذهبي لښکرواذانونوکابلي اولس ته دمدني خاطراتو نوي اوسپیڅلي احساس ور یاد او انځورول داسي ښکاریدا تابه ویل دهرواټ په وره کې بلال رض دالهي فرمان راغوندولو لپاره بلنه ورکوي شپین سهار،سپیني لښکری ،سپیني جنډې اودکابل جنتیز ښار خورایوه له امنه ډکه فضااو ښکلا لورولە چي دا په کابل کې دامن لومړی سهار بلل کیدی دظلم ،وحشت ،بربریت تخریب ځای دامن اوسوکالۍ اوضاع راغلي وه ،دګلیمجم،توپکماروا و وحشي رندګانو په ځای مځکني اسلامپاله پریشتي راغوځیدلي وي.همدا وچي سهار له الهی لمانځنې وروسته کابلي اولس

دامیرالمؤمنین دبریا، بخښنی او امن پیغامونه خپرید و چي په دې شعارو سره زمزمه کیدلو:

(واخله ذلفقارلاس کې » سپورشه په دلدل باندې ! وطالبه ګرانه » پام کوه کابل باندې »)

طالبانو خپلو بریاو ته ادامه ورکړه چي دبګرام هوائی ډګرپه شمول یې دکابل ټول مربوطه سیمي په واکی واخېستي اوبیایې دښمن پسي تعقیب کړ چي دپروان ولایت په شمول یې ترپنجشیر اوسالنګ درې جبل سراج پوري دښمن وځغلاوو.

اوپه همدې مهال طالبانو وغښتل چي خپله اداري نظام دپلازمېنې په نیولوسره په ښووروي چي



دهیواد ریاستي تشکیلات او اداري نظام جرړي له کابل ځخه را پیل کړي ځودیومنظم حکومت چوکاټ جوړسي چي دښاغلی امیرالمؤمنین له لوري یوفرمان صادر سوچي دهیواد په سطحه یو شپږ کسیزه شوری' اعلان سوه په دې کې مرحوم ملامحمدرباني اخندیې دتیررباني په ځای خپل نائب وټاکلوچي دهمدې شپږکسیزی شوري' رئیس بلل کیدو او دپاچاپه ګدی (ارګ مانی) کې به کښېناستلو بس له همدې ځای دهیواد اداري نظام پیل سو نور داخله، خارجه او دفاع ... وزارتونه هم فعال شو.

خوطالبانوترهرڅه مخکې دبین الملل له دفترد کمونستي نظام داتخباراتي شبکي پیاوړي خادم اودخلک دیموکراتیک ګوندمشردکمونستي دوري وروستي واکمن ښاغلي ډاکټرنجیب الله راوایستي دارګ په څلورلاري کې دعام محضرپه وړاندې اعدام کړ داچي اوس ځیني سرچني دده مړینه دقانون اومحکمي پرته بولي نوپه دې اړه دې دهرات دڅلیرویشت زره ډلئزو شهیدانو دشهادت اسنادوته مراجعه وشي چي اصل قاتل اولامل څوک وو ؟ دچاپه امروژل شول ؟ اوپه دې اړه ښاغلي حکمتیارصیب هم یوه سندپانه خپره کړي اولیکي چي دروسانو اوببرک ورته دبس او ارام امرهم ورته کړي، خونوموړي بیاهم دژولو شمیره تر۲۴۰۰۰زره لانه وه رسولي.



اوپه( ۹/ ۲۸/ ۱۹۹۶) کال کې طالبانو دشمالي افغانستان په لورد خپلو فتوحات لړۍ جاري وساتله تالوکان چاریکار او مربوطه سیمې یې هم ونیولې او دپنجشیر او جبل سراج ددرې خولې ته ورسیدل چې داخورا ستراتیژیک او فوځي موقیعت وو چې همداداحمدشاه مسعودیوه ټینګه مورچه اودتشکیلاتو مرکز وو.



اوپه( ۱۰/۱۰ /۱۹۹۶)کې دشمال له لږکیواقلیوتونو څخه کوم چې په نوموړو اقلیتونو کې منفور اشخاص وو دایران اوروسیې په ځانګړې څارنه سره دقومونو دبلتون اوتوکمیزو شخړو په موخه یوه پراخه جګړه ماره توکمیزه اتحادیه جوړه کړه چې په هغه کې رباني اومسعودله تاجکي توکم څخه ،دوستم له ازبکي توکم څخه اوعبدالکریم خلیلی له هزارګي توکم څخه راغونډ کړل اوددوي په مینځ کې یې پخواني رقابتونو اوقتلونو ته دخپلو خاص هدفونو لپاره چې دایران ،هند او روسیې ګټې په کې نغښتې سره یوځای اودشمالي اتحاد په نوم یې نوموړې اتحادیه اعلان کړه اوطالبان یې دامریکا راپارولي تحریک بللو چې دایې دپښتني غورځنګ یوسازش اودلږکیو په وړاندې دښمنان ګڼل ،خودایوه دفاعي اتحادیه بلل کیده چې ددفاعي چارو مشریې رشیددوستم په غاړه ورکړه ځکه چې دظلم اوانسان وژني په ډګرکې یې سارنه وو ،خومقابل لوري ته طالبانو اعلان وکړچې الله پاک ډیررحیم اوعادل ذات دي چې خبیث اوطیب سره بیله وي زموږ دافغانستان اصلی دښمنان یې له ملت څخه بیل اودتوپک شپېلۍ ته یې برابر کړل ...زمونږ هدف دجګړه مارانو وطن پروشانو اوراهزنانو په وړاندي ډاګیزدي.



اوپه( ۱۲/۱۰ /۱۹۹۶)کال کې دایراني رونیي اوهندي تبلیغاتي کړیو په منځ دشمال په اولس کې دومره تبلیغ وسو چې طالبان دامریکا اوپاکستان فوځونه دي هسي یې دهیواد کلتوري جامې اغوستي دي اوغواړي چې لږکي توکمونو لکه تاجک،ازبک ،هزاره اونورورته قومونه دپښتنو دواکمني قرباني کړي ،اوپاکستان غواړ ي چې دهیواد نورخاوره هم قبضه کړي ،خوپه همدي بې بنیاداوپوچو تبلیغاتو یې یوشمېرتوپکوال خطاستل چې دهمدې جزبې په لرلوسره یې داسلامي تحریک په ځواکونو مقابل بریدوکړچې په نتیجه کې یې بیرته مفتوحه سیمې لکه جبل سراج ، چاریکاراوبګرام هوائی اډه په( ۱۰/۱۸ /۱۹۹۶) له طالبانو څخه ددویم ځل لپاره ونیولي ،خوځایې

خلکو ددوي دتبليغاتو په يادلرلو سره طالبانو ته دشک په سترګه کتل ليکن دوخت په تيرېدو سره ورته جوته سوه چي داخودهمدې هيواد اصلي بچان دي چي مذهبي رينښي ټېنګه وي اوهم هيواد دلړکيوله ګوانښ څخه چي دپردو په لمسون دهيواد تجزيه ده خوندي ساتي چي بيرته يولوي افغانستان جوړونکي دي کوم قومي ، سميز اوتوکمېزفلانونه نلري اودا داسي ښکاري لکه زموږ چي له خپل مذهب اودين سره جګړه وي بلکي طالبان زموږ ددين اصلي سرمايه ده ، نوددې پچواوبي بنياد تبليغاتو په راڅرګند يدوسره دهيواد دشمالي ولاياتو مسلمان اولس پوه سو چي دايران هند اوروسي جاسوسانو دورور وژني جګړه پيل کړي ده اوزموږ د مذهبي لارويانو داسلامي غورځنګ مخه نيول دي دحقيقت له معلوميدلو وروسته دطالبانو پرمختګ خورا ګړندي سو .



اوپه( ۱۰/۲۴/ ۱۹۹۶)کی طالبانوداپرشاتګ يوتاپتيک اوخدعة (چم) وبللوچي ترڅودوي له سرسبزو سيموڅخه دګرته راووځي چي جاني اومالي تاوان دوښمن ته واوړي اوله بلې خواهغه تبليغات چي دوي اولس ته کول چي طالبان دملت مذهبي ځواکونه ندې داد ظاهرشاه او لخوراپارول سوي دي خو،لدې شاتګ سره داتولې ددوستم اودمسعودقواوی دحسين کوټ اوکاريزميرولسوالۍ ته ورسيدلي اوطالبانوورو دسړک غاړی دوښمن ته پرېښودلی چي بلاخره په پينځلس کلوميټړی کې دکابل ښنډې ته طالبانو يودفاعي خط جوړ کړ اونوريې بيرته خپلي لښکرپه متقابل بريدسره تيارسي کړي .



اوپه(۱۹۹۷/۱/۱۷)کی طالبانو دهيواددمفتوحه سيمو له نظامي قطعوڅخه چي جهادي مدرسي په کې شاملي وي ديوعاجل تيارسي امر وروسته خپلي لښکروته توصيه وکړي چي دشريعت محمدي خلاف به يوعمل هم نه ترسرکيږي اودلښکرهرفردپه دې مکلف دي چي په ځان کې نبوي سنت لازمي عملي کړي ترڅو زمونږ فتوحات بې نتبجي اوفائد ونه ګرزي دهمدې سره سم ديوځل بيا سالنګ اوتکبيرپه چيغوسره خپل متقابل بريد ته دوام ورکړ،خوپرمختګ يې دومره بيړني اوتکني چي يوخودوښمن ته سخت مالی اوجاني زيان ورواړاوو اوله بلې لوريې دشمالي اتحاد په نوم اداره داسي درې ورې کړه چي رباني خپله چوکي چي ځان يې دهيواد پاچاګڼلوله ځان سره ګرزوله اوهيڅ دامطمينان ځای يې نه درلودچي بيا وروسته يې مزارته نقل کړه ،خوطالبانوله خپلې بريا سره جوخت

دراتلونکي لپاره خپلې مورچلې محکمې کولې او هغه تړلي له لاسه ورکړي سيمې يې بيرته په ديرګړندي ډول لاس ته راوړلې او د سالنګ خولې ته يې ځان ورساوو.



او په ( ۵/۲۵ /۱۹۹۷ ) ميلادي کال کی پاکستان دطالبانواسلامي امارت په رسميت وپيژندی اوطالبانوته يې دسفارت اوکونسلګريو اجازت ورکړه اودغه لومړی حکومت وه په نړی کی چی دطالبانوحکومت ئی په رسميت وپيژندی .

او په ( ۵/۲۶ /۱۹۹۷ ) ميلادي کال کی دسعودی عرب حکومت دطالبان اسلامي امارت ديواسلامي حکومت په توګه په رسميت وپيژندي اوطالبانوته يې دسفارت اوکونسلګريو اجازه ورکړه.



دغه ډول د متحده عرب امارات حکومت په۱۹۹۷ ميلادي کال کی د طالبانه اسلامي حکومت په رسميت وه پيژندی او په (۲۲/۹/ ۲۰۰۱) ميلادي کال کی ئی بيرته خپل رسميت واخستل چي انګريزي او امريکائی لښکرو دصليبي جګړی اعلان وکړ چي جګړه دوه اړخه لري يابه دصليبي لښکروسره ملګري کيږي اويابه دمخالف لوري (اسلامي امارت اوالقاعده ) په خوا دريږي ،خودجګړې لومړی يرغل عراق اوافغانستان دي ، عربي شهزاده ګان ډيرپه قدرت مين او عصري مزاج اشخاص دي ځکه يې نه غوښتل چي داسلامي حکومتونو اونهضتونو سره ملګري شي اوخپل قدرت له لاسه ورکړي .



او په ( ۵/۲۷ /۱۹۹۷ ) دطالبانو اوکمونستي جنرال مالک ترمينځ سخت اختلافات راوپاريدل چي په همغه ورځ په شمال کې دعامه وژني توره شپه پيل شوه دا توطئی کې روس ايران او غربي ځواکونه ټول شريک وو چي په يوه دستوري ډول دزياتو نقدي او غوړو وعدو په بدل کې ترسره شوه ، داپيښه په داسي حال کې واقع شوه چي مخکي طالبانو دازبک له کمونستي ملېشو سره دصلحي اوتړون له مخې کړي وه ، خودومره وحشتناکه ،له دردونو اوظلم ډکه وه چي تعبيرکول يې هم دانساني رحم او حوصلې له زغملو وتلي ده هغه په داسي حال کې دجنرال مالک اوطالبانو تړون ديوې سوليز راتلونکي لپاره وشو چي مالک برعکس خپل تعهد مات کړ اودخپلو سپکواودرنو

اسلحو خولي يې دطالبانو په لور راوګرزولي او دطالبانو مشران يې په كومه دوكه دځان سره اسيران كړل ترڅوقومانده ماتې شوه خو دځايې مجاهدينو له لورې سخت مقاومت شروع شو چې دزړګي نومي قومندان په نامه دازبک ملېشودېر توپکوال يې ترځان مخكې كړل اوطالبانوته يې دهمداسې غبرګون چيغې وهلې چې دا دوستان نه بلكې غداردښمن دي .دطالبانو دپوځ مشران لكه مولوي احسان الله احسان چې له دوى سره په همدې جګړه كې شهيدكړل شو اوملاعبدالرزاق اخند ددوي په ولكه كې وو چې بيا وروسته راخوشي شو پاته زياشمېرطالبان يې ژوندي اسيران كړل چې وروسته يې دليلي په دښته كې په عامه ډول ژوندي ترخاورلاندي كړل اويوشمېرنور بيا مقاومت وكړ دكندوز اوبغلان ولايتونو ته مخه كړه اوهلته يې خپل سنګرونه دسرونو په بدل اودځايي پښتنوپه مرسته وساتل . په دا ره لانديني خاطره او واقعه كتلاى شي .



# دافغانانواسلامي لښكركشي اويوه ترخه خاطره

د مزار شريف فتح او د جنرال مالک غداري

كله چې طالبانو كابل فتح كړ او د ملل متحد و دفتر ته ننوتل نو هلته د لكونو افغانانو قاتل او د كمونيستانو راسته لاس ډاكټر نجيب الله او دهغه ورور ناست ؤ، طالبانو دواړه اعدام كړل او په كابل كې د ترافيكو له چوترې سره راوځړول او دوئ ټوله ورځ راځړېدل بيا طالبانو دوئ خپلو خپلوانو ته وسپارل چې هغوئ پكتيا ته يووړل طالبانو بل خط غور ماچ ؤ دا سيمه وفارياب ولايت ته يو مخ نژدې په فارياب كې زياتره ازبكان دي څه لږ پښتانه هم پكې سته پر دې خوا د طالبانو په مخالفينو كې د سرسرې د ازبكانو قومندان جنرال عبد المالک او ګل محمد پهلوان ؤ، دلته هم تر ډيرې مودې مخامخ جګړې كېدلې خو دا سيمه فتح نه شوه، په همدې مهال عبد المالک د طالبانو د بهرنيو چارو وزير ملا محمد غوث د مذا كراتو بلنه وركړه دا وخت د هرات والي ملا عبد الرزاق اخند ته هم ؤ جنرال مالک وطالبانو ته دا خبره وړاندې كړه چې مونږ جګړه بنده وو او دواړه لوري به په يو والي سره د عبد الرشيد دوستم سره جګړه وكړو كله چې د شمال ټول خنډونه د عبد الرشيد دوستم سره جګړه وكړو كله چې د شمال ټول خنډونه لرې سي نو بيا به د امير المؤمنين په مشر تابه كې حكومت جوړ كړو له دې پرته ده څه نورې ژمنې هم ورسره وكړې طالبانو دا خبره ومنله او جګړه يې ودروله، عبد المالک سپينه پګړۍ پر سر ووهله او د طالبانو د سترو سترو قومندانانو سره عكسونه هم واخيستو اوس طالبانو او ازبكانو په ګډه پرفارياب ورمخته شول جنرال مالک د طالبانو لپاره يو

قول اوردو ځانګړی کړ چې د ښار په یو ګوټ کې ؤ، جنرال مالک یو داسې چل وچلاوی چې طالبان په پوه هم نه شول او ده په یوه غشي دوه ښکاره کولو هڅې وکړې چې پکې دوئ تر یو څه حده بریالي هم شو، د فاریاب قول اوردوداسي ځای ؤ، چې ورڅخه څوک هم روغ نه شوای تللای او همداسې وسول کله چې ده خپل پلان تر سره کړنو په دغه قول اوردو کې هیڅ ژوندئ سړی نه دی پاته شوی، څوک یې ووژل او څوک یې بندیان کړ، طالبان له راتلونکی مصیبته ناخبره د جنرال مالک پر ژمنه یقین کوونکی ؤ، او د طالبان تشکیلونه هم زیاتره وهمدغه سېمو ته کېدل.

او تورن اسماعیل چې دهرات والي او د طالبانو کلک دښمن ؤ په دغه ورځو کې ایران دئ هم د جنرال مالک د همکاری لپاره راولیږی نو جنرال مالک پر ځان د طالبانو باورزیاتولو لپاره تورن اسماعیل او دهغه ټول ملګري وطالبانو ته وسپارل طالبانو دوی ټول بندیان کړل وروسته تورن اسماعیل په تښتېدو کې کامیاب شو او ایران ته ولاړی، د طالبانو او جنرال مالک فوځ وشبرغان ته ورننواتی، او په هغه بله ورځ په فاتحانه توګه ومزار شریف ته ورننوتل کله چې طالبان مزار شریف ته ورسېدل نو له ټولو سېمو څخه د طالبانو تشکیلونه وشبرغان ته پیل شول، د الوتکو او موټرو په وسیله د طالبانو کاروانونه د شبرغان ښار پر لور روان شو او په دوې درې ورځې کې نژدې لس زره طالبان په شبر غان کې غونډ کړل شول، زه دغه وخت د پاکستان دویش سره نژدې په سپین بولدک ولسوالی کې وم زما تشکیل هم شبرغان ته وشو په همدغه ورځ ما سفر پیل کړی او هرات ته ورسېدم یوه شپه مې په هرات کې تیره کړه او دابله ورځ دبادغیس پر لور روان شوم ماسپښین بادغیس ته ورسېدم په بادغیس کې د ملا برادر سره زما ملاقات وشو هغه هم شبرغان ته روان ؤ، امیر المؤمنین دده تشکیل شبرغان ته وکړ تر څو دهغه د نظم څارنه وکړی، اوس مونږ د دواړو سفر پیل کړی او ماښام نژدې مونږ فاریاب ته ورسېدو، په فاریاب کې د جنرال عبدالمالک د استقبال لپاره ولاړ ؤ، او یو مولوي صاحب زمونږ تر جماني کوله، د جنرال عبدالمالک ورور مونږ ته ښه راغلی ووایو او ویې ویل چې مونږ له ماسپښین څخه ستاسو په انتظار ؤ، مونږ ته خبر راکول شوی ؤ چې تاسو راروان یاست هغه مونږ د ځان سره داسې ځای ته بوتلو چېرې چې نور طالبان هم موجود ؤ ملا برادر اخند له طالبانو څخه پوښتنه وکړه چې دلته د طالبانو هیڅ مرکز نسته، او مونږ هم دوی بازار ته نه پرېږدي، ملا برادر اخند ډیر تجربه ناک سړی ؤ هغه د حالاتو په څارکولو وویل چې ماته دا هر څه شکمن معلومېږي، کله چې شپه شوه د جنرال عبدالمالک ورور راغی او وې ویل چې تاسو به غمه ویده سئ د شپې زمونږ پیره داران ستاسو پیر کوي ملابرادر په ځواب کې ورته وویل چې هیڅکله نه مونږ خپله پیره پخپله کؤو د شپې طالبانو پیره وکړه، سهار له وخته مونږ له فاریاب څخه د شبرغان پر لور

روان شو او غرمه مهال شبرغان ته ورسېدو هلته مولوي عبدالمنان حنفي موجود ؤ، هغه یو ستر قول اوردو خپل مرکز جوړ کړی ؤ مونږ یې قول اوردو د ځان سره بوتلو له لمانځه ملا برادر اخوند د شورى اجلاس راوغوښت ټول قومندانان راغونډ شول ﴿ په مزار شریف کې دا وخت ملا عبدالرازق، ملاغوث او منصور صاحب هم ؤ ﴾ شورى مشوره وکړه چې یو هیئت دې مزار شریف ته ورسي. او د ملا عبدالرازق او ملا غوث اخند سره دې پر موجوده حالاتو خبره وکړي په شپه کې دې شبرغان ته بیرته راسي نژدې ماخیګر پنځه بجې دغه هیئت مزار شریف ته راون شو چې پکې له ما پرته پنځه شپږ ملګري ؤ، چې پکې ملا برادر، مولوي عبدالمنان، حنفي او مولوي سید محمد بادغیس وال هم برخه وال ؤ، مونږ مزار شریف ته راون سؤو او د ټولو اراده وه چې د شپې بیرته شبرغان ته راتلل دي کله چې مونږ د شبرغان له لومړي زنځیر څخه تیر شو نو د ملا برادر اخند موټر ټایرپنچر شو، مونږ ټول له موټرونو راشوه شو ودرېدلو حنفي صاحب مونږ ته وویل چې تاسو سوکه سوکه ﴿ ورو، ورو ﴾ پرمخ درځي مونږ په تاسو پسې در رسېږو، کله چې مونږ څه مخته ولاړو نو د سړک پرغاړه د ازبکو یوه وسله واله ډله ولاړه وه داسې معلومېدل لکه چې دوئ د یوچا په انتظار وي مونږ تر دوئ تیر شوو خو دوئ مونږ ته څه نه دي ویلي، او نه مونږ کومه پوښتنه ځینې وکړه، چمتال ته چې ورسېدو مونږ موټر ودروی دنورو ملګرو انتظار مو کاوی له ډیر انتظار وروسته ملګري رانه غلو نو ځینو ملګرو وویل چې مزارته ځو هلته به ددوئ انتظار وکړو خو زیاتره ملګرو پر همدې ځای باندې د انتظار کولو ټینګار کاوی په همدې انتظار کې ؤ چې د شبرغان له لوري موټر راروان ښکاره شو کله چې نژدې راغی نو معلومه شوه چې دا زمونږ ملګري نه بلکه د کوم بل چا بائ فور دی او دا موټر ډیر په بیړه تیر شو کله چې دا موټر د بلخ و دروازې ته ورسېدی نو وربانډې ډزې پیل شوې مونږ ټول پر خپلو خپلو ځایونو په احتیاط سره کښېناستو، نژدې تر پنځو د قیقو پورې ډزې کېدلې په دې مهال برادر اخند او نور ملګري هم راورسېدو نو مونږ له دوی څخه د ځنډ وجه وپوښتله نو دوئ وویل ﴿ والله یعلم وانتم لا تعلمون ﴾ مونږ ودوئ ته د سپین موټر په اړه وویل چې د پرېشاني هیڅ خبره نه ده خدای به خیر کړي، مونږ بیا خپل سفر پیل کړی نژدې دوه کیلو میتره منزل مو کړئ ؤ چې پر سړک وسله وال خلک ولاړ ؤ مونږ په بیړه له موټرونو د سلاح سره راشوه شوو او ومقابلې ته چمتو شو زموږ د ټولو دا خیال ؤ چې دښمن دی او زمونږ لپاره ولاړ دی حنفي صاحب د خبرې لپاره ورمخته شو هغه ټول پښتانه ؤ دا د دولت آباد سېمه وه او خلک پر سړک ولاړ ؤ دا د قومندان پهلوان کسان ؤ، د حنفي صاحب خبرې اترې د پهلوان سره وسوې نو هغه وویل که تاسو مزار شریف ته ځئ نو هیڅ کله مه ځئ ځکه چې جنرال مالک و طالبانو ته دوکه ورکړې ده او ټوله مزاره یې ونیوله په دې وخت کې ټول طالبان د جنرال

عبدالمالک د فوځ مقابله کوي مزار شریف ته تلونکې ټولې لارې محاصره کړې دي تاسو مخته بالکل مه ځئ.

د ملګرو دا خیال شو چې شاید دا خلک د روغ وائي مونږ ورته وویل چې مونږ هرومرو پر مخ ځو دوئ مونږ ته ډیرې زارۍ وکړې چې مونږ مخته نه شو ولاړ او وې ویل چې مونږ ستاسره مخلصین یو تاسو زمونږ په خبره باورور کړئ، پهلوان د سړک په مینځ کې ودرېدی او قسمونه یې اخیستل چې زه اوس له دې خوا راغلم او ربنتیا وایم هلته یې ملا عبدالرزاق او ملا غوث اخند بندیان کړي دي، اوله هر طرفه خلک طالبان وژني زمونږ په خبره یقین وکړئ کله چې قسمونه واخیستو او زارۍ یې وکړې نو ملګرو مشوره وکړه چې څه کول پکار دي بیا دغه ځایي قومندانو وویل چې تاسو زما سره راځئ دلته نژدې یو کلی دی هلته د پښتنو قومندانان اختر او غوث الدین تاسو ته لار ښودنه کولای سي زه د سړک وغاړې ته شوم او خپله مخابره مې خلاصه کړه خودچا سره تماس نه نیول کېدی د شپې تر دوولسو بجو پر همدغه سړک ولاړ وم نه کوم موټر تیر شو او نه مو کوم خبر لاس ته راوړی مونږ د اختر قومندان کورته ور روان شو نو نژدې له لسو دقیقو سفر وروسته مونږ دده کورته وروړسېدو هغه ډیر په جوش او مینه مونږ ته ښه راغلي ووایو او مونږ یې ډاډه هم کړو چې ان شاء الله مونږ به تاسو تر خپل وسه خوندي کړو، شپه په همدغه فکر کې تیره شوه سهار زمونږ خپلې مخابرې خلاصې کړې نو حالات معلوم شول چې زمونږ له شبرغان څخه له راتګ وروسته ازبکانو پر شبرغان حمله کړې وه طالبان په دغه سیمه کې نا آشنا هم ؤ او په نوي تشکیلونو کې په راتلونکیو طالبانو سره سلاح هم نه وه دوه درې ځله طالبانو زمونږ سره د تماس نیولو هڅې وکړې ددوئ آوازونه هم زمونږ په مخابره کې راغلو خو بیا هم کوم تماس ونه نیول شو مونږ پوه شؤ چې کار خراب دی طالبانو د ازبکانو مقابله کوله خو د عبدالمالک فوځ بې سلاح طالبان ونیول او ډیر په مقابله کې شهیدان سول او په هم هغه قول اوردو کې په موجود طالبانو باندې په ټانګو برید وکړ کوم طالبان چې ژوندي اسیران شول هغوئ ټول یې وروسته د لیلی دښت ته ولیږل او هلته دوه دوه سوه ودرول د ګولیو باران ورباندې وکړ په زرګونو طالبان یې داډول شهیدان کړل، او کوم چې پاته سول هغه یې په محبس کې بندیان کړل داغه رنګه په فاریاب کې موجود طالبانو باندې د ظلم انتهاء وکړه په ځاهانو کې طالبان واچول برسیره ورباندې ګولۍ وورولې او کوم طالبان چې په محبسونو کې واچول هغوئ له لوږې او تندې شهیدان شول.

## د دښت لیلي غم ځپلي پېښه

کوم طالبان چې له مزارې د غرونو پر لور ولاړ د ښمن په دوئ پسې شو او هغوی یې شهیدان کړل د شهید مولوي احسان الله سره ډیر طالبان یې ژوندي ونیول او ټول یې شهیدان کړل په کوم ځای کې

چې دوی شهیدان کړه د شادان تنګی په نوم مشهور دی دغه رنګه د مزارې هوائي ډګر سره نژدې څلويښت طالبان له تندې څو لاوه ښو او شهيدان شول.

دغه طالبان وروسته راوايستل شول، د ميمنې له محبس څخه طالبان راوايستو په څاهانو کې يې وغورځول وروسته چې کله طالبانو دغه سيمه فتح کړه نو له ډيرو څاهانو څخه د طالبانو شهيدانو هډونه راوايستل شول او کوم طالبان چې د شبرغان په محبس کې بنديان کړي ؤ هغه ټول يې د ليلى دښت ته په کشولو او وهلو بوتلو او هم هلته يې شهيدان کړه، دا سيمه دريګ ډيره لوی رېګن دښت ده دلته څلور لوی لوی څاهان هم شته طالبان به يې شهيدانول او په دې څاهانو کې به يې اچول تر دې چې دوه دوه سوه طالبان يې په يو قبر کې د فن کړه کوم طالبان چې په شبرغان کې د جګړې پر مهال شهيدان شول هغه يې هم په دغه دښت کې و غورځول او کوم طالبان چې په مزاره کې شهيدان شول يا په محبسونو کې شهيدان کړل شول هغه يې هم په دښتو کې وغورځول، لنډه دا چې د شمال هره کوڅه هر کلی او هر غر د طالبانو په وينو سور شو او دښمن دومره عام وژنه وکړه چې دده داخيال شو چې نورنو دپښتنو اسلامي لښکر کشي دطاغوت په وړاندې هيڅ هم نه شي کولای او په ټوله نړۍ کې داتبصرې پيل شوې چې د طالبانو د تحريک ساه ووتله احمدشاه مسعود هم ددې خبرې ښکار شو پخپل پوره توان سره يې د کابل د نيولو خوب په سترګو کې راخيستی پربګرام يې حمله وکړه خو دوئ په زرګونو هڅو کولو سره پخپل مقصود کې بريالي نه شوو امير المؤمنين له قندهار څخه پخپله بګرام ته راغلی او طالبانو ته يې لار ښودنه وکړه، طالبان د دښمن مخته فولاد شول په کلکه يې د دښمن مقابله وکړه او دښمن په خپل زخم ځټلو ځټلو کورته وګرزېدی دغه صورت حال ته په دغه کتو چې طالبان کمزوري دي ايران د خنډ اچونې هڅې وکړې خو الله رب العزت د ايرانيانو په زړونو کې د طالبانو داسې ويره واچوله چې دوئ ته پر مخ راتلو جرأت ونه شو دښمن په خپلو مجلسونو کې يوازې تبصرې کوونکي پاته شو چې طالبان به نن ځي صبا به ځي خو الله رب العزت د مخالفينو د ارادو پرضد دهر سنګر دفاع په پاته شويو څه ناڅه طالبانو وکړه طالبانو حالات قابو کړو.

خودپورته ظلمونولړۍ لاپای ته نه ده رسيدلي دنړۍ ټول جابراو کافرقوتونه په دوی پسي سترې شوي دبرتانيي اوامريکاناولي دوزخي ځواکونه هم دطالبانوپه وژنه بنداوتعذيب باندي خپل تعصب اوکينه سړه کړه ،خوبايدووايوچي دطالبانو داسلامي لښکرکشۍ موخه يقني يوالهی نصرت اوپه نړۍ کې دنوی بدلون يوه نمونه ده جګړه چل او فريب ده کله به دښمن سوبه وړي او کله به غازيان روان مقاومت به يوځل بيابرى راوړي ،خوکيدای شي حالات به بدل وي.

نړیواله پښتون وژنه به یووخت په بریا پاته رسیږي نه به دانسل ختم شي اونه به یې اسلامي سرشیندني عبث ځی ددیني اوعصري علوموپوهانبغه لیکوال مفتي ابولبابه صاحب په خپل کتاب (دجال څوک ؟چیري؟ اوکله؟) چي عنایت الله کاکړژباړلي دي دې کې لیکي چي پښتانه دنړی په کوره کې هغه قوم دي چي اویازره اسلامي لښکریانو په درلودلوسره به له خراسان یااوسني افغانستان څخه دهندپه لور لښکرکشي کوي اوبالاخره به دمهدي لښکروسره یوځای دنړی وسترطاغوت اودجالانوته ماتي ورکوي .هغه نبني نښاني چي حدیثوذکرشوي هغه یې دطالبانو داصافواوعادات په مقائسه سره ورته بللی دي.

اوپه ۱۹۹۸م کال کی طالبانوبیرته هغه سیمی ونیولی چی دلاس ئی وتلی وی لکه فاریاب اومزارشریف شبرغان اوخپل دښمن ته یې هم ډیرښه سبق ورکړ چي دبیاتکرار هڅه یې ونه کړه دوستم اومالک خپلو کمونستي هیوادونه ته فناه یووړله.



اوپه ۱۹۹۹/ ۲۰۰۰کلنو ترپایه دطالبانونفوذپراخ سو دهیواد ۹۹٪ فصیده خاوره یې ترخپلي ولکي او واکمنی راوستله دبامیان اوطالقان اونورټول ولایتونه ئی یوپه بل پسې ونیول یواځی دپنجشیریوه دره اودبدخشان کمه سیمه پاته وه چي دصلیبي جګړي سکروټي ترهیواد راورسیدلي دانګریزانو اوامریکایانو لښکرومداخله وکړه ترڅودشمال مقاومت سره مرسته وکړي اوبیرته یې دجګړي ډګرته راټیل وهل ،سره له دې خبرې چي دشمالي ټولوالي ځواکونو ،ه صلیبي ځواکوته شنه ایشاره ورکوله چي موږدرسره یو اوطالبانو ستاسوپه وړاندي دمقاومت هوډ نه لري ،خوپه همدې شپوورځو کې دشمالي ټولوالي سرمشرمسعود هم دپیدائی برید ښکاراو ووژل شو نودمسعودله وژل کیدوسره انګریزانو دصبر کاسه ډکه شوه دګاونډیانو په مرسته یې په هیواد باندي پوځي تیرییل کړ.

# دافغانستان په حریم نړیوال صلیبي یرغل اوموخي

کله چي دطالبانو په موټ دهیواد پنځه نوي ٪۹۵ فصیده خاوره داسلامي حکومت تر ولکي اوسلطي لاندي راغله ، نړیوال صلیبی اتحادیانو دتیرو سبقونو دبیاتکرار ویرې داوپتیله چي بس نور دخطر زنګ واشتهن اولندن ته مرګوني خوبونه ورونیني .

بیاکوم عمر راپاڅیدلي ؟اوبیاکوم ایوب توره له تیکي ایستلي ؟چي دصلیب دماتېدو شرنګایې له ورایه اورېدل کیږي !



دلته که له یوې لورې صلیبي امپراطوری داوږدې انتقامي ،اقتصادي اومذهبي جګړې تږې ځواکونه اومست پاپانو په غولونکي شعارونو دمرګ کډې ته رامرش کړې، خودشمال منفورو وطن فروشانو دتجزیې خیالونه د صلیبي ځواکونو په لاس د اسلامي خلافت له زواله وروسته، غرب ته پر ټولې نړۍ د برلاسۍ موقع په لاس ورغله،لکه څرنګه چي مخکي دې ته ورته واکمنانو داسلامي نظام دزوال لپاره کومې هڅي کړي وي دوی اسلامي خلافت ټوټې ټوټې کړ او په وړو وړو ملکونو ئې ووېشو، پاچایان، جنرالان او بې دینه واکمنان ئې پرې مسلط کړل، د دې مستعمراتو د فوځ جوړښت، سیاسي نظام او تعلیمي نصاب ئې داسې جوړ کړ چې له یوې خوا د دوی ګټې تأمین کړي او له بلې خوا اسلام ته د مسلمانانو د بیا ورګرځېدو او د اسلامي خلافت د احیاء مخه ونیسي، خو غرب له فکري خلا سره مخامخ وو، د مسیحیت مسخه شوی دین د دې جوګه نه وو چې د غرب د نوي نسل پوښتنو او غوښتنو ته ځواب وواییٔ څه دا چې محکوم ولسونه ئې منلو ته چمتو کړي، لا ډېره موده نه وه تېره شوې چې غرب د الحاد او دین دښمنۍ له څپانده طوفان سره مخامخ شو ، د غرب ځوان نسل د انجیل، کلیسا او پاپ وینا د حقیقت او علم خلاف موندله، د انساني ژوند له تنظیمه عاجز او د انسان پوښتنو ته له ځواب ویلو معذور. له دې دین نه د بغاوت بهیر پیل شو ، په بېلو بېلو پړاوونو کې ئې بېل بېل رنګونه غوره کړل، په پای کې د بغاوت دې بهیر د کمونیزم بڼه خپله کړه، چې دا هم د غرب له سیاسي، اقتصادي او اجتماعي جوړښت نه بغاوت وو او هم له دیني جوړښته او له انجیل، پاپ او کلیسا سره د مخالفت تونده څپه. د کمونیزم له ظهوره وروسته فکري مبارزه په دریو جبهو ووېشل شوه: له یوې خوا د

غرب او د غرب په غېږ کې د زېږېدلي کمونیزم ترمنځ، له بلې خوا د کمونیزم او اسلام ترمنځ او په دریېمې جبهې کې د غرب او اسلام ترمنځ، اسلامي امت په سیاسي محاذ کې د صلیبي ځواکونو په وړاندې ماتې خوړلې وه خو د فاتح ځواک دین او مذهب له دې عاجز وو چې اسلام ته ماتې ورکړي شي، کمونیزم داسې پړاو ته ورسېدو چې غرب ئې له مقابلې عاجز شو، هم په سیاسي او نظامي محاذ کې او هم په فکري محاذ کې، ټوله شرقي اروپا، د روسیې او چین په څېر دوه ستر ملکونه، چې نفوس ئې د امریکا او اروپا څو برابره دی، د جنوبي امریکا ګڼ شمېر ملکونه، ټوله مرکزي آسیا او د مصر، سوډان، عراق، سوریې او یمن په څېر اسلامي هېوادونه د کمونیزم لاس ته ورغلل. خو په اسلامي هېوادونو د کمونیزم سلطه همغسې وه لکه د غرب سلطه، چې یوازې نظامي، سیاسي او اقتصادي وه او له دې عاجز وو چې اسلام ته ماتې ورکړي شي. کمونیزم د اسلام په وړاندې ماتې وخوړه، د کمونیزم ستره اډه، شوروي اتحاد په افغانستان کې د ماتې په وجه په زوال محکومه شوه او د کمونیزم ټغر ټول شو. خو اسلامي امت په داسې دریځ کې نه وو چې له دې ستر‌ې برياً هغه ګټه ترلاسه کړي چې ورسره مناسب وه، برعکس د شوروي اتحاد له ماتې نه امریکا ته دا مجال په لاس ورغی چې د نړۍ د یوازني زبرځواک په توګه تبارز وکړي. او په دې سره مسیحیت د یوه فاتح ځواک د مذهب بڼه غوره کړه، نن مسیحیت په داسې موقعیت کې دی چې د امریکا، انګلستان، ایټالیا، استرالیا او کاناډا په څېر ګڼ شمېر هېوادونه ئې په واک کې دي، هغه ملکونه ورسره دي چې په اقتصادي، سیاسي او نظامي لحاظ د نړۍ په لوېې برخې یا مخامخ او یا په غیرمستقیمه توګه حکومت کوي، امکانات ئې پراخ، لاس ئې آزاد او د کار مجال ورته برابر، مسیحیت ته د خلکو د رااړولو لپاره هومره پراخ امکانات په واک کې لري چې د نړۍ په تاریخ کې نه مسیحیت او نه کوم بل دین ته په لاس ورغلي، خو سره له دې، ناکام دی او له دې عاجز چې د دې دین د منونکو دائره پراخه کړي، دا خو پرېږده حتی له دې عاجز دی چې له مسیحیت نه د خلکو د اوښتو مخه ونیسي، په غربي هېوادونو کې هر کال په سلګونو کلیساګانې تړل کېږي او پاتې ئې هم داسې چې د ګوتو په شمېر عمر خوړلي ئې لیدو ته زړه ښه کوي. دا په داسې حال کې چې واتیکان نږدې شپږ لکه مبلغین استخدام کړي، پراخ تبلیغاتي وسایل لري، د اجتماعي خدماتو تر پردې لاندې مسیحیت ته د خلکو د ترغیب لپاره ئې په زرګونو مراکز پرانستلي، د واتیکان د ادعا له مخې دوی په اته څلوېښت اسلامي هېوادو کې د خپلې خوښې داسې واکمنان مسلط کړي چې د دوی په امر هر څه کولو ته چمتو دي. او دا په داسې حال کې چې اسلام یتیم دی، پر اسلامي ملکونو ظالم، جابر، منافق او د پردیو په لاس مسلط شوي واکمنان حکومت کوي، د اسلام په لوري د بلنې هر خوځښت تر نورو د مخه د همدغو چارواکو

په لاس ځپل کېږي، پر افغانستان او عراق د صليبي ځواکونو ګډ برید او له دوی سره د اسلامي هېوادو د حکومتونو ښکاره ملاتړ او پټې ملګرتیا وښوده چې اسلامي امت څومره مظلوم او اسلام څومره یوازې دی؟؟!!

په افغانستان کې د شوروي اتحاد ماتې او نن په عراق او افغانستان کې اسلامي مقاومت او د هغه له ځپلو نه د غربي ځواکونو عجز او ناتواني اسلامي امت راویښ کړ، غرب د اسلامي امت له راویښېدو وېرېدلی، دا ویښتیا د خپلو استعماري ګټو لپاره ستر ګواښ ګڼي، اسلام ته د ځوان نسل د پراخ راتګ، په غربي نړۍ کې له محرف مسیحیت، پانګه وال اقتصادي نظام، بې هدفي او بې فرهنګي نه د صالح وګړو ژوره کرکه او د اسلام په لوري د دوی ورځ په ورځ پراخه رجوع؛ غربي استعمارګران سخت وېرولي، د مقابلې لپاره ئې ملاتړلې، پر افغانستان او عراق د دوی وحشیانه برید او دلته په پاتې کېدو د دوی د ټینګار اصلي وجه او موخه همدا ده. خو إن شاء الله دوی به په دې صلیبي جنګ کې همداسې له ماتې سره مخامخ کېږي لکه چې شوروي اتحاد ورسره مخامخ شو. افغان مجاهدین او عراقي سرتېري به دوی ته هم د کمونیزم په څېر ماتې ورکوي.

صلیبي ځواکونه په افغانستان او عراق کې یوازې د جنګ په سنګرونو کې د اسلام او مسلمانانو مقابله نه کوي، په نورو برخو کې هم پراخې هلې ځلې لري، یوازې په افغانستان کې ئې دوه نیم زره انجیوګانې (غیر دولتي مؤسسې) جوړې کړې او نږدې یو لک مامورین ئې په کې استخدام کړي چې دا ټول مسیحیت ته د افغانانو په اړولو او د اخلاقي فساد په خپرولو لګیا دي. دوی له تایلند، چین، جنوبي کوریا او ګڼ شمېر نورو هېوادونو په زرهاوو بد لمنې نجونې افغانستان ته راوستې، په هوټلونو کې ئې ځای په ځای کړې او د اخلاقي فساد خورولو دنده ئې ورکړه، یوازې د جنوبي کوریا له هېواده ئې نږدې دوه زره کسان په همدې موخه خو د سیاحت په نامه راولېږل، په بامیان کې په خاصه توګه او د شمال په ځینو ولایاتو کې ئې کار پیل کړ، خبره ئې رسوایي ته ورسېده، خلکو د دوی په فعالیتونو اعتراض وکړ او حکومت ته ئې وویل چې دوی مسیحیت ته د افغانانو د اړولو هڅې کوي، باید له هېواده وشړل شي، حکومت مجبور شو او د دوی د ایستلو اعلان ئې وکړ!!

د عبدالرحمن پنجشیري ارتداد، ښکاره اعتراف، نیونه، د ،بش، بلیر،اوباماخیلو، پاپ او نورو فوري عکس العمل او له څه ځنډه پرته د ده ژر خوشې کېدا او ایټالیا ته تګ؛ د اسلام او مسلمانانو په ضد د غرب د خطرناکو توطئو ابعاد ښه بربنډ کړل، دا د یوې شرمناکې توطئې یوه کړۍ وه، دا

درامه د دې لپاره جوړه شوې وه چې مرتد شوو افغاني مسیحیانو ته وښیي چې افغانستان اوس ستاسو د ملګرو په واک کې دی، حکومت او چارواکي ئې ستاسو هم مسلکه او ستاسو په خدمت کې دي، څوک مو د ارتداد په جرم نه نیولی شي او نه محاکمه کولی، دوی ته ویل شوي وو چې په افغانستان کې زیات شمېر کسان مخصوصاً د انجیوګانو پرسونل او د حکومت لوړپوړي چارواکي مسیحیت ته اوښتي، خو له وېرې خپل ارتداد نه شي اعلانولی، د ایټالیې استخباراتو دا پرېکړه وکړه چې عبدالرحمن پنجشیری دې ته تیار کړي چې خپل ارتداد بربنډ کړي، د کورنۍ غړي ئې اړوند اداري ته اطلاع ورکړي، ونیولی شي، په محکمه کې په خپل ارتداد اعتراف وکړي، د محکمې بهیر څرګند شي، ټول خلک ترې خبر شي، خو د امریکا، انګلستان، ایټالیا، کاناډا، استرالیا او نور حکومتونه فوراً او جدي عکس العمل وښیي، د فوري خوشې کولو غوښتنه وکړي، خلاص شي او په ایټالیا کې پناه ورکړی شي، تر څو په دې سره د هغو کسانو وېره ختمه شي چې خپل ارتداد نه شي اعلانولی. دا په حقیقت کې د مسیحیت په لوري د خلکو د تشویقولو لپاره یوه کرکجنه توطئه وه.

دبن غونډه اودهیواد دتجزیې پلانیزې پریکړې اودرواني مذهبي جګړې په نتیجه کې ښاغلي حامدکرزي دغرب لخوا دهیواد پاچا او واکمن وټاکل شو.

## حامد کرزی



حامد کرزی د عبدالاحد کرزي زوی په قوم پوپل زي پښتون دي په سنه (۲۴ د ډېسمبر، ۱۹۵۷ - ) میلادي کال کې په قندهارکې زوکړي زده کړي یې لومړي په هیواد کې اوروسته پاکستان امریکا ،جرمني اوهندکې کړي د افغانستان لومړنی ولسمشر دی چې په هېواد کې دامریکایانو په مرسته چي په چرلکه کې لومړي دروزګان ولایت ته راوړل شو اوبیایې له هغه ځایه خپل مقاومت ته دوام ورکړ، ددوی لوري د ولسمشر په توګه وټاکل شو. نوموړی د ۲۰۰۱ کال د ډېسمبر له میاشتې راپدېخوا د افغانستان د ولسمشرۍ دنده لري او دوه واره د افغانستان د ولسمشر په توګه ټاکل شوی. حامد کرزی د پښتو، دري یا فارسي، هندي، او انګلیسي ژبو سره سره په فرانسوي ژبه هم پوهېږي.

مخينه

حامدکرزی په کندهار کې زېږېدلی. دی پښتون دی او د پوپلزیو په ټبر پورې تړاو لري. د کرزي کورنۍ د پخواني پاچا ظاهر شاه پلویان دي، نو ددې په خاطر مونږ دا په ډاګه ویلای شو چې دی په سیاست کې د ډېر پخوا څخه ښکېل دی.

کله چې روسانو پر افغانستان یرغل وکړ نو کرزی هندوستان ته وتښتېده چي بیا پاکستان ته راغلواوکله ناکله یې دتنظیمواداروسره هم په سیاسي چاروکې دنده ترسره کړي او د طالبانو د حکومت په مهال یې هم (موقتي) دنده درلودله ،خودخارجیانو دپالیسۍ له بدلون سره په یوه مجهول اوناڅرګند سیاسي کې ورک شو دده پلار عبدالاحد کرزي یوقومي مشر وو هغه هم دسیاست څخه لیري نه ده پاته شوي کله چي غربي نړۍ دخپلومخو لپاره دهیواد په داخلي چارو کې دمداخل لړۍ پیل کړه په همدې ترڅ کې یې ښاغلي عبدالاحد کرزي ته بلنه ورکړه چي دقومونوپه یوکولوکې ورسره ونډه واخلي ،نودهمدې سره د پاکستان په کوټه ښار کښې د۱۹۹۹یم مېلادي کال دجولای پر ۱۴ د ځو وسله والو لخوا ووژل شو خودده مړینه دطالبانو باندي تاوان شوه ،خوطالبانودا ادعاردوله ،مګر دکرزی اونړیوالوښک پرځای پاته وو چي دکرزي دخواشني سبب شو همداووچي لیځې یې رابدېوهلي اوخپل اهداف یې له امریکایانو سره ګډکړل چي بالاخره دطالبانو دحکومت په

راپرزولوېږ شرع وکړه اونړيوالي صليبي ټولني هم لدې موقع څخه په استفادي سره دګاونډيانو په مرسته دطالبانو په اسلامي امارت يرغل پيل کړ چي لومړی امريکاا وبرتانيا خپلي فوځي ببری دپاکستان سرحد پولوته په فوځي تجهزاتو بار راورسولي اوبيايې هغه اوبوڅخه دکمپيوټرلاربنود مزائلو په وېښتلوسره جګړه پيل کړه چي لومړی دهيواد دهوائی ميدانونو رادارونوپه شمول ټول فوځي وسائل لکه چورلکي او ورته وسائل له کاره واچول بيا يې دهوائی ځواک په مرسته چي دپاکستان څخه يې پروازنو کول دهيواد ټول فوځي اډې په پشپړه ډول ختم کړل اوبيادلوي فوځي بم وړونکوتياروپه واسطه باندې دطالبانو په ټولو مرکزونو اوفوځي کرارګاوو بريدونه پيل کړل چي له داسي زهری اواټمي موادو کار واخيستل چي له ويتنام اوجاپان راوروسته نه وو استعمال شوي په ځمکني فوځ کې شمالي ټلوالي پوره مرسته ورسره وکړه ، خوبه هرصورت نړيواله صليبي ټولنه دافغانانو دجوړاسلامي حکومت په ناکامه کولوبريالي شوه ، چي پرځای يې حامد کرزی پاچا اودبن دناځرګندې جرګې په نتيجه دشپږوکلونو په موده دناروا ډيموکراسي دقانون ترچترلاند پاچاشو.

ده په هندکې هم دسياست خوبونه ليدل ، نوموړي په هندوستان کې د ۱۹۷۹ نه تر ۱۹۸۳ پورې د شيملې په هماچال پوهنتون کې د سياسي ساينسونو په څانګه کې خپلې زده کړې کړې او د ليسانس لاسوند يې ترلاسه کړی، بيا دی خپل کاري ژوند ته ننوت او د مجاهدينوله مالي ملاتړ يې هم پراخه استفاده کوله.


هغه جهادي څېرې چې اوس دکرزي په حکومت کې کار کوي

کله چې روسان د افغانستان نه ووتل نو دی د برهان الدين رباني په جوړ شوي حکومت کې د وزير د مرستيال په توګه دنده لرله. همدا رنګه يې د صبغت الله مجددي ، پير سيد احمد ګيلاني او عبدالرب رسول سياف سره کورنۍ اړيکې درلودې . ښاغلی کرزی متحل دی او زينت کرزۍ يې د مېرمنې نوم دی، زينت کرزۍ ډاکتره ده او په کال ۱۹۹۸ کې يې حامد کرزي سره واده کړی. د کرزي په کاله کې د جنوری په ۲۵ مه د ۲۰۰۷ م زېږيز کال يو ځوی پيدا شو چې د ميرويس کرزي په نامه يې ونوماوه، خوپه اوسنيو وختو کې يې يوه لورهم پيداشوي خدايزده چي هغه څه نوم لري .

**د طالبانو پلوي**

کله چي په ۹۴ مه میلادي لسیزه کښي د افغانستان پر سیاسي ډګر طالبان راڅرګند شوه، نو کرزي د هغوی په پلویانو کي و. خو کرزي د طالبانو سره خپلي اړیکي هغه وخت وشولوي چي په بهرکې یې دسیاسي چارو سفرونه وکړل اوله بل پلوه یې پلار روژنه باندي هم طالبان تورن وو. یوشمیرسرچني دا هم وائی کله چي طالبانو په ۱۹۹۶ یم میلادي کال کښي برهان الدین رباني د واکه وغورځاوه نو کرزي ته وړاندیز وکړی چي په ملګرو ملتونو کي د افغانستان سفیر شي. خو کرزي د طالبانو وړاندیز ونه مانه ځکه چي دي په خپل فعالیت بوخت وو. په ۱۹۹۷ یم میلادي کال کې کرزی و امریکا ته ولاړ [illegible] چي د دهنو [illegible] ځای پرځای وه. په امریکا کښي ښاغلي کرزي خپلي هڅي پیل کړي چي د افغانستان پخوانی پاچا محمد ظاهر شاه بېرته واک ترلاسه کولو په بهانه یې یوشمیر سابقه پاچاپلوه خلک غولول غوښتل. لکه څرنګه چي مو مخکې یادونه وکړه د کرزي پلار احدکرزی د پاکستان په کوټه ښار کښي د۱۹۹۹یم میلادي کال دجولای پر ۱۴ د څو وسله والو لخوا ووژل شو. د دغه وژني پړه پر طالبانو واچول شوه او همدا و چي حامد کرزي د بدل په توګه د طالبانو د واګه اچولو اراده لاپسي پخه شوه (خودومره باید ووایو چي دبهرني سیاست دعبدالاحد په مړینه کرزي دخپلواهدافولپاره ښه امده اوو خښماوو همدا ډول کله چي په نیویارک دتجارتي مرکزپېښه وشوه نولدې سره جوخت دمسعود وژنه هم وشوه چي شمال ټول دعربو اوطالبانوپه وړاندي راوپاریدلوهمدا دوي پېښی دغربیانولهلپاره یوسترچانس یاموقع وه.

**د امریکایانواو شمالي ټلوالې ملګرتیا**

په ۲۰۰۱ کال کې د ۱۱ د سپتمبر د پېښې څخه وروسته، کرزی د ځینو هغو ټوپکوالو سره چې د شمالي تلوالې پلویان وه، یوځای د طالبانو په مخالفت کې ودرېده او د امریکا د متحده آیالتونو د بشپړې ملکاری په مرسته د طالبانو د پرځولو لپاره افغانستان ته راغی چي دڅومیاشتو دسختوخونړي یرغلیزو پیښوپه پیله کې چي دهیواد یوشمیردولتي ودانۍ اوفوځي وسائل له منیځ کې لاړل یعني دبرید تروروستیوپورې یې دهیواد هوائی اوځمکي ځواک له فعالیت وغورځاوو او په شمال کې یې دطالبانو اوعربي ،چیچنیا ،ازبکستان اونوراسلامي هیوادو مجاهدین هم په دلیزدول شهیدان کړل اویوشمیرنوریې چي تسلیم شول امریکایی ځواکونوته دخه ډالروپه بدل کې لاس ترلي وسپارل دوستم ته یوځل بیا موقع په لاس ورغلي وه نور دطالبانو حکومت دقندهاراوزابل په

تسلیمدو سره ختم شو. کرزي اوشمالي ټولوالی په ګډه د یوې نوې حکومت په جوړولو لاس پورې کړ. د هماغه کال د ډېسمبر په میاشت کې د هېواد نه دباندې افغان سیاسي مشران چې ډېري یې په هېواد کې دننه کوم پلویان نه درلودل د جرمني د بون په ښار کې سره راټول شول چې د نوي کابینې په جوړښت کې سره جوړ شي اوشمالي قومپرستانوته ځانګړي چوکۍ ورکړي ترڅوغربیانوخپل اهداف په ګوته کړلو.

د بون د تړون له مخې په ۵ د ډېسمبر ۲۰۰۱ میلادي کال کې دا پرېکړه وشوه چې افغانستان کې به یو لنډ مهاله حکومت جوړېږي چې د دې ۲۹ کسیزې کابینې مشر به حامد کرزی وي. نو د پلان له مخې حامد کرزي په ۲۲ د ډېسمبر د کابینې د مشرتابه لواړه وکړه. بیا د جون د میاشتې لویې جرګې کې د افغانستان لنډمهالې دورې ولسمشر وټاکل شو او هدایت امین ارسلا یې مرستیال شو.

د کرزي د ولسمشر کېدو سره، سره د هغه د واک ولکه د کابل ښار پورې محدوده پاتې شوه او کله ناکله د ملنډو په توګه هغه ته داسې هم ویل کېدل چې کرزی د افغانستان ولسمشر نه دی بلکه د کابل والي دی.

دهمدې کال په وروستیو کې دکرزي دحکومت دجوړیدا په مهال بیا طالبانو سر را پورت کړي په غرونوکې یې پټ ځایونه اوسنګرونه جوړ کړل دحامدکرزي حکومت یې دصلیبانو ګوډاګی حکومت وبللو اودیوې شرعي فتوی په موټ یې بیا جهاد اعلان کړ چي لاتراوسه خونړۍ پېښې رواني دي اوطالبان دلویوښارونو په دروازوکې دامریکایانو دماتي شېبې لمانځه ترڅوبیرته دیواسلامي حکومت په جوړولوسره بریالي شي.

د ۲۰۰۴ کال د ولسمشرۍ ټاکنې


کرزی اوشنواری دلوړې په مهال

وروسته له دې چې حامد کرزي د ۲۰۰۴ کال ټولټاکنې وګټلې نو په ۷ د ډېسمبر، ۲۰۰۴ کال یې د ولسمشرۍ لوړه وکړه او د افغانستان د سترې محکمې ریس فضول احمد شینواري لخوا د پخواني پاچا ظاهر شاه لخوا او د سترې محکمې د نورو غړو لخوا مبارکي ورکړل شوه.

حامد کرزی ۹ د اکتوبر، ۲۰۰۴ کال د افغانستان د ولسمشرۍ ټاکنو کې د خپلواک کاندید په توګه ځان کاندید کړی وه. د ملي ملاتړ د نښتوالي سره سره هغه د ۳۴ ولایتونو نه د ۲۱ ولایتونو رایې وګټلې، او خپل ۲۲ سیالانو ته یې ماته ورکړه ،خودده سیالودلو کرزي په دې

تورن کرچي خارجانو دده سره پټه مرسته وکړه په ټولټاکنوکې غداری شوي . وروسته لدي چي په رايوکې درغلي شوي . بيا د ملګرو ملتونو د ټولټاکنې کمسيون څېړنې څخه وروسته دا خبره جوته شوه چې د ۱.۸ میلیونه رايو نه ۴,۳ میلیونه رايې سمې دي او په دغو رايو کې بناغلي کرزي ٪ ۴، ۵۵ رايې ګټلي دبهرنيانو دپلان لمخي د نومبر په ۳ مه نېټه بناغلی کرزی د ټولټاکنو ګټيالی اعلان شو ،خود چاخبره دمنلوړنه چي کرزي دې په ناسمه توګ ګټونکی وبولي .

دا د افغانستان په تاريخ کې دډيموکراسانو لومړی ولسمشر دی چې په هېواد کې د ډيموکراټيکو ټولټاکنو نه وروسته د افغانستان ولسمشر وټاکل شو .



خوطالبانوبيايوفتوی صادره کړه چي ډيموکراسي داګيزکفردي اوموږ به دامريکا دنړيوال صليبي زبېښاک داتحاديانو ترموجوديت پوري خپلو جهادي مبارزوته دوام ورکړواوملت زموږ په څنګ کې دي ،خو دکرزي حکومت طالبان دپاکستان په حکومت تورکړل چي دا دپاکستان له لوري راليږل کيږي ،خوطالبانو اوپاکستان دکرزي ادعا رد کړه اوطالبانوزياته کړه چي دابه ستاسولپاره سپکاوي وي چي دپاکستان پوځې دي پرتاسوبرلاس وې بلکي موږملي اودیني څواکونه يو لکه زموږپلرونه دروسانوپه وړاندي جهاد کاوه ،خوروسانو اوددوې ګوداګيانو به ويل چي دا دپاکستان پوځ دي بلکي ټول ملت پردې شاهد و چي افغانان دروسانوپه وړاندي جهادکوي اوس همداسي جهاد روان او روادي .

کرزي په رسمي توګه په ۷ د ډسمبر، ۲۰۰۴ کال کې د افغانستان د ولسمشرۍ لواړه په کابل کې وکړه دډيرو خلکو دا لمانځنه په سمبوليک ډول ګڼله اوداهم ويل کيدل چي دبهرنوي راز په افغانانو تحميليږي . پدې لمانځنو کې د افغانستان دپخوانی پاچا ظاهر شاه په ګډون د افغانستان دوه پخواني ولسمشران، صبغت الله مجددي او برهان الدين رباني سره سره د امريکا د متحده آيالاتو د ولسمشر مرستيال ډېک چېني اودنړۍ ستر پاپ هم ګډون کړی وه .

## د افغانستان ولسمشر

وروسته له دې چې حامد کرزی په ډیموکراتیکو ټولټاکنو کې کامیاب شوه یو شمیر ځیرونکو ګمان کاوو چې دی به د شمال ټوپکسالاران وشړي خو بالعکس هغه یې نور هم په مهیمو ادارو کې په کارو اچول او پښتانه یې له ځانه لیرکړل همدا سبب دي چې یوازې په ارګ کې خوندي دي .

د کرزي ادارې فوځی بهیر هم ورځ تر بلې په شاه روان دي ،فساد ،ورشوت ،قبضي او په خارج کې دشتمنی ځایول او س د هروزیر عادي کار دي .

د ۲۰۰۲ کال د سپتمبر په ۵ مه، کله چې حامد کرزی د کندهار په دوره تللی وه نو په ده باندې د وژلو یوه هڅه وشوه. یو عام ملي سړی چې پوځي کالي یې په ځان وه په ښاغلي کرزي یې ډزې وکړې چې له امله یې د کندهار والي ټپي شو، خو د امریکایي ځانګړي ساتېري لخوا هماغه ټوپکوال تربرید لاندې شو. دیوه ساتونکي په ګډون او هغه کس چې برید کونکي مخه یې نیول له نړۍ سترګې پټې کړې . د کرزي د وژلو دوهمه هڅه هغه مهال شننه شوه کله چې نوموړی د سپتمبر په ۱۶ نېټه ۲۰۰۴ کال کې په یوه چورلکه کې د ګردېز لوري ته د یوه نوي ښوونځي پرانیستلو ته روان شوی وه او دده په چورلکه د توغندي برید وشو.

د کرزي ورور احمد ولي کرزی په کندهار کې دولایتي شورۍ دمشري څخه په استفادي سره خورا غني شواو د کورنوغړی یې د سان فرانسیسکو، بالتیمور او کېمبرېډج ماسچوسېټس په آیالتونو کې د هیلمند په نامه خوړنځایونه (هوټلونه) لري. ډېرو نورو سرچینو په ځانګړي توګه د فارېنهایټ ۱۱/۹ فلم بیا داسې خبر ورکوي چې حامد کرزی د امریکا د تېلو یوې کمپنۍ یونو کال کې د سلاکار په توګه کار کړی. ، که څه هم چې دوی د ټولو هغو نورو شرکتونو په هکله چې په یونو کال پورې تړاو لري څه نه دي ویلي [۱][۲]. داسې ویبیل کېږي چې په ۹ د ډسمبر، ۲۰۰۱ کال کې په یوې فرانسوي ورځپاڼې لې مونډې کې د لومړي ځل لپاره دا خبر راڅرګند شوی وي. همدا خبره د کرسچیان ساینس مونېټر هم کړې ده[۳]. خو موجوده قندهاړی اولس داینو مېنه په شمول نور ستړې ودانۍ دکرزی صیب او ورونو په موټ جوړی شوي بولي ،خو احمدولي هم سر و خوړاو ووژل شو.

دامهال په هیواد کې تقریبا ترڅلو ېښتوزیاتو خارجي کفري ملکونو ناروا اودوزخي پوځونه شتون لري چې ډیری یې دهیواد په جنوبي ولایاتواو پښتني سېموکې دمجاهدینو سره په جګړه بوخت دي ،خو یوشمېر استخباراتي ،سیاسي کارپوهان یې دهیواد څخه دننه اودباندې په دچین او روسي دجغرافیائی مبارزي اوسیاسي کشمکش باندې مصروف دي ،پاته نورلرغون پېژندونکي او

انجینیری او تخنیکي اشخاص یې د هیواد د طبعي زیرمو او قیمتي ډبرو او یورانیمو په را ایستلو او ترلاسه کولو بوخت دي .

د طالبانو د وامدار مقاومت د حکومت په پوځي لیکو او اداري نظام کې هم ډیر بدلون راوستي دي چي ډیری د خارجیانو له ناروا عمل ذاتي دښمني ځخه پوهیدلي دي ،خو امریکائی او برتانوی استخباراتي کړیو د مخامخ جګړی پر ځای په سیاسي ارډور لاس پوری کړي چي قومونو کې د طالبانو په وړاندي د مخالفت زهر شندلي او اوس غواړي چي په غیر مستقم ډول او یاد نورو اسلامي ممالکو له لاري د مجاهدینو په کرښو کې هم د بلتون مزي وغزوي لکه د تیر تنظیمي ډلو ټپلو په ډول په ګوندونو ډلګیو باندي وویشي دیو ځه مالي لالچ او د اقتدار د شعار پر بنا غواړي تیر سبقونه بیا تکرار کړي ،خو مسلمه امت باید دوه ځلي له یوه غار ونه چیچل شي .

بیا هم مسلمان ابراهمي ملت خصوصا افغان ملت ته یوه سپیځلي هیله وړاندي کوم هغه داده چي باید ضرور د یهودانو د فلسفي او تاریخي دښمني ځخه ځان خبر کړي د صلیبي امپراطوریو تور او له چلونو ډک تاریخ چي په ښځو او پیسو یې چلوي عبرت واخلي او په دې اړه د ایوبي او ورت غازیانو داستانونه ،خاطرات او واقعات ولولي .

د افغانستان د زړه یوماتیدونکي داغ د اقتدار په سر جګړه او ډیر دو استعمال دا وښوده چي دهر واکمن پاچاهي او واکمني خپلو ورونو او یاد کاکا زویانو د توري په زور او د ترور په نتیجه کې ورځخه ترلاسه کړي ، نو سبحان الله څو مره د بد مرغي ځای دي چي هرڅو مره خوږه وروروولي قرابت او دوستي په څو مره ورور وژني او وینو تویولو باندي تمامه شوي ده .

کیدای شي د دې یو علت دا هم وي چي موږ له تاریخ ځخه ډیر لږ بري او نا اشنا جوړ سوي یُو تر څو له همداسي تیرو تنو ځخه پتي سترګي تیر شو ،یعني زموږ فکري روزنه ، سیاسي نظام ،علمي ،کلتوري او ټولنیز ژوند چاري ډ پردو تر تاثرا و مسیر لاندي ښکاري .

---

اخځنی : د کرزي په اړه انترنیټي ادرسونه

- Bbc Benawa aljazeera Tolafghan – Afgha.com
- Pravda – CNNپ –

**دامهال :**

دکتاب لیکني تر وروستي برید لادطالبانو اوخارجي تیری کونکي صلیبي ځواکونوسره جګړه جریان لري دطالبانو اسلامي مقاومت داسي ښکاري چي جګړه به ددوي په بریا پای ته رسیږي ځکه چي دهیواد په ۳۳ ولایاتو او ولسوالیوکې ددوي سرتیري فعال اوغوځنده بریدونه ترسره کوي چي دمخامخ مقاومت ترڅنګ دماینونو غلچکي بریدونو اوفیدائی حملوپه ترسره کولوسره یې دد ښمن څخه لاره ورکه کړي بلې خواته یې دحکومت په ملي اردو کې هم ډیرځای نیولي دملي اردو ډیرداسي ځلمي دخپلوتوپکوشپېلی ډیرغلګرو په خوا را اړولي چي دامهال دملي اردو اوخارجیانو ترمېنځ هم داعتماد کړی ماتي شوي.

خوکه تاسومسلمان ملت چیرته دیهودانواوصلیبانوپټي دسیسي اوپارتکولونه لوستي وي یاموا وریدلي وي چي دوی دناکامی په صورت کې کوم عمل ترسره کوي ؟

دوی له مسلمه امت سره ترکومې کچي بغض ،ضد ،کینه اودښمني لري ؟

ددوي دد ښمنی څرګنده بېلګه دکوتتنامو ،ابوغریب اوباګرام زندانونه دي چي مسلمان مبارز ورونه یې په کوم ډول تعذیب کړي دملاعبدالسلام ضعیف اونورو ورته تعذیب شویو مجاهدینو کتابونو ته مراجعه کولای شي.

دامهال په ستراتیژیک اوپوځي لحاظ افغانان دصلیبانو په وړاندي غښتلي اودجګړي ګټونکي ښکاریږي.

خوبل پلو نړیوالوتیري کونکو دتجزیي فلان عملي بڼه ،سېمیزاړدوړ ،قومي شخړي ،مذهب اختلافات ،دلبازیواوسیاسي کشمکش چي دداخلي جګړو لامل ګرزي ،یوه ښکاره نمونه یې داوسني اربکیانو رامېنځ ته کیدل دي ، ملت یې نا ارامه کړی چي بالاخره داوردالمبه به هرښار اودهرکوردروازي ته رسیږي.

بل لوی هدف دوي غواړي چي دمسلمه امت اتحادیه یعني عربي اوعجمي اسلامي نړی سره بېل کړي په اصل مسلمانانوکې انتهاپسند ،سخت دریځه اونرم مزاج اشخاصوپه انتخاب کولوسره ونوموي اوبل زموږ دهیوادپه شمول داسیاملکونه دعربي نړی په څیرپه مختلفوجزیرو او ورو ملکونو وویشي ترڅویودبل دښمنان او ددوي شتون ته یې اړ باسي ،دهیواد زېرمې اومعدن چور ول چي داهیواد بیاپرپښوونه دریږي اودغربت لامله دنوروممحتاج ووسي، دلوپښتونستان لوی ازبکستان اوتاجکستان اودشیعه اغاخان دځانګړي ملک دجوړیدوفلان اوهم دچین اقتصادي بازار اوټېکنالوجي مخنوي اودآسیاداتمي هیوادونودماتیدوهېلي اوروسیې کې دنفوس کولو

اومغلوبیت خوبونه اوپه غیرمستقیم ډول په هیواد کې دلاسپوڅوجاسوسانو اومزدورانو جوړول چي په هغه کې دیوشمېر سیاسي ګوندونوجوړونه همداسي نورفلانونه چي یوپه بل پسي په عملي کیدونکي بڼه راڅرګندې کېږي .

پورتنی دسیسي چي دعمل جامه یوه په بل پسی وراغوندي بس همدا ددوي دماتي اوله هیواد ځخه دوتلو اسباب لاملونه دي .

الله جل جلاله دې وکړي چي داصلیبي امپراطورۍ دتېرکمونستي یرغل په ډول دنړۍ په سطحه ناکامه اوشرمېدلي ماتي سره مخ شي اومسلمه امت ته الله پاک یرځل بیاپه نړۍ کې برلاسي اویووالي ورپه برخه کړي .

په پای کې لاس پورته کوم چي الله پاک راته مسلمان پاچا اسلامي نظام ،وطندوست اسلامي فوځ اوخپلواک هیواد راپه نصیب کړي اوپاته اولس مو را وپوهه وي .

امین ثم امین .

**بخښنه غواړم !**

ددې تاريخ دليکولو راټولو ،ترتيب اوژباړې په مهال که کوم سهوه راغلې شوې وي اويادليکنې له ليک دود څخه علاوه که کومې ،تحريري اوتقريري تروتنې راغلې شوې وي ،که کومې يادونې ،واقعات ،خاطرات تکراري يااسناددلمن لېکنوياحوالو بدلون په کې شوي يانيستي وي درڅخه بخښنه غواړم ،خوداسې نه چې دشخصي، مذهبي ،سېميز اوتوکميزتضادپربناء راسره ضدوکړئ ولې ماداکتاب چې دهيوادپه تاريخ مشتمل دې ترڅېل وسه له سياسي اوټولنيز عداوت پرته راټول کړې دي ،البته داسلامي احساساتو په درلودلوسره به هرمرو يوڅه جذباتي کلمات راغلې ويلې شوي وي چې دهغه يواځنې علت داوسني ناروا يرغل ناخوالې دزغملو اوبرداشت نه دي ، خولېکنه مې بې له کوم سنداو حقائقوڅخه خالي هم نه ده .

بياهم ستاسوافغان ملت څخه دخپلوتېروتنو داصلاح په هيله يم چې په دې اړه راسره مرستندويان وسئ ځکه چې رښتياهم دتاريخ لېکنه نه ديوفرد کار اونه مسؤليت دي ،بلکې يوشمېر تاريخپوهانو،ليکوالانو،دجغرافيائي پېژندونکو سرېږو او هم ورته اشخاصوته په يوټولنيزډول ضرورت دي ،خوبياهم ماچې کله ددې تاريخ په ليکلوپيل کړې بياترپايه راسره يوشمېر ښه مخور تاريخ پوهه اشخاص مله اوهمکارو ، اوبل مې دهرې موضوع په اړه له معتمدوکتابونوڅخه هوبهو دهغوتورو مطالب او لمنليکونه را اخيستي دي داچې په دې کې مې کوم لنډون او ياتکثيرکړي هغه هم ديوشمېر تاريخ ليکونکودنظرنو اصل ته مې ځای ورکړې دي .

محرم الحرام ١٠ نېټه ٢٠١٢ ميلادي کال «ځانواک مفتي زاده زابل افغانستان»

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وآله وصحبه اجمعين

پای

| شماره | دتاريخ عنوانات اومطالب | مخ |
|---|---|---|

| مخ | دتاریخ عنوانات او مطالب | شماره |
|---|---|---|

ز

# افغاني پاچاهان



سلطان محمود سوری لودي غوری شیرشاه سوری اسلام شاه



میرویس نیکه شاه حسین شاه محمود شاه اشرف احمدشاه بابا تیمورشاه



شاه زمان امیرافضل خان اعظم خان امیردوست محمدخان شاه شجاع شیرعلی خان



یعقوب خان امیرعبدالرحمن خان امیرحبیب الله نصرالله خان عنایت الله حبیب الله سقاو



امیرامان الله خان نادرخان ظاهرشاه سردار داؤدخان نورمحمدترکی ببرک او امین



داکتر نجیب صبغت الله مجددي رباني ملامحمدعمر مجاهد حامد کرزی اشرف غني احمدزی